فسئلوا اهل الذكر ان كنتم لا تعلمون

فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

افادات

محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ مولانا مفتی محمد فرید رحمہ اللہ

جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

تخریج و ترتیب

مفتی محمد وہاب منگلوری مدرس دار العلوم صدیقیہ زروبی

مکتبہ رشیدیہ

جی ٹی روڈ سردار پلازہ اکوڑہ خٹک

بسم اللہ الرحمن الرحیم

فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

## فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیہ

پنځم جلد


افادات

محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف باللہ

مولانا مفتی **محمد فرید** رحمۃ اللہ علیہ

جامعه دار العلوم حقانیه اکوڑہ خٹک

تخریج وترتیب

مفتی محمد وهاب منگلوری

مدرس دار العلوم صدیقیه زروبی

ترجمه وکمپوزنګ

**دار الترجمه وکمپوزنګ سنټر**

عبد الغنی پلازه محله جنګی پشاور

زیر سرپرستی

مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی

مهتمم دار العلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی



ناشر

**مکتبه رشیدیه اکوڑہ خٹک**

**دکتاب نوم:** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (پنځم جلد)

**افادات:** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمه الله شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج:** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه

**معاون:** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**مترجمین:** مولانا محمد منظر مردانی فاضل جامعه امداد العلوم صدر برهان الدین صدیقی فاضل جامعه دارالعلوم کراچی ایم اے پشاور یونیورستی (فون: ۰۳۴۴_۹۱۲۹۰۲۳)

**مصحح:** مولانا لطف الرحمن صاحب مدرس ونګران قاسم العلوم شبقدر

**کمپوزنګ:** دارالترجمه وکمپوزنګ سنټر عبدالغنی پلازه محله جنګی پشاور

**ضخامت:** ۶۰۷ صفحات

**لومړی چاپ:** اکتوبر ۲۰۱۱ء ............ شوال ۱۴۳۲ھ

**زیر سرپرستی:** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی مهتمم دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر:** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره

رابطه نمبر: ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳



# فهرست مضامين

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب المهر

## باب فی الاولیاء

## باب فی الاکفاء

## باب الرضاعة

## باب حرمة المصاهرة

مضمون — صفحه

## باب الحضانة



## باب الوليمة





مضمون — صفحه



## باب حقوق الزوجين

# کتاب الطلاق

## باب شرائط الطلاق







## باب صریح الطلاق

مضمون | صفحه





مضمون | صفحه



## باب کنایات الطلاق

## باب تعلیق الطلاق

| مضمون | صفحه |
|---|---|





| مضمون | صفحه |
|---|---|

| صفحه | مضمون |
|---|---|

## فصل فی عد الطلاق

## والقاء الاحجار وغیرهما





| صفحه | مضمون |
|---|---|



## فصل فی طلاق المکره والصبی

## والمجنون والسکران وغیرهم

## باب ما لایقع به الطلاق







## باب القضاء ودعوی الطلاق والنکاح

| مضمون | صفحه |
|---|---|





| مضمون | صفحه |
|---|---|

## فصل فی تنسیخ النکاح

## فصل فی تفریق زوجة مفقود الخبر والمجنون وغیره

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## فصل فی العنین





بسم الله الرحمن الرحیم

فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (پنځم جلد)

**الحمد لله الذي اجري بحكمته مقادير الامور، ودبر السموت والارضين على مر الدهور، والصلاة والسلام على سيدنا ومولانا محمد عبده ورسوله شفيع العصاة يوم النشور، وعلى آله واصحابه ما اضاء النهار واظلم الديجور، اما بعد!**

د الله تعالی ډیر شکر دې چه هغه په خپل ډیرزیات رحمت او خصوصی فضل وکرم سره زما په شان بې وسه کمزورې بنده د فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه د ترتیب او تحقیق وتخریج او تحشیه په علمی خدمت باندې لګولې یم، بنده فقیر (مرتب) یو ادنی طالب علم دې او د لوستلو او لیکلو لږ ډیر شوق لري، ورنه من آنم که من دانم، خو دا د الله تعالی د خصوصی مهربانئ او فضل وکرم کرشمه ده، چه په دې خدمت کښې ئې کامیابی راکړه او حوصله افزائی ئې راکړې ده.

بعضې دوستان کله کله دا اظهار کوی چه وخت زیات لګی د دوی خواهش دې چه په کم نه کم وخت کښې فتاوی مکمله شی او منظر عام ته راشی، بنده ته هم د دې احساس شته چه د دوی دا جذبه دې کار لره زر تکمیل ته د رسولو او د محبت په وجه ده، لیکن اهل علمو ته ښۀ معلومه ده چه دا کار د څومره محنت غواړی، څومره مشکل او د سکون او اطمینان تقاضا کوی، ځکه چه په رجسترو کښې د خورو ورو په زرګونو مسئلو د کتاب، باب او د فصل وار ترتیب، د هر عربی عبارت تخریج او بالخصوص په کومو فتاوو کښې چه حوالې درج نه دی د هغې د پاره باقاعده حواله جات په تلاش کولو کښې په درجنونو کتابونه کتل او په بعضې ځایونو کښې د تحقیقی حواشی لیکل وغیره څه آسان کار نه دې، بالخصوص د حضرت شیخنا المعظم حضرت مفتی اعظم دامت برکاتهم د ذات بابرکات د فتاوې حوالې سره دلائل او براهین او د تفصیل او اعجاز په اعتبار سره د منفرد او امتیازی شان حامل ده، دغسې د دوی د مخصوص طرز فکر لحاظ هم دې، چه هغه هم هغسې اهل علمو ته منتقل شی، په دې وجه دا کار پخپله د زیات وخت تقاضا کوی، او مونږ دې لره د معیاری جوړولو کوشش کوو.

په دې جلد کښې د کتاب النکاح او کتاب الطلاق ابواب او فصول جمع کړې شوی دی، او چرته چه په یوه مسئله کښې د حضرت صاحب مخصوص طرز فکر او علمی

تحقیق دي هلته مونږ کوشش کړی دي چه دحضرت د نورو تصانیفو مثلاً منهاج السنن او هدایة القاری وغیره نه دا مدلل کړې شی چه ددې په تعیین او تحقیق کښې هیڅ شبه باقی پاتې نه شی.

ددې جلد هره یوه مسئله او تحقیق او تحشیه رئیس دارالافتاء جامعه حقانیه سیدی واستادی حضرت مولانا مفتی سیف الله حقانی صاحب مدظله العالی ډیر په ژور نظر سره کتلې ده، ددې نه علاوه ددې جلد هم ټول ابواب او فصول وخت په وخت دحضرت مولانا شیخنا المعظم حضرت مفتی اعظم دامت برکاتهم په خدمت کښې پیش کړې شول، اود سختې کمزورئ او تکلیف او بیمارئ باوجود ئې اوکتل اود خوشحالئ اظهار ئې اوکړو، او بنده ته ئې خصوصی دعاګانې اوکړې.

بنده دهغه ټولو دوستانو شکریه اداکول ضروری ګڼړی چه هغوی د کتابونو مطالعه کولو اوپه تخریجی امورو کښې معاونت کړې دي بالخصوص مولانا محمد اسحاق حقانی،اود درجه تخصص فی الفقه بعضې طلباء کرام مولانا عزیزالرحمن، مولانا پروانت خان، مولانا احسان الله، مولانا عبدالحئ او مولانا عبدالغفار صاحب، په اردو محاوره او پروف کتلوکښې مولانا احسان الله تانو او نورحضرات، دغسې مولانا حافظ ولی الرحمن صاحب صدیقی په کمپوزنګ کښې د پوره کوشش اومشقت نه کار واخستلو، الله تعالی دې زمونږ د ټولو محنتونه قبول کړی اود فلاح دارین ذریعه دې جوړه کړی.

په آخرکښې سرپرست اونګران او خپل مهربان استاذ حضرت مولانا مفتی سیف الله حقانی مدظله العالی اود مولانا خواجه حافظ حسین احمد صدیقی صاحب زیدمجدهم اود خپلو ټولو استاذانو دامت فیوضهم په خدمت عالیه کښې هدیه د تشکر پیش کول خپله فریضه ګڼړم، چه ددوی تعلیم او تربیت، حوصله افزائی اود دعاګانو په برکت سره دا کار سرته رسیدلو والا دي، الله تعالی دې ټولو بزرګانو، زما مورپلار اوحضرت شیخنا المعظم حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم د عاطفت سوري همیشه دپاره زمونږ په سرونو قائم اوساتی......آمین یارب العالمین.

طالب دعا

محمد وهاب منګلوری عفی عنه (سوات)

مرتب فتاوی دیوبند پاکستان



بسم الله الرحمن الرحیم

# باب المهر

## د مهرعدم تقرر یا مهر نه کیخودلوسره په نکاح باندې هیڅ اثر نه پریوځی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ځما د نکاح په وخت کښې حق مهر شل زره روپئ لیکل خوښ کړې شو، ما په هغې باندې اعتراض اوکړو چه دا زیاتې دی حالانکه مونږ خبره د پنځوزرو کړې وه، هغوی اووئیل چه مهر څوک ورکوی او اخلی دا خو محض خودنه ده، بیا ما د چا نه واوریدل چه د نکاح په وخت کښې داسې وئیلوسره نکاح باطلیږی شرعی مسئله خودلوسره په مونږ باندې مهربانی اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: اخترخضری کهاریان. ۱۷/۷/۱۹۷۹ء

**الجواب:** ټولوفقهائې کرامو لیکلی دی چه د مهرعدم تقرر او نه کیخودلو سره نکاح ته څه نقصان نه رسی. کما فی الهدایه﴿۱﴾وهوالموفق

## حق مهر نه ورکولو یا خرڅولوسره په نکاح باندې څه اثر نه پریوځی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو کس نکاح کولوسره حق مهر(اووه تولې سونا) ښځې ته ورکړه، لیکن روستو ښځې په رضامندئ سره هغه مهرزیورات ئې خرڅ کړل او کاروبارئې پرې شروع کړو، ایا ددې حق مهر په خرڅولوسره په نکاح باندې څه اثرپریوځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مثل خان خلیل خیبر کالونئ تهکال پشاور.....۱۴/۷/۱۴۰۱ھ

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: ویصح النکاح وان لم یسم فیه مهرا لان النکاح عقد انضمام وازدواج لغة فیتم بالزوجین ثم المهر واجب شرعا ابانة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** حق مهر نه ورکولو یا واپس اخستلو یا خرڅولو سره په نکاح باندې هیڅ اثر نه غورځیږی ځنګه چه د ګواهانو یا د نکاح خوان وغیره په مر کیدلو سره په نکاح باندې هیڅ اثر نه پریوځی.﴿۱﴾ وهوالموفق.

## په مهر کښې هر قسمه مال متقوم مقرر کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په لسم نومبر ۱۹۸۱ء پیښور چهاونئ کښې یو نکاح منعقد شوه، څلور تولې طلائی د کالو په حساب سره مبلغ اته زره روپئ مقرر شوئ، پنځم نومبر ۱۹۸۲ء کښې واده کیدلو والا وو چه یو سړی د مجلس حاضرینو ته په اوچت اواز سره اووئیل چه رومبنئ نکاح منعقد شوې نه ده ځکه چه تاسو خلقو په مهر کښې کالی مقرر کړی دی، او په مهر کښې کالی نامنظور وی ددې وجه نه نکاح باطله ده، ایا ددې سړې دا خبره صحیح ده او نکاح به دوباره تړلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مستحب ګل عباس کلې سرډهیری چارسده ۲۷\محرم ۱۴۰۳ هـ

**الجواب:** مال متقوم مهر کښې مقررولې شی، اګرچه سونا چاندی وی یا روپئ (نوټ) وی او اګر چه سونا چاندی د کالو په شکل کښې وی یا په بل شکل کښې وی. (شامی﴿۲﴾ ..................

(بقیه حاشیه) لشرف المحل فلا یحتاج الی ذکره لصحة النکاح.

(هدایه ۲: ۳۴۵ باب المهر)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: للمرأة ان تهب مالها لزوجها من صداق دخل بها زوجها اولم یدخل...... ولو وهبت من ورثته یجوز ولو وهبت مهرها بشرط فان وجد الشرط یجوز وان لم یوجد یعود المهر کما کان هکذا فی التتارخانیة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۱۶ الفصل العاشر فی هبة المهر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فضة وزن سعبة مثاقیل کما فی الزکاة مضروبة کانت اولا ولو دینا او عرضاً قیمته عشرة وقت العقد، قال ابن عابدین: وکذا لو منفعة کسکنی داره ورکوب دابته وزراعة ارضه حیث علمت المدة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



........بحر﴿۱﴾ هندیه﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د مهرفاطمی مطلب او مقدار

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د مهرفاطمی څه مطلب دې او ددې حساب په کومه طریقه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم صدر تحفظ حقوق ډیره... ۳۰\ربیع الاول ۱۴۰۲ هـ

**الجواب:** ددې اصطلاح څه پته نشته، خوبیا هم مهرفاطمه رضی الله عنها د نوروبیبیانو په رنګې دولس نیمې اوقیې وو، او یو اوقیه د څلویښتو درهمو برابر وی، نو پنځه سوه درهمه شو او لس درهمه د اوو مثقالو برابر وی نو دوه سوه درهمه د یوسل څلویښتو مثقالو برابرشو، او پنځه سوه درهمه د دریوسوو پنځوسو مثقالوبرابر شو، یو مثقال څلور نیمې ماسې وی نو ټول ۳۵۰×۴،۱\۲ = ۱۵۷۵ ماسې شوئ، بیا ددینه تولې جوړې کړئ او د چاندئ قیمت معلوم کړئ نو هغه به د مهر فاطمی مقدار وی. وهوالموفق

کتبه: رشید احمد حقانی

رواه ابوداؤد فی باب الصداق﴿۳﴾ نو تقریباً یوسل یودیرش تولې او درې

(بقیه حاشیه) کما فی الهندیة قلت ولا بد من کونها مما یستحق المال المال بمقابلتها لیخرج ما یأتی من عدم صحة التسمیة فی خدمة الزوج الحر لها وتعلیم القرآن.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۵۸ باب المهر)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: ومراد المصنف ان اقله عشرة او ما یقوم مقامها بالقیمة.

(البحر الرائق ۳: ۲۵۰ باب المهر)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: المهر انما یصح بکل ماهو مال متقوم والمنافع تصلح مهراً الخ.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۰۲ الباب السابع فی المهر)

﴿۳﴾ عن ابی العجفاء السلمی قال خطبنا عمر فقال الا...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

ماشې چاندى دى﴿۱﴾ وهو الموفق.

الجواب صحيح...محمد فريد عفى عنه

(بقيه حاشيه) **لا تغالوا بصدق النساء فانها لو كانت مكرمة فى الدنيا او تقوى عند الله كان اولاكم بها النبى ﷺ ما اصدق رسول الله ﷺ امرأة من نسائه ولا اصدقت امرأة من بناته اكثر من ثنتى عشرة اوقية.** (سنن ابى داؤد ۱:۲۸۷ باب الصداق)

﴿۱﴾ شيخ الاسلام مولانا سيد حسين احمد مدنى رحمه الله په خپلو مكتوباتو كښې فرمائى: چه څنګه دغلط رسمونو داصلاح كوشش كړې شوې دې ددې (مغالاة فى الامهار) هم پكاردې، يوسل دوه ديرش تولې سپين زر (پنځه سوه درهم) داسې مقداردې چه عام طور ئې مسلمانان اداكولې شى، اوددې اراده هم كولې شى، ددې نه علاوه دا يوه بركتناكه طريقه دجنت دبى بى (رضى الله عنها) ده، چه دې سره د فال حسن او بركات عظيمه موقع حاصليږى ظاهره ده چه هركله په هندوستانى ذهنونو كښې دمهر وصولول موجود هم نه دى اونه دې لره د بضعې معاوضه ګڼړلې كيږى بلكه شرعى رسم ګڼړلو سره ددې ذكر كول ضرورى ګڼړلې شى، نو ولې نه هغه عدد وانختلې شى چه هغه په ټولو كښې بركت والا وى نه ډيركم مقدار دمهر (لس درهم) دې اونه اعلى ترين (قناطير مقنطرة) وى، شرافت او عزت به ددې نه زيات څه وى چه سيدة نساء اهل الجنة اود سركار كائنات عليه الصلاة والسلام دجسم مبارك د ټكړې دا مهردې، فاطمة بضعة منى، مشكوٰة ۵۶۸ حديث باندې غور اوكړئ. (فتاوى شيخ الاسلام ص۹۳ د مهرفاطمى باره كښې دحضرت موقف)

بهرحال دسيدة النساء فاطمة الزهرا رضى الله عنها چه كوم مهر مقررشوې وو هغې ته مهرفاطمى وائى، دعهدرسالت د اوزان مطابق دا دولس نيم اوقيه سپينو زرو باندې شوې وه، يو اوقيه د څلويښتو درهمو برابر، دې حساب سره د دولس نيم اوقيه پنځه سوه درهم شو، يو اوقيه ۱۰.۵ تولې وى نو دولس نيم اوقيه ۱۳۱،۲۵ تولو برابر شو يعنى ۱۳۱ تولې او درې ماشه په منهاج السنن شرح ترمذى كښې دى.

صداق رسول الله ﷺ **ثنتا عشرة اوقية ونش اى نصف اوقية، والاوقية اربعون درهماً فالمجموع خمس مأة ويحصل منها مأة وواحدة وثلثون تولجة وثلاث ماهجات وهى** تساوى......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د مهر شرعى مقدار

**سوال:** څه فرمائى علماء دين دې مسئلې باره كښې چه موجوده دور كښې د شرعى حق مهر مقدار څه دې او په هغې كښې كمې زياتې كيدلې شى يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتى: امان الله ډائريكټر **W.S.M** پشاور......۱۷/۷/۱ء۱۹۷۹

**الجواب:** د حق مهر څه اوچت حد نشته، البته دا ضرورى ده چه د لسو روپو شرعى نه به كم نه وى﴿۱﴾ چه پاكستانى وزن سره دوه تولې اووه نيمې ماشې

**ثلثمأة وخمسون مثقالا وذكر صاحب المواهب ان مهر فاطمة كان اربع مأة مثقال فضة فلعل المثاقيل كانت مختلفة.**

(منهاج السنن شرح ترمذى ۴:۲۶۸ باب فى مهور النساء)

داقول (۱۳۱ توله ۳ ماشه) دحضرت مولانا مفتى عزيز الرحمن ديوبندى اود مولانا مفتى محمد شفيع رحمهم الله هم دې اوس په دې حساب سره چه پنجابى توله ۱۱،۶۶۴ ګرام وى نو مهرفاطمى يوكلو ۵۳۱ ګرام سپين زر جوړيږى اودا احوط دې

دمهر فاطمى په باره كښې دوه اقوال دى لكه څنګه چه د منهاج السنن دعبارت نه واضح كيږى ليكن په دې كښې رومبې مقدار دحديث اوسيرت د رواياتو نه ثابت دې، اودويم مقدار څلورسوه مثقالو والا ياخو په اختلاف د اوزان باندې محمول دې يا داچه دا صرف د تاريخ الخميس روايت دې لهٰذا رومبې مقدار راجح دې، ددې نه علاوه په مهرفاطمى كښې د موجوده اوزانو په حساب سره نور اقوال هم شته، دمولانا مفتى محمود الحسن صاحب ګنګوهى دتحقيق مطابق مهر فاطمى څلورسوه مثقاله چه د يونيم سل توله سپين زر برابردې (ماهنامه نظام جولائى ۱۹۷۵ء) دا قول دمولانا سيد احمد رضا بجنورى هم دې (انوارالبارى شرح بخارى ۴:۲۱) د بعضې محققينو په نزد مهرفاطمى د ۱۴۰ توله سپين زر برابردې (نظام الفتاوىٰ ۲:۲۰۸) اوپه احسن الفتاوىٰ كښې مهرفاطمى ۴۸۰ درهم يعنى يوكلو ۲۳۲۹۶ ګرام سپين زر ليكلې شوې دې.

زمونږ په نزد هغه وزن ماخوذ به دې كوم چه په جواب كښې ليكلې شوې دې او اكثرعلماء هم ددې قائل دى. والله اعلم (از مرتب)

﴿۱﴾ **قال العلامة الحصكفى: المهر اقله عشرة دراهم** ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

کیږی او فی توله د پنځه ویشت روپو په نرخ سره تقریباً پنځه شپیته روپئ پاکستانئ جوړیږی.﴿۱﴾ وهوالموفق

## د مهر شرعی د کم نه کم مقدار

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه مهرشرعی لس درهمه پاکستانی لحاظ سره څومره جوړیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حامدانور متعلم حقانیه........۱۹۸۵\۱۲\۳۱

**جواب:**دمهرشرعی دکم نه کم مقدار لس روپې شرعی(دوه تولې اوونیمې ماشې) دی او پنځوس روپئ فی تولې حساب سره ۱۳۰ روپئ ۲۵ پیسې جوړیږې صرح به الحنفیه﴿۱﴾ولحدیث ....

---

(بقیه حاشیه) لحدیث البیهقی وغیره لا مهر اقل من عشرة دراهم...... فضة وزن سبعة مثاقیل کما فی الزکاة...... وتجب العشرة ان سماها او دونها ویجب الاکثر منها ان سمی الاکثر.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۵۷ باب المهر)

﴿۱﴾ په فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښې لیکلی دی چه لس درهم سپین زر دوه تولې اووه نیم ماشې وی.(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ۸: ۲۳۰ احکام مهر) حالانکه د مولانا مفتی محمدشفیع رحمه الله په اوزان شرعیه کښې دمهر کم نه کم مقدار ۳۱,۵ ماشه مطابق ۳۰,۶۱۸ گرام سپین زر لیکلی شوی دی.داپه دې حساب سره چه یو درهم درې ماشه ۱/۵ رتی وی.ددې حساب کولو سره دوه تولې اووه ماشې څلور رتئ راځی.ددې نه علاوه مولانا مفتی رشیداحمد لدهیانوی رحمه الله په ``بسط الباع لتحقیق الصاع،، کښې د درهم په وزن کښې دخپل تحقیق په بنا باندې اختلاف کړې دې، اولس درهم ئې ۲.۳۴ گرام چاندی گرځولې دی. بهرحال دا کمې زیاتې دمختلف علاقو ناپ تول د نورو علاقو ناپ تول کښې د اچولو په وجه ضروری دې. اود بنیاد مختلف کیدو په وجه دا اختلاف راوځی.او دا کمې زیاتې دومره لږ مقدار کښې وی چه ددې لحاظ نه کیږی پس ددې ټولو علماؤ تحقیقات صحیح او معتبر منلې شی......(از مرتب)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: المهر اقله عشرة دراهم ...... (بقیة حاشیه په راروانه صفحه)



ورد بذلک﴿۱﴾وهوالموفق

## د مهرشرعی د کم نه کم مقدار اود موجوده کرنسئ حساب سره تفصیل

**سوال:**څه فرمایئ علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دانگریزحکومت په وخت کښې شرعی حق مهر ۳۵ روپئ لس آنې وو چه کله دشپاړسوآنوروپئ شمارلې کیدله اوس غالباً د سنه ۷۱، ۷۲ء نه د روپئ قیمت کم شو لس

---

(بقیه حاشیه) لحدیث البیهقی وغیره لا مهر اقل من عشرة دراهم...... فضة وزن سبعة مثاقیل کما فی الزکاة مضروبة کانت اولا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۵۷ باب المهر)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: عن جابر رضی الله عنه یقول قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: ولا مهر اقل من عشرة، من الحدیث الطویل قال الحافظ: انه بهذا الاسناد حسن ولا اقل منه، وقال فی تخریجه الشیخ عبد الرزاق غالب المهدی: غریب فهذا الطریق لم یذکر وابن ابی حاتم فی علله ۱۲۰۸ عندما سأل ایاه عن هذا الحدیث وطرقه وتقدم کیف ابطله ابوحاتم فلو کان عند هذا الاسناد الحسن لذکره، وهذا الحدیث یعرف عن جابر من طریق مبشر بن عبید کذا رواه غیر واحد والیک الخبر، اخرج الدارقطنی ۳: ۲۴۵ والبیهقی ۷: ۱۳۳ کلاهما من حدیث جابر، لا تنکحوا النساء الا الاکفاء ولا یزوجهن الا الاولیاء ولا مهر دون عشرة دراهم، قال الدارقطنی والبیهقی فی اسناده مبشربن عبید وهو متروک واخرجه ابن الجوزی فی الموضوعات ۲: ۲۶۳ وقال: قال ابن عدی: هذا حدیث باطل لا یرویه الا مبشر بن عبید، قال احمد احادیثه موضوعات کذب، ومعا یدل علی ذلک ان ابن حجر خرج حدیث الکفاءة فی الکشاف ۱: ۲۶۳ مستوفیا فذکره من جمیع طرقه دون کونه من حدیث جابر ثم اذ عن لقول ابی حاتم: هذا الحدیث ضعیف من جمیع طرقه ولذا قال الزیلعی: طرقه کلها ضعیفة استوفیناها فی الاسعاف بتخریج الکشاف.

(فتح القدیر ۳: ۲۸۱ فصل فی الکفاءة)

یولس آنې شو خو په اندرون ملک کښې شپاړس آنې هم حساب چلیګې اوس دا افواه چلیګې چه سابقه ۳۵ روپۍ اولس انې دموجوده حساب یوسل شپږ یا یوسل او وروپۍ جوړیګې. ځما ذاتی فهم او پوهې مطابق که دروپۍ قمیت یولس انې حساب باندې خیال کړائشی نوموجوده باقی اوؤه پنځوس روپۍ جوړیګی. خو یوسل شپږ یا یوسل او وروپۍ دهیڅ حساب نه صحیح نه معلومیږی تاسو په دې قسم باندې غور اوکړئ او دتفصیلی حکم نه مو خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نائب صوبیدار شیر محمد راولپنډی........١٦/٤/١٩٧٥ء

**جواب:** واضحه دې وی چه مهرشرعی کم نه کم لس روپۍ شرعی دې یعنی دوه تولې اوونیمی ماشې نو دپنځلس روپۍ فی تولې حساب سره تقریباً یو کم یو کم څلویښت روپۍ کم نه کم شو ﴿۱﴾ او په مهر کښې دزیاتوالی څه حد مقرر نه دې. کما صرح وابه ﴿۲﴾. وهو الموفق

## کم نه کم د مهر شرعی په مقدار او زیاتوالی کښې مبالغه ښه نده

**سوال:** څه فرمایئ علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق په مهر کښې شپږ دیرش زره روپۍ او بعضې خلق شل زره روپۍ مقرروَلی شی او په اوله

---

**﴿۱﴾ قال الشیخ الغنیمی: واقل المهر عشرة دراهم وزن سبعة مثاقیل سواء کانت مضروبة او غیر مضروبة او ما قیمته عشرة دراهم یوم العقد.**

**(اللباب فی شرح الکتاب ۲: ۱۴۹ کتاب النکاح)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابی الحسن السغدی: واما المهر فانه لا نهایة لاکثره وفی اقله ثلاثة اقاویل قال ابو حنیفة واصحابه اقل المهر عشرة دراهم وما یکون دونها فهو مهر البغی الخ.**

**(النتف فی الفتاویٰ ص ۱۹۰ باب المهر)**



ورځ دواده جینۍ او هلک په یو کمره کښې بنده وی او تقریباً جینۍ مجبوره کړې او هغه ښننه او کړی ایا دا مقدار مهر مقررول جائز دی

المستفتی: نامعلوم........ ١٢ محرم ١٣٩٧ھ

**الجواب:** ښکاره دې وی چه مهر کم از کم لس روپۍ شرعی (دوه تولې اووه نیمې ماشې چاندی) کیدل پکار دی ﴿۱﴾ د دینه زیات مقررول مشروع دی. البته زیاتوالې ممدوح نه دې، ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: اقله عشرة دراهم فضة وزن سبعة مثاقیل قال ابن عابدین: هو ان یکون کل درهم اربعة عشر قیراطاً شرنبلالیة.**

**(الدر المختار مع رد المحتار ۲: ۳۵۷ باب المهر)**

د اوزان شرعیه (مفتی محمد شفیع رحمه الله) په آخر کښې نقشه رائج الوقت کښې دمهر کم از کم مقدار ۱۳٫۵ ماشه سپین زر لیکلې شوې دې. مطابق ۳۰٫۶۱۸ ګرام سپین زر لیکلې شوې دې. او مولانا مفتی رشید احمد رحمه الله ۳۴٫۰۲ ګرام سپین زر لیکلې دې.

**وقال العلامة عبد الرحمن الجزیری: وقدر بعضهم الدرهم الشرعی باربعة عشر قیراطاً وقدر القیراط باربع قمحات وسط، فیکون الدرهم ۵۶ قمحة، وقدره بعضهم بالخرنوبة، وقال ان الخرنوبة تزن اربع قمحات وهو یزن ۱۶ خرنوبة، فتکون زنة الدرهم ۶۴ قمحة، ولکن التحقیق ان المعتبر فی وزن الدرهم الشرعی ان یکون اربعة عشر قیراطاً کل قیراط یساوی خمس حباب، فتکون زنة الدرهم الشرعی سبعین حبة، فالمراد بالدرهم الصنجة وهی آلة الوزن المعروفة، وهی بالخرنوبة ۱۷ ۱/۲ لان الخرنوبة ۴ قمحات ویساوی الدرهم فی زماننا اربعة قروش صاغ تقریباً.**

**(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ۴: ۹۰ شروط المهر)**

**﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: (عن عمر بن الخطاب قال الا لا تغالوا صدقة النساء) ...... المغالاة التکثیر ای لا تکثروا مهورهن (فانها لو کانت مکرمة فی الدنیا وتقوی عند الله لکان اولاکم بها) ای بمغالاة المهور...... فان قلت: نهیه ......**(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## زیاتوالې د مهر مباح دې لیکن افضل نه دې

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه قبائل او خصوصاً افغانستان کښې مهر لس دولس لاکه روپۍ ایخودلې کیږی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سعید گل حقانی جلال اباد...۱۹۸۷ء۱۱۲۱

**جواب**:زیاتوالې په مهر کښې مباح دې لیکن افضل نه دې، لاثـر: **لاتغـالوا** بصداق النساء(ابوداؤد شریف:۲۸۷)﴿۱﴾ اوکوم مباح چه د فساد او گناه ذریعه جوړه شی هغه ممنوع کیږی، کما صرحوا بـه﴿۲﴾ تکثیرکه دربلاد افغانستان وغیره است ذریعه کثرت زناولواطت واستمناء بالیدوحرام خوری (والدین منکوحه) وغیرها است. پس د حکامو او علماؤ دپاره

---

**(بقیه حاشیه)عن المغالاة مخالف لقوله تعالیٰ ، فان آتیتم احداهن قنطاراً فلا تأخذوا منه شیئاً، قلت: النص یدل علی الجواز لا علی الافضلیة والکلام فیها لا فیه، لکن ورد فی بعض الروایات انه قال: لا تزیدوا فی مهور النساء علی اربعین اوقیة فمن زاد القیت الزیادة فی بیت المال، فقالت امرأة: ما ذاک لک؟ قال: ولم؟ قالت: لان الله یقول: وآتیتم احداهن قنطاراً، فقال عمر امرأة اصابت ورجل اخطأ.**

**(مرقاة المفاتیح ۶: ۳۵۹ باب الصداق الفصل الثانی)**

**﴿۱﴾(سنن ابی داؤد ۱ :۲۸۷ کتاب النکاح باب الصداق**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: لان الجهلة یعتقدونها سنة او واجبة وکل مباح یؤدی الیه فمکروه.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۵۷۷ قبیل باب صلاة المسافر)**

**وقال العلامة ابراهیم الحلبی: وکل مباح یؤدی الیه فمکروه انتهیٰ.**

**(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ۱ :۵۲۹ فصل فی مسائل شتیٰ)**



ضروری ده چه ددې مباحو مخ نیوې اوکړی.﴿۱﴾وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ اسلامی شریعت د هربالغ او بالغې په نکاح کولو اوډ واده ژوند تیرولو باندې زور ورکړې دې چه هرمسلمان په حلال او طیب طریقې سره نفسانی خواهشات پوره کړی اودا هغه وخت ممکن ده چه په واده او ازدواجی رشته کښې منسلک کیدل په آسانه او سهل طریقې سره وی. چه فقراء هم په آسانۍ سره فائده حاصله کړی. اوبالخصوص کله چه په عالم اسلام کښې نن صبا د فقراء اکثریت هم دې په دې وجه اسلام مغالات فی المهور مکروه گرځولې دې. اودا خبرئې ورکړې دې چه کله مهرکم وی نو هغه واده مبارك وی. اوکم مهر د ښځې مبارکی وی **عن عائشة رضی الله عنها ان النبی ﷺ قال: ان اعظم النکاح برکة، أیسره مؤنة"، وقال: یمن المرأة خفة مهرها ویسر نکاحها وحسن خلقها وشؤمها غلاء مهرها وعسر نکاحها وسوء خلقها".** لیکن نن صبا ډیرخلق ددې اسلامی تعلیماتو نه غافل دی اود جاهلیت عادت مغالات فی المهور کښې راگیرشوی دی. اود واده نه ډېره کول اختیاروی. البته که خاوند ورته ډیرمال ورکوی. اوښځې ئې کنگال کړی گویا چه ښځه د تجارت سامان جوړشوې دې او باقاعده بولی ئې کیږی. چه دې سره ډیر مفاسد پیداشوی دی چه ذمه دار مورپلار باقاعده دې ځوانانو هلکانو او جینکو ته ضرر او نقصان رسوی. چه ددې په نتیجه کښې ډیر مفاسد او شرونه پیداکیږی گویا چه حرام ته رسیدو نه حلال ته رسیدل ډیرمشکل او گران جوړشوی دی

شیخ الاسلام سید حسین احمد مدنی رحمه الله په یو مکتوب کښې لیکلی دی چه د هندوستان په عام رواج کښې مهر نه شی وصولوی. که کله ضرورت وی نود طلاق یا مرگ نه پس جائیداد والو سره کیږی گنی عام طور باندې عیبدار شمارلې شی آیا دا دښځو حق تلفی نه ده؟...... مهرمثل د ډیرو خاندانونو دومره دې چه د موجوده مسلمان هندوستانی ددې دادا کولو خیال هم نه شی کولې. واقعیت خو څه کوې په کتب فقه کښې دا جزئیه موجود ده چه که په نکاح کښې د زوج اراده د مهر اداکولو نه وی نود زوجینو اجتماع به سفاح وی...... حضرت عمر رضی الله عنه ولې ددې حق تلفۍ احساس اوکړو اود مغالاة فی الصداق نه ئې ولې منع اوکړه اود جناب رسول الله ﷺ بیبیانې او لونړه ئې په مثال کښې پیش کړلې لکه څنگه چه د غلطو رسمونو داصلاح کوشش شوې دې ددې هم کول پکاردی الخ. (فتاوی شیخ الاسلام ص۹۲ نکاح وطلاق)

په منهاج السنن شرح جامع ترمذی کښې دی فی ......

(بقیه په راروانه صفحه)

## زیاتوالي د مهر امر مندوب نه دې بلکه کموالې د مهر مندوب دې

**سوال:** څه فرمايئ علماء دين دې مسئله باره کښې چه په مهر مقرر کولو باندې اسلام څه پابندي نه ده لګولې خو ليکن نن صبا د مهر مقرر کولو په وخت د زلمي جائيداد او ماليت ته هيڅ غور نه شي کولې بلکه د مالدارو خلقو د تقليد دوجهې نه د مهر قيمت زيات شو حالانکه د اکثرو د ذاتي حيثيت جائيداد منقوله او غير منقوله د درج شوې پينځو زرو روپو نه هم کم وي. دې باره کښې وضاحت اوکړئ د دې د پاره چه اکثر عوام د دې روند تقليد نه نجات حاصل کړي؟ بينوا توجروا

المستفتي: ممتاز حسين بيروټ ايبټ آباد...... ۱۹۶۹/۹/۳۰

**جواب:** زياتوالي د مهر څه امر مندوب نه دې بلکې کموالې د مهر مندوب دې کما في الحديث﴿۱﴾ د عوامو د پاره د دې مندوب پابندي پکار ده﴿۲﴾

وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه) هذا الحديث دلالة على عدم استحباب الزيادة في المهر، والقرآن يدل على مشروعية الزيادة واباحتها دون ندبها والاصل ان كل مباح اذا افضى الى مفسدة فيكون حراما، والزيادة المفرطة المعروفة في بعض الديار تذرعت للزنا واللواطة والاغواء والامراض المهلكة والتعنيس فيجب على اهل الحل والعقد المنع عن هذه الزيادة سداً لباب الفتنة. (منهاج السنن شرح ترمذي ۴:۲۶۸ باب مهور النساء)......از مرتب

﴿۱﴾عن عمر بن الخطاب قال: الا لا تغالوا صدقة النساء فانها لو كانت مكرمة في الدنيا وتقوىٰ عند الله لكان اولكم بها نبي الله ﷺ ما علمت رسول الله ﷺ نكح شيئا من نسائه ولا انكح شيئا من بناته على اكثر من اثنتى عشرة اوقية رواه احمد والترمذي وابو داؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي.

(مشكواة المصابيح ۲:۲۹۹ باب الصداق الفصل الثاني)

﴿۲﴾ قال الملاعلي قاري: فان قلت: نهيه ......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## تکثير مهر مباح دې خو د ذريعې د محرماتو د جوړيدلو دوجهې نه منع کړې شوې دې

**سوال:** څه فرمايئ علماء دين دې مسئلې باره چه يو قوم اتفاق اوکړو چه د ښځې مهر به د دېرش زره نه زيات نه اېښودلې کيږي دا فيصله د دې وجهې نه اوشوه چه عام خلقو ډېر زيات مهر مقررولو نو د دې وجهې نه څه خرابياني پيدا شوې وې اوس بعضې خلق وايئ چه د لفظ قنطار نه معلومه شوه چه قوم د کم مهر اېښودلو فيصله نشي کولې دې باره کښې د شريعت څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: زلفه خان ټانک جنوبي وزيرستان...... ۱۹۸۷/۳/۱۰

**جواب:** مهر کښې مبالغه په بنياد د ترمذي حديث افضل نه ده﴿۱﴾ او په بنياد د قرآن مباح او مشروع ده﴿۲﴾ او قاعده داده چه مباح ذريعه د محرماتو جوړه شي هغه حرام کيږي. والمغالاة في هذا العهد من هذا القبيل كما كثار الزنا وغيره وبيع الاحرار وغير ذلک﴿۳﴾. وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه)عن المغالاة مخالف لقوله تعالىٰ: فان آتيتم احداهن قنطارا فلا تأخذوا منه شيئا، قلت: النص يدل على الجواز لا على الافضلية والكلام فيها لا فيه.

(مرقاة المفاتيح ۶:۳۵۹ باب الصداق الفصل الثاني)

﴿۱﴾عن عمر بن الخطاب قال الا لا تغالوا صدقة النساء فانها لو كانت مكرمة في الدنيا وتقوى عند الله لكان اولكم بها نبي الله ﷺ ما علمت رسول الله ﷺ نكح شيئاً من نسائه ولا انكح شيئا من بناته على اكثر من اثنتى عشرة اوقية رواه احمد والترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجه والدارمي. (مشكواة المصابيح ۲:۲۹۹ باب الصداق الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال الله تبارک وتعالىٰ: وآتيتم احداهن قنطارا فلا تأخذوا منه شيئا.

(سورة النساء پاره:۴ رکوع:۱۴، آيت:۲۰)

﴿۳﴾وفي المنهاج: في هذا الحديث دلالة على عدم استحباب الزيادة في المهر، والقرآن يدل على مشروعية الزيادة واباحتها دون ندبها، والاصل .....

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## په مغالات فی المهر کښې د اعتداء مخ نیوي د اهل حل وعقد (حکمرانانو) د پاره جائزدي

**سوال:** څه فرمايئ علماء دين دې مسئلې په باره کښې چه دمهر کثير حد څه دې. زمونږ په علاقه کښې امير صاحب اووزره روپئ حدمقرر کړې دې. اوددې نه زيات مقرر کؤلو باندې جرمانه اخلي آيا داجائزدی؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانامحمد طاهر ميرانشاه شمالي وزيرستان ۱۳/۱ شعبان ۱۴۰۳ء

**جواب:** کله چه قوم په اعتداء کښې مبتلاشي نو اهل حل و عقد دمخ نيوی اقدامات کولې شي كما اذاتجاوزواعن الحد فى التسعير ﴿۱﴾ پس دامیرد ااقدام قابل دتعريف دې خصوصاًچه هر کله دياتتاً مهر کښې حسب حديث

---

(بقيه حاشيه) ان كل مباح اذا افضى الى مفسدة فيكون حراماً، والزيادة المفرطة المعروفة فى بعض الديار تذرعت للزنا واللواطة والاغواء والامراض المهلكة والتعنيس فيجب على اهل الحل والعقد المنع عن هذه الزيادة سدالباب الفتنة.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۲۶۸ باب مهور النساء)

﴿۱﴾ قال الشيخ عبد الرحمن بن نصر الشيزرى: ولا يجوز للمحتسب تسعير البضائع على اربابها ولا ان يلزمهم بيعها بسعر معلوم لان السعر غلا على عهد رسول الله ﷺ فقالوا: يا رسول الله، سعر لنا فقال رسول الله ﷺ ان الله هو المسعر وانى لأرجوان القى الله وليس احد يطالبنى بمظلمة فى نفس ولا مال. (رواه ابوداؤد والترمذى وابن ماجة واحمد فى مسنده) واذا رأى المحتسب احدا قد احتكر الطعام من سائر الاقوات وهو ان يشترى ذلک فى وقت الرخاء ويتربص به الغلاء فيزداد ثمنه الزمه بيعه اجباراً لان الاحتكار حرام والمنع من فعل الحرام واجب وقد قال رسول الله ﷺ الجالب مرزوق والمحتكر ملعون...... الاحتكار يقال احتكر وتحكر الطعام جمعه وحبسه عن البيع ليقل فيغلو سعره...... والمحتكر هو من يجمع السلع انتظاراً لبيعها بسعر غال بحيث يضيق على المواطن شراؤها الخ. (كتاب السياسة ۲۱۷ نهاية الرتبة الباب الثانى فى الاسواق)

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



(الا لا تغالوا بصداق النساء) ﴿۱﴾ کم والې دې. وهو الموفق

## باقاعده مهر مقررولو سره شغار متحقق کيږی نه

**سوال:** څه فرمائی علماء دين دې مسئله باره کښې چه دلور يادخور تبادله څنګه ده؟ چه هر کله دواړو دپاره مهرهم مقرر کړې شوې وی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالصمد افغانی پشاور......... ۱۵/۱/۱۹۸۴ء

**جواب:** اگرمهرباقاعده مقررشده باشد ممنوع و شغارنيست. شامی وغيره ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

(بقيه حاشيه) وقال العلامة محمد بن الحسينى الحنفى: سئل عن متولى الحسبة اذا سعر البضائع بالقيمة وتعدى بعض السوقية وباع باكثر من القيمة هل له ان يعزره على ذلک اجاب اذا تعدى السوقى وباع باكثر من القيمة يعزر على ذلک من فتاوىٰ ابن نجيم. (فتاوىٰ انقروية ۱: ۱۵۹ التعزير قبيل كتاب السرقة)

﴿۱﴾ (سنن ابى داؤد ۱: ۲۸۷ باب الصداق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: وحاصله انه مع ايجاب مهر المثل لم يبق شغارا حقيقة وان سلم فالنهى على معنى الكراهة فيكون الشرع اوجب فيه امرين الكراهة ومهر المثل فالاول ماخوذ من النهى والثانى من الادلة الدالة على ان ما سمى فيه ما لا يصلح مهراً ينعقد موجبا لمهر المثل وهذا الثانى دليل على حمل النهى على الكراهة دون الفساد وبهذا التقرير اندفع ما اورد من ان حمله على الكراهة يقتضى ان الشغار الآن غير منهى عنه لا يجابنا فيه مهر المثل ووجه الدفع انه اذا حمل النهى على معنى الفساد فكونه غير منهى الآن اى بعد ايجاب مهر المثل مسلم وان حمل على معنى الكراهة فالنهى باق، فافهم.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۶۱ مطلب نكاح الشغار)

## مهر مقرر کولونه پس مشترکه رضامندئ سره دې کښې کمې زیاتې جائزدې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه پلار دلور دپاره دخپل طرف نه دحق مهر په طورباندې دنکاح نه مخکښې ددووزرروپو کور اولیکلو .خوداصرف وعده ده بیا دنکاح په وخت دخپل دستور مطابق یوسل پنځویشت روپې حق مهراوترولواوبس.اوس په دې صورت کښې به هغه اولنئ دووزرو روپووالا مهرصحیح منلې کیږی یاهغه چه دنکاح په وخت مقررشوې وو؟ بینوا توجروا

المستفتی:احمددین زرگر کیملپور......١٩٧٥ء١٦١٢

**جواب:** که چرته دادوئم مهردجانبینو په رضاسره مقررشوی وی نوهم دغه منظوردې ګنی مهرسابق به منظوروی. لجوازالحط والزیادة فی المهر کماصرحوابه فلیراجع الی ردالمحتار﴿١﴾وهوالموفق

## د ښځې د مرضئ نه بغیر مهرکښې کمې جائزنه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې له د بدکارئ دالزام په وجهې سره طلاق ورکړواوښځې هم په بدکارئ اقراراوکړو اوس ښځه خپل مهرغواړی خولیکن خاوندکم مهرورکوی اوښځه پوره مهر غواړی.خاوندپه دې کښې دواده خرچ اودنوروا خراجاتو هم مدعی دې اوس

﴿١﴾قال العلامة الحصكفی: وما فرض بتراضیهما بعد العقد او زید علی ما سمی فانها تلزمه بشرط قبولها فی المجلس او قبول ولی الصغیرة...... وصح حطها لكله او بعضه، قال ابن عابدین: (بشرط قبولها) افاد انها صحیحة ولو بلا شهود او بعد هبة المهر والا براء منه وهی من جنس المهر او من غیر جنسه بحر وسواء كانت من الزوج او ولی فقد صرحوا بان الاب والجد لو زوج ابنه ثم زاد فی المهر صح الخ.

(الدرالمختار مع رادالمحتار ٢: ٣٦٥ مطلب فی حط المهر والابراء منه)



ددې جهګړې دحل دپاره یوه جرګه اوشوه اودواړو ښځه خاوند جرګې ته دفیصلې اختیارورکړو.جرګې والاو مینځه ګړې فیصلې باندې خاوند نه مهر واخستلو خودخاوند ددعوی نه زیات اودښځې ددعوی نه کم.اوس شرعی حل ددې مسئله څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:اراکین جرګه...... ١٩٨٤ء٣١٢٩

**جواب:** واضحه دی وی چه صورت مسئوله کښې خاوندباندې ټول مهرښځې ته ورکول لازم اوفرض دی اودبدکارې دعیب په وجه سره په دې مهرکښې ددې ښځې دمرضې نه بغیر کمې کول جائزنه دی﴿١﴾البته که دې جرګې طرفینو نه اختیاراخستلونه پس دامذکوره فیصله کړې وی نوطرفینو باندې ددې پابندی شرعاضروری ده﴿٢﴾ وهوالموفق

## یوځلې مجلس کښې د مهر مقررولونه پس د زیاتوالی د مطالبې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه یوسړی دخپلې اتوکالو نابالغه لورنکاح پنځه سوه روپومهرباندې اوکړو.اوس دجینئ دبلوغت نه پس پلارپه ضددې چه زه دخپلې لور نکاح به دوباره بعوض مهرمبلغ لس زره روپئ باندې کوم.په امرد مجبورئ سره خاوندپه دې راضی شو اودوباره

﴿١﴾ وفی الهندية: وان حطت عن مهرها صح الحط كذا فی الهداية ولا بد فی صحة حطها من الرضاحتی لو كانت مكرهة لم يصح.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٣١٣ الفصل السابع فی الزيادة فی المهر والحط الخ)

﴿٢﴾قال الشيخ شمس الحق الافغانی: ولا ينفذ حكم المحكم الا فی حق الخصمين الذين حكماه دون غيرهما ولكل من المحكمين الرجوع قبل الحكم واذا حكم لزمهما اذا كان موافقاً لاصول الشرع كذا فی المجلة.

(معين القضاة والمفتيين ٦٤ الباب الحادی عشر فی التحكيم)

نکاح بعوض لس زره روپئ اوتړلي شوه. اوس دریافت طلب مسئله داده چه دا خاوند خپلي ښځي ته داول مهردورکولو مجازدي یادلس زره روپئ ورکولو؟ بینوا توجروا

المستفتی محمد عمرثاقب خطیب مسجد ملک پوره مانسهره ۲۵/۲/۱۹۸۶ء

**جواب:** دازیاتوالي په ظاهره جائزدي خوپه حقیقت کښي رشوت دي او ناجائز دي کما یدل علیه ما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲:۵۰۳ اخذ اهل المرأة شیئا عند التسلیم فللزوج ان یسترده لانه رشوة، وفی ردالمحتار ای بان ابی ان یسلمها اخوها او نحوه حتی یأخذ شیئا وکذا لو ابی ان یزوجها فللزوج الاسترداد، فافهم ﴿۱﴾ فیما قصده ابوها من تجدید العقد. وهوالموفق

## د مهر د کمی اختیارجینئ ته حاصل دي والدین اوجرګي ته نه

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئله باره کښي چه دیو سړي لوردبل سړي په کورکښي وادشوه اودهغه بل سړي لورد ده په کورکښي آباده شوه یعنی تبادله يې اوکړه اوس یوهلک دوه کاله پس وائی چه داجینئ ساده ده زه دیته طلاق ورکوم حالانکه دساده والی ثبوت يې دنکاح په وخت وهم خودلي وواوس بغیردوجهی نه طلاق باندي مقررشوي مهرپنځه سوه روپئ ورکول لازمی دی یانه؟ جرګه مهرمقررکمولي شی یانه؟ ایایوسړی دي جنیئ ته دري سوه روپئ مهرورکولي شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی محمدمسکین بلندکوټ ...... یکم مارچ ۱۹۷۵ء

**جواب:** واضحه دي وی که داساده جینئ عاقله اوبالغه وی نودټول یادبعضي مهرمعاف کولو اختیارهم دي سرد دي نه چه والدین یاجرګي سرد او که دا

﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۹۷ قبیل مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عاریة)



جینئ عاقله اوبالغه نه وی نواوس دامهرتمام یابعضي هیڅوک هم معاف کولي نه شی یعني نه پخپله اونه نورخلق ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په مهرکښي ورکړی شوی دوکان دښځي د مرضی یاد هبې نه بغیربل کس ته ورکول جائزنه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئله باره کښي چه مسمی رجب دخپل زوئی د رشتې دپاره په مهرکښي دوکان ورکړو نقل کاغذات هم ستاسوپه خدمت کښي ارسال دی، بیاواده وشوخولیکن دنوروخامنودتقسیم په وخت کښي دهغه دوکان هم په تقسیم کښي شامل کړو ددي شرعی حکم څه دي؟ بینوا توجروا

المستفتی محمد اقبال تحصیل مری ۵/۸/۱۹۷۹ء

**جواب:** که چرته رجب دمهرپه معاوضه کښي ددي دوکان ورکول مسلم یا مبرهن وی نوددي نه پس رجب دپاره جائزنه دی چه ددي جینئ دمرضي یادهبې نه بغیردادوکان چاته ورکړی دادوکان دده دملکیت نه خارج شوي دي حالانکي درجب ضمانتي کیدل هم صریحا یاعرفا ثابت دی.

یدل علیه ما فی ردالمحتار ۳:۱۴۳ فی الفیض ولو اعطی ضیعة بمهر امرأة ابنه ولم تقبضها حتی مات الاب فباعتها المرأة لم یصح الا اذا ضمن الاب المهر ثم اعطی الضیعة به فحینئذ لا حاجة الی القبض ﴿۲﴾. وهوالموفق

## په حق مهرکښي ورکړي شوی څیز د ښځي ملکیت دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دي مسئله باره کښي چه یوسړي دزوئ دواده په

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وصح حطها لکله او بعضه عنه قبل اولا ویرتد بالرد کما فی البحر، قال ابن عابدین: الحط الاسقاط کما فی المغرب وقید بحطها لان حط ابیها غیر صحیح لو صغیرة ولو کبیرة توقف علی اجازتها ولا بد من رضاها ففی هبة الخلاصة خوفها بضرب حتی وهبت مهرها لم یصح لو قادراً علی الضرب الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۶۶ مطلب فی حط المهر والابراء منه)

﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۸۸ مطلب فی منع الزوجة نفسها لقبض المهر)

وخت هغه ښځې ته څه زمکه حق مهر کښې ورکړه ایا ددې سړی د مرګ نه پس په حق مهر کښې ورکړې شوې زمکه په وارثت کښې واپس اخستل او په وارثانو تقسیم کول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مصطفی خان مانسهره

**جواب**: حق مهر د ښځې ملکیت دې لهذا په د ې کښې به ددې سړی هیڅ حق نه وی (۱) وهوالموفق

## د نقد مهر په عوض کښې زمکه وغیره ورکول په اجماع سره جائز دی

څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه دوه نیم کاله مخکښې دمسماة اپ اعقدنکاح دمسمی اع اسره په عوض دحق مهر په شپږزره روپۍ وشوه دمسماة اپ اوکیل دامقرر کړو او مخامخ دنکاح په مجلس کښې د مسماة اع او کیل قبول کړه بیاامام دخطبه مسنونه وئیلونه پس دعاء خیر او کړه دواده درسم په وخت کښې مسماة اپ ا زرروپۍ معاف کړې او د څلورو زرو په عوض کښې زمکه او دزرو روپو په عوض کښې ئي یو غوا وصول کړه اوس درې میاشتې پس خلق پروپیګنډه کوی چه تجدید دنکاح ضروری دې ددې مسئلې حقیقت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سخی عمران

**الجواب**: دمهر په عوض کښې زمکه وغیره اخستل په اجماع سره جائز دی او د

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الغنی الغنیمی: ومن سمی مهراً عشرة فما زاد ای فاکثر فعلیه المسمی ان دخل او خلابها خلوة صحیحة او مات عنها او ماتت عنه لانه بالدخول یتحقق تسلیم المبدل وبه یتأکد البدل وبالموت ینتهی النکاح والشئ بانتهائه یتأکد ویتقرر بجمیع مواجبه.

(اللباب فی شرح الکتاب ۲: ۱۵۰ کتاب النکاح)



عوض دورکولو په وخت کښې نه تجدید دنکاح ضروری دې او نه خطبه د نکاح وئیل مسنون دی ددې پروپیګنډې نه تاسو متاثره نه شئ (۱) وهوالموفق

## مهر کښې بخشش کول جائز دی او ناجائزې حیلې ناجائز دی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه دافغانستان په بعضې علاقو کښې داحیله کولې شی چه عاقله بالغه جینۍ خپل رور یا پلار ته وائی چه ځما مهر پخپلې مرضې سره مقرر کړه او ته ئي واخله داز ما د طرف نه ستا دپاره بخشش دې او دیرش څلویښت زره روپۍ اخستلې شی ایا داطریقه او حیله صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: ریاض محمد نورستانی مدرسه احیاءالعلوم چارسده ۱۹۸۴ء ۱\۵\۳

**جواب**: دابخشش او هبه صحیح ده (۲) البته دعقدنکاح په وخت کم مهر مقررولو نه معلومیږی چه مخکښې ډیر مهرنه وو بلکه ثمن یا جبر وو. وهوالموفق

## په مهر کښې د کور د دریمې حصه اخستلو یا د هغې په بدله کښې د درې سوو روپو اخستلو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئله باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې ته

﴿۱﴾ وفی الهندیة: واذا تزوجها علی هذا العبد وهو ملک الغیر او علی هذه الدار وهی ملک الغیر فالنکاح جائز والتسمیة صحیحة فبعد ذلک ینظر ان اجاز صاحب الدار وصاحب العبد ذلک فلها عین المسمی وان لم یجز المستحق لا یبطل النکاح ولا التسمیة حتی لا یجب مهر المثل وانما تجب قیمة المسمی کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۰۳ الباب السابع فی المهر الفصل الاول)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: للمرأة ان تهب مالها لزوجها من صداق دخل بها زوجها اولم یدخل ولیس لاحد من اولیائها اب ولا غیره الاعتراض ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

مهرکښې دنن نه څو کاله مخکښې دکوردریمه حصه لیکلې وه لیکن بیا
فیصله په دې اوشوه که دې کله هم دکوردا خستلو مطالبه اوکړه نودې به د
کورپه ځائې درې سوه روپې ورکوی اوس هغه ښځې مطالبه اوکړه اوهغې ته
درې سوه روپې ورکول غواړی مګرهغه وائی چه اوس دکورقیمت زیات دې
ماته زیاتې روپې راکړه ایاداطالبه جائزده؟بینوا توجروا

المستفتی:امیرزاده کانګړه چارسده......١٥ربیع الاول١٤٠١

**جواب:** دابنځه ددې کورددریمې حصه مالکه ده اوس ددې مرضی ده چه
دریمې حصه باندې راضی کیږی یانه.لان الامهارمن اسباب الملک﴿١﴾
وهوالموفق

## د پورتنۍ مسئلې متعلق بل تپوس

**سوال:** یوسړی دنن نه څوکاله وړاندې دکوردریمه حصه په مقابله ددرې سوو
روپو بوکنډې ښځې مهرمقررکړه فیصله اوشوه چه دیته ددریمې حصې د
کوردرې سوه روپې ورکړی اوس لهذاقیمت زیات دې ددې وجهې نه ښځه
زیاتې پسې غواړی شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی امیر زاده کانګړه......١٨رجب١٤٠١ء

**جواب:** بشرط صدق وثبوت دابنځه صرف ددرې سووروپوحقداره ده یعنی که
چرته دامعامله معاوضه وی که چرته صرف وعده وه نودښځې دمرضې
خلاف به قیست نامنظوروی﴿٢﴾وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) علیها...... ولو وهبت من ورثته یجوز.
(فتاویٰ عالمگیریة ١:٣١٦ الفصل العاشر فی هبة المهر)
﴿١﴾قال العلامة ابن نجیم: اسباب التملک المعاوضات المالیة والامهار والخلع
العاشرة یملک الصداق بالعقد فالزوائد لها قبل القبض الخ.
(الاشباه والنظائر ٣٤٠ القول فی الملک)
﴿٢﴾وفی الهندیة: واذا تزوجها علی هذا العبد وهو......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د مهرسره د ماهوارۍ درقم د ورکولورسم په اصل کښې نفقه ده مهرنه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه نن صبادواده په موقع
باندې دمهرسره ماهوارهم لیکلې کیږی مثلاًیواوسل شل روپې مهر او
پنځوس دماهوارې رقم وغیره دقرآن اوحدیث په رڼړاکښې ددې حکم څه دې
ماهانه رقم عموماهغه وخت طلب کیږی کله چه جینۍ دخه ناچارې دوجهې نه
مورکره لاړه شی بیاجینۍ خواه هغلته پنځوس روپې خرچ کوی یاڅلس روپې
خرچ کوی ددې ماهوارې رقم شرعی حکم څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: مشتاق احمد......٢٤رجب١٣٩٣ء

**جواب:** چونکه دارقم بطورنفقه مقررکړې شوې دې لهذاپه ددې په ورکولو
اخستلوکښې څه حرج نشته.البته دناشزې دپاره ددې اخستل حرام
دی﴿١﴾وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) ملک الغیر او علی هذه الدار وهی ملک الغیر فالنکاح جائز والتسمیة
صحیحة فبعد ذلک ینظر ان اجاز صاحب الدار وصاحب العبد ذلک فلها عین المسمی
وان لم یجز المستحق لا یبطل النکاح ولا التسمیة حتی لا یجب مهر المثل وانما تجب قیمة
المسمی کذا فی المحیط.
(فتاویٰ عالمگیریة ١:٣٠٣ الباب السابع فی المهر)
﴿١﴾قال العلامة القهستانی: تجب النفقة...... والکسوة...... والسکنیٰ...... علی الزوج ولو
صغیرا...... بقدر حالهما ای الزوجین وعلیه الفتویٰ کما فی الهدایة وذکر فی الخزانة انه بقدر
حالها فینفق بقدر ما یقدر والباقی دین علیه لکن فی ظاهر الروایة انه بقدر حاله وهو الصحیح
فوجب بقدر طاقته...... لا تجب النفقة لناشزة ما دامت علی تلک الحالة...... خرجت من بیته
خروجاً حقیقیا او حکمیا بغیر حق.
(جامع الرموز ١:٥٩٥ فصل فی النفقة)

## د غیرمتعین یعنی د نامعلومو ځیزونوپه مهرکښې د اخستلوورکولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه یو سړی دواده نه مخکښې خپلې ښځې ته څه زمکه زیورات یایو کورپه عوض دحق مهر ورکولوسره منظورکړه اوددې ځیزونوسهام یئ هم اولیکلولیکن د زیوراتو اود کورنه علاوه په پخپله ټوله زندګئ کښې نورڅه ورنکړه ایا د خاوند د وفات نه پس هغه ښځه دمذکوره باقی حق مهردخاونددوارثانو(فرزندان او دختران) نه دوصول کولوشرعاحق لری؟ بینوا توجروا

المستفی: محمدایوب مقام ډهکی ډی آی خان...... ١٢/٨/١٩٧٧ء

**جواب:** که چرته دازمکه متعین کړې شوې وی نوددې دحق مهر کیدلواوپه میراث باندې مقدم کیدلو کښې هیڅ خفا نشته. اوکه چرته متعین شوې نه وی نوپه درمیانه زمکه چه (نه ډیره ښه وی اونه ډیره خرابه وی) یاددې قیمت به حق مهروی اوپه وراثت باندې به هم مقدم وی.

کما فی الهندیة: ونوع هو معلوم الجنس مجهول الوصف کما لو تزوجها علی عبد او فرس او دابة او ثوب هروی یجب الوسط ان شاء ادی عینه وان شاء ادی قیمته کذا فی الظهیریة (١:٣٢٩)﴿١﴾. وهوالموفق

## مهر مؤجل وی یا معجل مشروع دې او د بعضو معجل کول سنت دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ایا شرعاً دا ضروری ده چه د مهر رقم معجل(یکمشت) د نکاح د رسم په وخت کښې ادا کول بهتر دی یا څه رقم(عام طور باندې نیم) مؤجل کول هم لازمی دی؟ نیز یاد دې وی چه د مهر مؤجل رقم چه واجب الاداء دې روستو دنکاح نه د هغې په ورکولو باندې څه غور نه کیږی. بلکه په ژوند کښې اکثر نظر انداز کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیرمحمد نائب صوبیدارراولپنډی...... ١٣ربیع الثانی ١٣٩٥ء

﴿١﴾ فتاویٰ عالمگیریه ١:٣٠٩ الفصل الخامس فی المهر تدخله الجهالة)



**الجواب:** مهرخواه ټول معجل وی یا ټول مؤجل وی یا بعضې معجل وی نو په دې کښې هیڅ یو صورت غیر مشروع نه دې ﴿١﴾ البته بعضې لره معجل کول سنت دی ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د مهر مؤجل او د معجل د اداکولو او د اقسامو احکام

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په نکاح نامه رجسټرار کښې لیکلې شوی وی (الف) مهر مؤجل به په وخت د مطالبې ادا کوم (ب) یا مثلاً اته سوه روپئ مهر مقرر شوې وی نو دا شرط درج وی چه سل روپئ به میاشت په میاشت ادا کوم. سوال دادې چه ایا دا مهرمؤجل دې یا معجل. کله کله مونږ د نکاح رجسټرارو ته په دې کښې قانونی رکاوټ مخې ته راځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی فقیرحسین خطیب مسجد باباکرم شاه نوشهره ١٢/١٠/١٩٨٧ء

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی: فتسلیم البعض لا یوجب تسلیم الباقی لاخذ ما بین تعجیله من المهر کله او بعضه او اخذ قدر ما یعجل لمثلها عرفا به یفتیٰ...... ان لم یؤجل او یعجل کله فکما شرط لان الصریح یفوق الدلالة الا اذا جهل الاجل جهالة فاحشة فیجب حالا غایة الا التاجیل الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٨٩ قبیل مطلب فی السفر بالزوجة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: حدیث التمس ولو خاتما من حدید یجب حملها علی انه المعجل وذلک لان العادة عندهم تعجیل بعض المهر قبل الدخول حتی ذهب بعض العلماء الی انه لا یدخل بها حتی یقدم شیئا لها تمسکا بمنعه علیه السلام علیا ان یدخل بفاطمة رضی الله عنها حتی یعطیها شیئا فقال یا رسول الله لیس لی شیٔ فقال اعطها درعک فاعطاها درعه رواه ابوداؤد والنسائی ومعلوم ان الصداق کان اربع مأة درهم وهی فضة لکن المختار الجواز قبله لما روت عائشة رضی الله تعالیٰ عنها قالت امرنی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان أدخل امرأة علی زوجها قبل ان یعطیها شیئا رواه ابوداؤد.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢ :٣٥٧ باب المهر)

**جواب:** مهر معجل هغه مهر ته وئیلې کیږي چه د جماع نه مخکښې ادا کولې کیږي. او د مهرمؤجل درې اقسام دی:

(۱) چه دهغې د ادا کولو تاریخ متعین وی مثلاً یکم رمضان

(۲) چه دهغې د ادا کولو تاریخ (قسطوار) وی مثلاً دمیاشتې سل روپئ

(۳) چه د هغې د اداکولوتاریخ مجهول وی مثلاً مستقبل کښې د ائنده دپاره.

د مهرمعجل حکم ښکاره دې او د مهرمؤجل حکم دادې چه حسب شرط به ادا کولې شی او که چرته د شرط د وقوع نه مخکښې طلاق یا مرګ واقع شی نو مزید تاخیر کول جائز نه دی (ماخوذ ازهندیه) ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د واده په غوختلو باندې د هلک نه رقم طلب کول حرام خوری ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه شپږ کاله مخکښې دیو هلک او جینئ په مینځ کښې رشته تړلې شوې وه اوس چه کله هلک والو شپږ کاله پس رشته طلب کړه ځکه چه هلک او جینئ دواړه ځوانان دی. او د واده دپاره ئې اووئیل نود جینئ پلار په نفی کښې جواب ورکولوسره اووئیل چه مزید پنځلس سوه روپئ راکړه هله به رشته ملاویږی. حالانکه ددې نه مخکښې ئې تقریباً شپږزره روپئ خوړلې دی. شریعت محمدی کښې ددې سړی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداکرم کوهاله مری.....۱۹۷۸ء۱۸۱/۳۰

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: لا خلاف لاحد ان تأجیل المهر الی غایة معلومة نحو شهر او سنة صحیح وان کان لا الی غایة معلومة فقد اختلف المشائخ فیه قال بعضهم یصح وهو الصحیح وهذا لان الغایة معلومة فی نفسها وهو الطلاق او الموت الا یری ان تأجیل البعض صحیح وان لم ینصا علی غایة معلومة کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۱۸ الفصل الحادی عشر فی التأجیل في المهر وغیره)



**الجواب:** دا سړې (دجینئ پلار) حرام خور او فاسق دې. ناکح دا ټول رقم د ده نه واپس اخستلې شی.

کما فی شرح التنویر: اخذ اهل المرأة شیئا عند التسلیم فللزوج ان یسترده لانه رشوة، وفی ردالمحتار ۲:۵۰۳ قوله عند التسلیم ای بان ابی ان یسلمها اخوها او نحوه وکذا لو ابی ان یزوجها فللزوج الاسترداد قائما او هالکاً ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د واده په موقع باندې د جینئ د کور د روټئ خرچه د خاوند نه د وصولولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړی صبا واده دې او ښځې نن د جینئ په کور کښې جمع شی او د هغوی دپاره خوراک تیارولې شی او په هغه خوراک چه کومه خرچه راځی هغه ټول په ټوله د هلک والو نه وصولولې شی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب خان کراچی نمبر ۸. یکم ربیع الثانی ۱۴۰۳ ھ

**جواب:** که چرته د هلک نه وصول شده خرچه په مهر کښې شمار کړې شی نو څه جواز راوتلې شی ګنې دا اوهم دغه شان جینئ د طرف نه خوراک تیارول رسوم قبیحه دی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۹۷ قبیل مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عاریة)

﴿۲﴾ قال العلامة مفتی کفایت الله الدهلوی: دا رقم کوم چه د زوج نه مخکښې د عقد نه یا روستو دعقد نه دې غرض دپاره اوپه دې نوم اخستلې شی چه په دې به دجنج خپلوانو عزیزانوته خوراک ورکولې شی. ناجائزدې. اوددې حکم هغه دې کوم چه په دې عبارت کښې ذکردې. ولو اخذ اهل المراة شیئاً عندالتسلیم فللزوج ان یسترده لانه رشوة، اوپه دې عبارت کښې دی. ومن السحت ما یاخذه الصهر من الختن بسبب بنته بطیب نفسه حتی لو کان یطلبه یرجع الختن به. او معروف څیزونه کدرهم النقش والحمام (شامی کتاب النکاح ۳:۱۳۰ سعید) وغیره چه کوم حکم په شامی کښې ذکردې داټول هغه څیزونه دی کوم چه د ښځې په مهرکښې حسابیږی اوپه دې وجه دې لره بقدر مایعجل من المهر د وجوب تقدیم دحکم په ضمن.........(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مهر په حیلې سره د جینۍ والدین پیسو اخستلوسره حرام خوری کوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې د ښځو حق مهر دومره زیات دې چه د نادارو او عامو خلقو دپاره د یو پریشانۍ باعث جوړ شوې دې. او د جینۍ والدینو هغې لره د امدنۍ یو مستقل ذریعه جوړه کړې ده. شپیته اوویازره نن صبا کم نه کم مقدار دې، مذکوره رقم کښې صرف د لسو پنځلسوزرو سامان وی باقی والدین اوخوری ددې متعلق د شریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد هاشم بلوچستان... ۱۹۸۷ء ۲۱\۹

**جواب:** د جینۍ دا پلار حرام خور دې﴿۱﴾ ددینه بچ کیدل د الله په ویره سره کیدلې شی یا د حکومت او د قوم په حدبندۍ سره؛ وهو الموفق

## د والدینو د مهر په نوم پیسې اخستل د ازادې ښځې خرڅول او حرام خوری ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دلته دا رواج دې چه د

(بقیه حاشیه) کښې بیان کړی دی او ددې خیزونو دښځې دپاره کیدل ظاهر اوپه دې وجه په مهرکښې حساب کیدل یقینی دی او ددې وجوب علی انها من المهر هغه وخت دی چه عرف بین ثابت وی اور خاوند هم دا تسلیموی کنی داهم غیرلازم دی. او مخکښې رقم کوم چه د خوراک ورکولو دپاره اخستلې شی ددې په مهر کښې نه حساب کیدل بلکه نه کیدل ظاهردی ځکه چه دمهر رقم په جنج والؤ او خپلوانو عزیزانوو باندې دخرچ کولو حق دښځې اولیاؤ ته نشته او د ښځې په کارنه راتلل ددې ښکاره دی.

(کفایت المفتی ۵: ۱۱۴ کتاب النکاح)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: اخذ اهل المرأة شيئا عند التسليم فللزوج ان يسترده لانه رشوة، وقال ابن عابدين: ای بان ابى ان يسلمها اخوها او نحوه حتى يأخذ شيئا وكذا لو ابى ان يزوجها فللزوج الاسترداد قائما او هالكا لانه رشوة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۹۷ قبيل مطلب فی دعوى الاب ان الجهاز عارية)



لور یا د خورد واده فیصله کولووخت کښې پلار یا رور دشلو زرو نه واخله تر یولاکهه پورې پیسې اخلی بعضې خلق ددې په شپږمې حصې رقم باندې د جینۍ دپاره کالی او سامان اخلی. او بعضې په کښې ټول رقم خوری ددې حقیقت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد خان لکړمنډی بنوں...... ۱۹۸۴ء ۱۰\۱۱\۲۱

**جواب:** د مهر کم نه کم مقدار دوه نیمې تولې چاندی ده او د زیاتو دپاره څه حد منقول نه دې﴿۱﴾ البته د حدیث په بناء په مهر کښې زیاتی کول بهتر او مستحب نه دی رواه ابوداؤد ۲۸۷ الالاتغالوا بصداق النساء فانها لو كانت مكرمة فى الدنيا او تقوى عندالله كان اولاكم بها النبی ﷺ ﴿۲﴾ او په افغانستان او یاغستان کښې چه کوم رواج دې هغه بلاشک وشبه ناجائز دې دا خلق ازادې ښځې لره خرڅوی او پیسې پخپله خوری لکه چه لونړو او خوئیندوته په وراثت کښې څه نه ورکوی﴿۳﴾ وهو الموفق.

## د جینۍ په عوض کښې د څه رقم اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق د لور خور

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: المهر اقله عشرة دراهم لحديث البيهقی وغيره لا مهر اقل من عشرة دراهم ورواية الاقل تحمل على المعجل فضة وزن سبعة مثاقيل كما فى الزكاة...... يجب الاكثر منها ان سمى الاكثر. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۵۷ باب المهر)

﴿۲﴾ رواه ابو داؤد ۱: ۲۸۷ باب الصداق، والترمذی وصححه، والنسائی، وابن ماجة واحمد والبيهقی، وابن حبان وصححه والحاكم والدارمی ۲: ۱۹۰ باب كم كانت مهور ازواج النبی ﷺ وبناته.

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: اخذ اهل المرأة شيئا عند التسليم فللزوج ان يسترده لانه رشوة، قال ابن عابدين: ای بان ابى ان يسلمها اخوها او نحوه حتى يأخذ شيئا وكذا لو ابى ان يزوجها فللزوج الاسترداد قائما او هالكا لانه رشوة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۹۷ قبيل مطلب فی دعوى الاب ان الجهاز عارية)

په عوض کښې پیسې اخلی او هغې لره په خپل ذاتی مصرف کښې استعمالوی او بیا د جینئ نکاح کولو سره حواله کوی، ایا دا رقم اخستل جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالستار رضافقیر والی بهاولنگر...١٩٨٢ء١٠١١٢٥

**جواب**:که چرته دا رقم اعزازی طور سره په خوشحالئ ورکړئ شوې وی نو ددې اخستل اوورکول جائز دی لحدیث احق ما اکرم علیه الرجل ابنته او اخته،(رواه ابوداؤد ١٩٧)﴿١﴾ اوکه چرته جبری طورباندې اخستلې شوې وی نوبیاواپس اخستلې شی.فی الدرالمختارمع ردالمحتار(٢: ٣٧٦)اخذاهل المرأة شیئا عند التسلیم ای بان ابی ان یسلمها اخوها او نحوه حتی یاخذ شیئا وکذا لو ابی ان یزوجها فللزوج الاسترداد قائما او هالکا لانه رشوة﴿٢﴾ اوکه چرته دا رقم ددې وجې نه اخستلې شوې وی چه د خاوند د طرف نه مطلوبه معروفه جهیزوغیره کښې صرف کړئ شی نو په دې کښې حرج نشته، ویقال له الدستیمان والتفصیل فی ردالمحتار ٢: ٣٧٧﴿٣﴾ گنې حرام دې،لانه رشوة او ثمن الحر وکلاهما محرمان، وهوالموفق

﴿١﴾(سنن ابی داؤد ١: ٢٩٠ باب فی الرجل یدخل بامرأته قبل ان ینقدها، کتاب النکاح)

﴿٢﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٩٧ قبیل مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عاریة)

﴿٣﴾قال العلامة ابن عابدین: وفی البزازیة ما یفید التوفیق حیث قال تزوجها او اعطاها ثلاثة آلاف دینار الدستیمان وهی بنت موسر ولم یعط لها الاب جهازا افتی الامام جمال الدین وصاحب المحیط بان له مطالبة الجهاز من الاب علی قدر العرف والعادة او طلب الدستیمان قال وهذا اختیار الائمة وقال الامام المرغینانی الصحیح انه لا یرجع بشیئ لان المال فی النکاح غیر مقصود وکان بعض ائمة خوارزم یعترض بان الدستیمان هو المهر المعجل کما ذکر فی الکافی وغیره فهو مقابل......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د واده په موقع باندې د هلک والو نه د غوی وغیره خوړلو د پاره د غوختلو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه بعضې غریزو علاقو کښې دارواج دې چه دواده په موقع باندې دهلک درشته دارو نه حیوان یعنی غوئ وغیره لازمادذبحې دپاره راوستلې شی اوبیادواړه کوروالا هغه په مشترکه طورباندې خوری اوددې حیوان وغیره د نه اخستلو په صورت کښې دقوم اودبرادرې خلق دده نه خفه کیږی اودده سره همدردی وغیره پریږدی ایاداجائزدی؟ اوداهم وئیلې شی چه ددې غوئ په عوض کښې دجینئ دمهرنه څه څیزدهلک دپاره معاف کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبیدالله....

**جواب**:که چرته ددې غوئ قیمت دمهرنه جداکړې شی نودجینئ دباقاعده اجازت نه پس ددې اخستل اوخوړل جائزدی﴿١﴾اوکه چرته داغوئ دمهرنه علاوه بغیردخوشحالې نه اخستلې شی نوداغوئ به په رشوت کښې داخل وی اوحرام به وی اوواجب الردبه وی﴿٢﴾کمافی الدرالمختارعلی هامش

(بقیه حاشیه) بنفس المرأة حتی ملکت حبس نفسها لاستیفائه فکیف یملک الزوج طلب الجهاز والشیئ لا یقابله عوضان واجاب عنه الفقیه ناقلا عن الاستأذان الدستیمان اذا ادرج فی العقد فهو المعجل الذی ذکرته وان لم یدرج فیه ولم یعقد علیه فهو کالهبة بشرط العوض وذلک ما قلناه الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٣٩٩ بعید مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عاریة)

﴿١﴾ قال العلامة المرغینانی: وان حطت عنه من مهرها صح الحط لان المهر حقها. (هدایه ٢: ٣٤٧ باب المهر)

﴿٢﴾ عن ابی حرة الرقاشی عن عمه قال قال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا الا لا یحل مال امرئ الا بطیب نفس منه رواه البیهقی فی شعب الایمان والدارقطنی فی المجتبیٰ.

(مشکواة المصابیح ١: ٢٦١ باب الغصب والعاریة)

ردالمحتار ۲:۵۰۳ اخذ اهل المراة شیئا عندالتسلیم فللزوج ان یسترده لانه رشوة﴿۱﴾ وهوالموفق

## د مهرنه علاوه د هلک والو نه د رقم اخستلو تفصیلي مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې د ډیر وخت نه دادستوررروان دې چه جینکولره د ګډواو چیلو په شان خرڅولې شی اونکاح په دې شرط باندې کوی چه مثلاً ته څلویښت زره روپې راکړه بیا دهلک والا مجبوراورکوی دې دپاره که چرته نه ورکوې نودهغې جینۍ نکاح نه کوی حالانکه بعضې خلق دجوازدپاره دغه څلویښت زره روپې داجینۍ په مهرکښې داخلوی اوبیاهغه دجینۍ داجازت یابغیرداجازت نه هغه په استعمال کښې راولی اوس سوال دادې چه په دواړوصورتونو کښې دپلار رورو غیره دپاره دارقم په دې طریقې سره اخستل جائزاو حلال دی؟

المستفتی: محمد ممتازدارالعلوم ربانیه کراچی نمبر ۴۱...... ۱۹۷۴ء۱۹۱۳

**الجواب:** په دواړوصورتونو کښې اخستل ناجائزاوحرام دی په اول صورت کښې واضح دی چه دجینۍ خاوندله داطمعه اولالچ ورکوی چه دجنیۍ نکاح ماسره اوشی اوپه طریقه اخستلوته فقهاءکرامو رشوت وئیلې دې ددې اخستل حرام اوناجائزدی اوداسې حرام دی چه داخستلونه پس هم دده په ملکیت کښې نه راځی.

قال فی الدر: اخذ اهل المرأة شیئا عند التسلیم فللزوج ان یسترده لانه رشوة، وقال ابن عابدین: تحت (قوله عند التسلیم) ای بان الی ان یسلمها اخوها او نحوه حتی یأخذ شیئا وکذا لو ابی ان یزوجها فللزوج الاسترداد قائماً اوها لکاً لانه رشوه، بزازیه (ردالمحتار ۳:۱۵۶)﴿۲﴾ وقال فی الدرالمختار: الرشوة لا تملک بالقبض

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۹۷ قبیل مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عارية)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۹۷ قبیل مطلب فی دعوی الاب ان الجهاز عارية)



(الشامیة ۶:۴۲۳)﴿۱﴾ وقال فی الهندیة: ولو تزوج امرأة علی ان یهب لابیها الف درهم فهذا الالف لا یکون مهراً ولایجبر علی ان یهب فلها مهر مثلها وان سلم الالف فهو للواهب وله ان یرجع فیها ان شاء (عالمگیریه ۱:۳۰۸)﴿۲﴾.

په دوئم صورت کښې دجینۍ په رضادعدم تیقن په وجهې سره حرام دی بلکه دتیقن دعدم درضادوجهې نه ددې دپاره چه کله دغه جینۍ د خاوندکورته لاړه شی اوپه دوودریو کالو کښې ددې شرم ختم شی نوپلار او مورصاحبه ته دیوزرې ورکولو دپاره هم تیاره نه وی نودیرش څلویښت زره روپې به څه ورکړی ددې نه معلومه شوه چه دواده په وخت دشرم دوجهې نه اجازت ورکړی دزړه نه راضی نه وی فقهاءکرامودې پورې لیکلی دی چه دمهردرقم نه پلاردلوردپاره سیوادهغه څیزونو نه چه هغه عادتادمهردرقم نه اخستلې کیږی دنوروڅیزونواخستل ددې درضانه بغیرجائزنه دی نود پلار دپاره ذاتی مصرف کښې راوستل څنګه جائزدی لهذا په دې صورت کښې هم اخستل حرام اوناجائزدی. قال فی الشامیة لکن فی الهندیة لوقبض بمهر البالغه ضیعة فلم ترض ان جری التعارف بذلک جازله والافلاولو بکرا، (ردالمحتار ۳:۱۶۱)﴿۳﴾ خلاصه دا چه په هیڅ طریقه هم په مهرکښې دپلاروغیره دپاره تصرف جائزنه دې ټول مهردجینۍ حق دې اودابه دیته حواله کولې شی. والتفصیل فی الهندیة ۱:۳۱۶﴿۲﴾والشامیة......

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۳۰۰ فصل فی البیع کتاب الحظر والاباحة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۰۸ الفصل الرابع فی الشروط فی المهر)

﴿۳﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۰۱ مطلب لابی الصغیره المطالبة بالمهر)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: للمرأة ان تهب مالها لزوجها من صداقٍ دخل بها زوجها اولم یدخل ولیس لاحد من اولیائها اب ولا غیره الاعتراض علیها...... ولیس للاب ان یهب مهر ابنته عند عامة العلماء کذا فی البدائع.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۱۶ الفصل العاشر فی هبة المهر)

۱۱۳:۳﴿۱﴾والله اعلم

کتبه...... احمد عفی عنه

دارالافتاء دارالعلوم ربانیه توحید آباد کالونی کراچی

هذا الجواب صحیح

محمد فرید عفی عنه

(شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**د طلاق نه پس به د مهر اود جهیزسامان ښځې ته واپس کولې شی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیونادار اوشریف سړی لورته دیوزورورسړی زوئ بغیرد څه قصورنه طلاق ورکړواوټول زیورات ئې د جینئ نه واخستل اودمورپلارکورته ئې واستول اووئیل ئې چه ته زما دمور پلارخدمت په ښه طریقې سره نه شې کولې په شریعت کښې ددې مهر د کالو اود جهیز دسامان څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: خان شیر دوبئ

**جواب:** په خاوندباندې فرض دی چه ټول مهردې ښځې ته ورکړی﴿۲﴾اوهغه

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله وصح حطها) قید بحطها لان حط ابیها غیر صحیح لو صغیرة ولو کبیرة توقف علی اجازتها ولا بد من رضاها ففی هبة الخلاصة خوفها بضرب حتی وهبت مهرها لم یصح لو قادراً علی الضرب الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۶۶ مطلب فی حط المهر والابراء منه)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: ویتأکد عند وطء او خلوة او موت احدهما...... قال ابن عابدین: وفی البدائع واذا تأکد المهر بما ذکر لا یسقط بعد ذلک وان کانت الفرقة من قبلها لان البدل بعد تأکده لا یحتمل السقوط الا بالابراء کالثمن اذا تأکد بقبض المبیع.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۵۸ باب المهر)



سامان چه ددې جینئ پلاروغیره ورکړی وی دابه هم دې ښځې ته واپس کولې شی. وذلک مما اجمعوا علیه﴿۱﴾ وهوالموفق

**مخکښې د رخصتئ نه د جینئ په وفات کیدلو باندې دمهرمسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئله باره کښې چه یوسړی دیوجینئ سره نکاح اوکړه داجینئ درخصتې نه مخکښې مړه شوه دجینئ پلاردټول مهر مطالبه کوی ایادامطالبه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرسول شاهین مارکیټ بټ خیله....۱۲رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** په دې مهرکښې نیم دخاوند حق دې﴿۲﴾ اوباقی نیم دوالدینو یا د پلارحق دې﴿۳﴾وهوالموفق

**پس د رخصتئ نه دطلاق ورکولونه پس دښځې ټول مهرواجب الادادې**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپله ښځه یوکال پورې اوساتله څه وخت پس ناراض شواوښځه ئې دمورپلارپه کورکښې پریخودله او راغې. چه هلته هغې دوه نیم کاله تیرکړل روستوخلقوده لره په

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: لو جهز ابنته وسلمه الیها لیس له فی الاستحسان استرداده منها وعلیه الفتویٰ..... واذا بعث الزوج الی اهل زوجته اشیاء عند زفافها منها دیباج فلما زفت الیه اراد ان یسترد من المرأة الدیباج لیس له ذلک اذا بعث الیها علی جهة التملیک کذا فی الفصول العمادیة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۲۷ الفصل السادس عشر فی جهاز البنت)

﴿۲﴾قال الله تبارک وتعالی: ولکم نصف ماترک ازواجکم ان لم یکن لهن ولد.

(سورة النساء پاره۴ رکوع:۱۳ آیت:۱۲)

﴿۳﴾قال العلامة الکاسانی: ومنها الارث من الجانبین جمیعا لقوله عز وجل ولکم نصف ما ترک ازواجکم. (بدائع الصنائع ۲:۳۳۲ فصل ومنها الارث)

مجبورِ کولو سره دطلاق ترغیب ورکړو اوآخرهم درې کاله پس بغیرد څه شرط نه طلاق ورکړو روستو دیو څو کسانو په خبروباندې دوه میاشتې پس د کالو د واپسئ مطالبه اوکړه حالانکه ددې جینئ مهرزرروپې مقررشوې وو د زیوراتو قیمت شپږسوه اویاروپې په مهرکښې اداکړې وواودرې سوه دیرش روپئ دباقی مطالبې دپاره ایښې وې اوس سوال دادې:

(۱) ایادهلک په ذمه باندې باقی درې سوه دیرش روپې اداکول واجب دی؟

(۲) ددرېو کالو خرچه دهلک په ذمه باندې واجب ده؟ (۳) په رضا او خوشحالې سره دګواهانو په مخکښې دطلاق ورکولونه پس اوس د زیوراتو چه کومه مطالبه کیږی ایاداصحیح ده؟.

المستفتی: غلام قادر..... ۱۹۷۴ء۱۳۱۱۲

**جواب:** (۱) په دې خاوندباندې ټول مهرزرروپې ورکول واجب دی. لوجود الغایة وهوالطلاق کمافی الهندیة (۱: ۳۳۹) پس په صورت مسئوله کښې به درې سوه روپې واجب الاداوی﴿۱﴾-(۲) په دنیاکښې به په دې نفقه باندې ماخوذنه وی. لعدم الرضاء والقضاء کمافي الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ۲: ۹۰٦﴿۲﴾. (۳) دامطالبه بې قاعدې اوغلطه ده

## ناواده کړې مطلقه ښځه د نیم مهرمستحقه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه یوکس نکاح کړی وی خو تراوسه پورې رخصتی نه ده شوې دڅه ناچارې دوجهې نه دې سړی هغه ښځې ته طلاق ورکړو اوس جینئ دمهرمطالبه کولې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدشیرجهانګیره..... ۸۵۱۱۲۱۳

﴿۱﴾وفی الهندیة: والمهر یتأکد باحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحیحة وموت احد الزوجین سواء کان مسمی او مهر المثل حتی لا یسقط منه شیئ بعد ذلک الا بالابراء. (فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۳۰۳ الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر والمتعة)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: والنفقة لا تصیر دینا الا بالقضاء او الرضاء. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٦۱۵ مطلب لا تصیر النفقة دیناً)



**جواب:** واضحه دی وی چه منکوحه ناواده کړې ښځه دنیم مهرمستحقه ده. وهو واضح نص علیه فی القرآن﴿۱﴾والفقه﴿۲﴾. وهوالموفق

## د مال حرام د جهیزمسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې که چرته پلاردلوردپاره په جهیزکښې سامان ورکړواوداِمال حرام وی یعنی په حرامه طریقې سره ئې پیدا کړی وی. ایادهلک دپاره دامال اخستل حرام دی یاحلال؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم..... ۱۲۰جمادی الاولی ۱۴۰۲ء

**جواب:** چه کله یقینی طورباندې حرمت معلوم نه وی نوصرف دشبهاتو دوجهې نه دا جهیزوغیره ردکول ضروری نه دی (شرح اشباه والنظائر﴿۳﴾) وهوالموفق

## جهیزکښې عاریتا ورکړې شوې سامان یا مال واپس اخستلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین شرع متین دې مسئله باره کښې چه زید دهنده سره

﴿۱﴾قال الله تبارک وتعالیٰ: وان طلقتموهن من قبل ان تمسوهن وقد فرضتم لهن فریضة فنصف ما فرضتم. (سورة البقرة پاره: ۲ رکوع: ۱۵ آیت: ۲۳۷)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویجب نصفه بطلاق قبل وطء او خلوة فلو کان نکحها علی ما قیمته خمسة کان لها نصفه ودرهمان ونصف. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳٦۰ باب المهر)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: اذا کان غالب مال المهدی حلالا فلابأس بقبول هدیته واکل ماله مالم یتبین انه من حرام وان کان غالب ماله الحرام لا یقبلها ولا یأکل الا اذا قال: انه حلال ورثه او استقرضه. (الاشباه والنظائر ۱۱۳ القاعدة الثانیة: اذا اجتمع الحلال والحرام غلب الحرام)

واده او کړو او درواج او عرف مطابق اتیا او یا زره روپې عاریتا جهیز ورکړو لیکن څو میاشتې پس هنده دخپل بارسوخ د والدینو په وینا باندې مور کره کیناسته دهنده مور او پلار هنده د زید سره په استولو باندې تیار نه دي او نه طلاق اخستل غواړی او نه هم د زیوراتو او جهیزو اپس کولو باندې آماده دی پس د دې عاریتا ورکړې شوې جهیز دواپسې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری خلیل الرحمٰن کهلابټ ټاون هری پور...... ۱۴۰۱۱۲۱۱۲ء

**جواب:** که چرته د دې جهیز عاریت کیدل د طرفینو په نزد تسلیم شده وی یا په شهادت سره ثابت شده وی نو دا خاوند دا جهیز هر وخت اخستلې شی. لما فی شرح المجلة: ۸۲۵ص:۴۵۸ متی طلب المعیر العاریة لزم المستعیر ردها الیه فورا الخ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په مهر کښې د مشاع زمکه او کور ورکول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئله باره کښې چه زما مور پلار زما د یو رور رشته کړې وه د رخصتې په وخت د جینئ پلار زما پلار ته ووئیل چه زما لور ته نیم کور اولیکه نو هله به ډولې درکوم کنې نه ئې درکوم هغه وخت د مجبورې د وجهې نه زما پلار نیم کور د هغه لور ته اولیکلو مګر ورسره ئې وئیل چه لیکل خو مې او کړل خو درکوم ئې نه د دې خبرې تقریبا پینځلس کاله اوشول تقریبا دوه کاله مخکښې زما پلار صاحب وفات شو اوس که چرته زما بهابی مطالبه او کړه چه هغه د نیم کور حقداره ده نو ایا د شریعت په رنړا کښې دا حقداره جوړې دې شی یا دا به په وراثت کښې تقسیمیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغفار اکوړه خټک...... ۱۹۷۲ء۱۱۱۳۱

**جواب:** که چرته ستا پلار صاحب دا نیم کور په حق مهر کښې شامل کړې وی نو

﴿۱﴾ (شرح المجله للاتاسی ۳:۳۲۸ ماده: ۸۲۵ الفصل الثانی فی العاریة وضماناتها)



اوس د اتا سو میراثا تقسیمولې نه شئ، دا صرف د دې جینئ حق دې لصحة جعل المشاع مهرا﴿۱﴾ او که چرته د هبې یا د بخشش په طور باندې ورکړې وی نو دا تول کور تا سو په شرعی وارثانو کښې تقسیمولې شئ د دې سره دا جینئ څه شرعی حق نه لری. لعدم صحة هبة المشاع﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو تزوج علی نصیبه من هذه الدار قال ابوحنیفة رحمه الله تعالیٰ لها الخیار ان شاءت اخذت النصیب وان شاءت اخذت مهر مثلها لا یزاد علی قیمة الدار وان کان مهر مثلها اکثر وعلی قول صاحبیه لها النصیب من الدار ان کان النصیب یساوی عشرة دراهم. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۱۰ الفصل الخامس فی المهر تدخله الجهالة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولا تصح (الهبة) فی مشاع یقسم ویبقی منتفعا به قبل القسمة وبعدها هکذا فی الکافی. (فتاویٰ عالمگیریة ۴:۳۷۶ الباب الثانی فیما یجوز من الهبة وما لا یجوز)

# باب فی الاولیاء

## حدیث ``لانکاح الا بولی`` معنی او مطلب

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه داحنافو مذهب دادې چه بالغه پیغله ښځه خپله نکاح دولی دمرضې نه بغیرهم کولې شی حالانکې په حدیث کښې راغلی دی ``لانکاح الابولی`` نوددې معنی او مطلب به څه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدزمان سنهری مسجد روډ پشاور صدر

**الجواب:** عاقله بالغه په نکاح کښې خودمختاره ده البته بهترداده چه دولی دمرضې نه بغیرڅه اقدام اونه کړی. دقران او حدیث نه داهم مستنبطه ده. او مخالفین چه دکوم احادیث نه تمسک کوی هغه په نابالغه او مجنونه باندې محمول دې یاپه تغلیظ باندې محمول دې﴿۱﴾وهو الموفق

﴿۱﴾وفی المنهاج: عن ابی موسی قال قال رسول اللهﷺ لا نکاح الی بولی الخ احتج الجمهور فی مسئلة اشتراط الولی فی النکاح بحدیثی الباب، وحجتنا ما رواه مسلم من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول اللهﷺ قال لا تنکح الایم حتی تستامرو لا تنکح البکر حتی تستاذن، قالوا: یا رسول الله و کیف اذنها، قال: ان تسکت، وفی النهایة الایم فی الاصل التی لا زوج لها بکرا کانت او ثیبا مطلقة کانت او متوفی عنها، وزاد فیه ابن جریر رجلا او امرأة، ولنا ایضا ما رواه مسلم من حدیث ابن عباس ان النبیﷺ قال: الایم احق بنفسها من ولیها والبکر تستامرو اذنها صماتها، فان قیل: قد ورد فی روایة مسلم عن ابن عباس مرفوعا الثیب احق بنفسها من ولیها والبکر تستاذن فی نفسها واذنها سکوتها ومفهومه ان البکر لیست احق بنفسها من ولیها، قلنا:......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په ولایت او وکالت د نکاح کښې عدالت شرط نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زرباز خان خپلې لور لره د اشفاق د ځوی سره منسوب کړې ده هم دغه رنګې اشفاق خان خپلې لور لره د زرباز خان د ځوی سره منسوب کړې ده، دواړه جینکئ او هلکان د بلوغت عمرته رسیدلی دی، اود خپل خپل منسوبینو په حق کښې رضا مند هم دی، لیکن اوس بنیادی نکته دا پیدا شوې ده چه مسمی زرباز خان باندې د ستمبر د ابتداء ۱۹۷۴ء نه د تعزیر حلالې فتوی صادره شوې ده او مذکور ددې د اړولو دپاره قسماقسم حربې استعمالوی. لیکن فی الواقع ترڅو پورې چه د تعزیر حلالې تعمیل اونه کړی دهغه سره اسلامی برتاؤ نشی کیدلې. اوس حل طلب مسئله داده چه د جملې اول پیش نظر په کوم تجویز باندې عمل اوکړئ شی چه د زرباز خان دشراکت نه بغیر د نکاح رسم ادا کړئ شی. او د تعزیر حلالې تعمیل پورې په هغه باندې څرنګه پابندی اولګولې شی چه ددې عدم تعمیل د تعزیر حلالې اثر په ناکحینو او منکوحینو باندې رانشی. نیز یاد دې وی چه د هلکانو او د جینکو په مناسبت کښې د څه ایجاب او قبول رسم ادا شوې نه دې. دا صرف د والدینو انفرادی فیصله وه. اوس صرف عدم تعمیل د حلالې باعث د التوادې. اوس هم زرباز خان سره د اهلیې نه په یو رهائش ګاه کښې دی. زرباز خان ته څو ځلې د تعزیر حلالې د تعمل دپاره فرمائش کړئ شوې دې مګر هغه بدستور

(بقیه حاشیه) العموم اولی من المفهوم بلاخلاف کما صرح به ابن رشد، ولا یبعد ان یقال ان بعض الرواة روی الحدیث بمعناه فی زعمه، ولنا ایضا ما رواه احمد عن ابن عباس ان جاریة بکرا اتت النبیﷺ فذکرت ان اباها زوجها وهی کارهة فخیرها النبیﷺ ورجاله ثقات، وقال ابن قطان صحیح والجواب عن حدیث ابی موسیٰ اولاً ان فی سنده اختلافا کما صرح به الترمذی، وعن حدیث عائشة انه قد انکره الزهری کما سیاتی تحقیق العلتین، وثانیا انهما محمولان علی الصغیرة والمعتوهة والمملوکة والناکحة مع غیر الکفو جمعا بین الروایات المتخالفة او ارید منهما نفی الکمال.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴:۲۵۵ باب لا نکاح الا بولی)

منحرف دي، اوس سوال دادي چه دهغه د ځوی په نکاح کښې څه صورت اختیار کړئ شی، چه نکاح اوکړئ شی؟ بینوا توجروا

مرسله: شیرمحمد قریشی نائب صوبیدار راولپنډی

**جواب:** واضحه دې وی چه د حلالي نه کولو په وجه سره ولایت او وکالت ته هیڅ نقصان نه رسی لان الولایة والوکالة لایشرط فیهما العدالـة﴿۱﴾ پس که چرته داسړي (زربازخان) د لور په مرضئ سره ایجاب اوقبول اوکړی نو په دې کښې هیڅ حرج نشته. نیزکه چرته دا جینئ په خپلې مرضئ سره کوم بل سړی له وکیل جوړکړی نوپه دې کښې هیڅ حرج نشته. د پلار غیر موجودګی یا عدم رضامندی نقصان ده امورو کښې نه دی. لکونها عاقلة بالغة﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د ولی یا د ګواه په وفات سره نکاح باندې څه اثرنه پریوځی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه هلک اوجینئ چه هغه نابالغ وی والدینو ددوی په مینځ کښې نکاح اوتړله دهلک دبالغ کیدلونه مخکښې پلار وفات شوچه هغه دزوئ دنکاح ولی وو .بیادهلک له جانبه جینئ ته دواده پیغام ورکړې شوپه دې باندې جینئ انکاراوکړواووئیل چه زماڅه نکاح نه ده شوې اودنکاح په وخت زه نابالغه وم.اوس بعضې خلق داهم وائی چه دپلاردوفات په وجهې سره نکاح هم ختمېدلې شی.ددې مسئلې نوعیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوبیدار محمدیوسف واه کینټ...... ۲۷\۱۲\۱۹۸۸ء

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: الولی هو البالغ العاقل الوارث ولو فاسقاعلی المذهب مالم یکن متهتکا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۱ باب الولی)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: ولا تجبر البالغة البکر علی النکاح لانقطاع الولایة بالبلوغ فان اسأذنها الولی او وکیله او رسوله او زوجها ولیها واخبرها رسوله او فضولی عدل فسکتت او ضحکت غیر مستهزئة او تبسمت او بکت بلاصوت فهو اذن.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۴ باب الولی)



**جواب:** که چرته داتحریر حقیقت وی نودانکاح لازم اوناقابل تنسیخ ده دکوم سرپرست یادګواه په وفات کیدلوسره نکاح ته څه نقصان نه رسیږی﴿۱﴾ عالمګیری وغیره﴿۲﴾.وهوالموفق

## ښځه د میراث په طور باندې په نکاح کښې د ورکولوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئله باره کښې چه یوسړې وفات شواودهغه دوه علاتی رونړه ژوندی دی ددې سړی کوژدنه دبې بهاسره شوې وه لیکن هغه دواده نه مخکښې وفات شو،اوس دهغه علاتی رورد عوی کوی چه بې بهاماته په میراث کښې د رورنه پاتې شوې ده ددې وجهې نه زه دادخپل ماما زوئ ته په نکاح سره ورکوم دازما حق دې ایادا کونډه ښځه جبرًا یا استحقاقًا دخپل ماما زوئ ته ورکولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۱۶\۷\۱۹۷۲ء

**الجواب:** دې ښځې ته میراث وئیل حرام اودقرآن مخالفت دې، الله تعالی فرمائی:

**لا یحل لکم ان ترثوا النساء کرها (الآیة)﴿۳﴾ وفی الهدایة: ولا یجوز للولی اجبار البکر البالغة علی النکاح (۲: ۲۹۴)﴿۴﴾ فکیف یجوز لغیر الولی، وفی الهندیة (۱: ۳۰۵) لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکراً کانت او ثیبًا﴿۵﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ولزم النکاح ای بلا توقف علی اجازة احد وبلا ثبوت خیار فی تزویج الاب والجد والمولیٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۳۰ باب الولی)

﴿۲﴾ فان زوجهما الاب والجد فلا خیار لهما بعد بلوغهما وان زوجهما غیر الاب والجد فلکل واحد منهما الخیار اذا بلغ. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾ (سورة النساء پاره: ۴ آیت: ۹)

﴿۴﴾ (هدایه ۲: ۳۱۴ باب فی الاولیاء والاکفاء)

﴿۵﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

## په نکاح کښې د نابالغه ولی د ایجاب اود قبول حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئله باره کښې چه دنکاح په وخت دولی عمر تقریبًا پینځه کاله وواودې نابالغه ولی په جوړیدلوباندې مونږ خوشحاله وواونکاح مواوکړه، ایادا نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی علی حیدر ګوجرګړهی مردان

**الجواب:** که چرته قبول اوایجاب دې هلک کړې وی نودانکاح نامنظور او کالعدم ده، کمافی الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار۲: ۴۰۶ وشرعاالبالغ العاقل الوارث وخرج نحوصبی ووصی مطلقاعلی المذهب﴿۱﴾، البته عاقل ماشوم وکیل جوړیدلې شی.وهوالموفق

## جبراً د ایجاب او قبول حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه زه عاقله بالغه مسلمانه ښځه یم زه واده کړې شوې یم مګرداولادنه کیدلوپه وجه سره ماله خاوند طلاق راکړوزه حقیقی رورله راغلم کله چه عدت تېرشونودهغه خیال بدل شواوزمادتره اودچاچی اودنورومحرموخلقوپه مددسره سازش جوړکړواوزه ئې مجبوره کړم دیوسړی سره ئې زمانکاح جبرارجسټرډکړه حالانکې مادزړه یاپه ژبې سره اقراریاقبول اونه کړو نه ئې زمانه پوښتنه اوکړه اونه ئې څه شرعی کلمات اوئیل اوزماګوته جبرادووکسانوپه نیولوسره په رجسټرډ باندې اولګوله ددې تمام تشدد باجودترننه پورې زه دروړپه کورکښې یم ددې غیرمحرم اوخانه بدوش سړی سره زمادنکاح دثابت کولوکوشش کوی آخری ساه پورې دده سره نکاح کولوته تیاره نه یم.په شریعت کښې ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:الف.ب.ت.قوم ګوجراولپنډی.........۱۴رجب ۱۴۰۳ء

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۱ باب الولی)



**جواب:** که چرته تاد ایجاب اوقبول الفاظ جبرایاپه رضااورغبت سره نه وی وئیلې نوته آزاده ئې دانکاح کلعدم ده اوپه بل ځائ کښې نکاح کولې شې

## عاقله اوبالغه باندې جبر نامنظوراوپخپله کړې شوې نکاح منظورده

**سوال:** څه فرمائې علماءدین دې مسئله باره کښې (الف) مسماة فلانې یوبالغه اوعاقله ده (ب) ددې پلارددې نکاح یونابالغه وراړه سره کول غواړی (ج) دنکاح نه مخکښې کله چه مسماة ته علم اوشوداددې نابالغه سره دنکاح کولونه انکارکوی (د) پلاردڅه خاص خطرې دوجهې نه دخپلې لورنکاح ددې وراره سره کولوباندې اصرارکوی (ه) کله چه دنکاح مجلس منعقدشی نو مسماة دخپل کوروالوسره په جهګړې شی هغوی ددې دراضی کولوکوشش کوی خوهغه درضامندې په ځائ په جهګړې اوانکارکښې مشغوله شی ددې باجودپلارئې دکورنه بهرپه حجره کښې نکاح دوراره سره اوتړله (و) په دویمه ورځ پلارلورته نصیحت اودرضاترغیب ورکوی چه لورې ماته دخپل کورپه تخت باندې کینولې لورپه جواب کښې ورته وائی چه نزدې ده زه به داټول په دې تخت باندې اوژړوم (ر) څوورځې پس موقعې موندلوسره مسماة دخپل زوړ آشناسره اوتختیدله (ز) دجینئ پلاراونورکوروالا خلق دمغویې دواپس کولوکوشش کوی اودکوروالوپه مینځ کښې په جهګړه کښې دمغویې پلار قتل شو (ط) هم په دغه وخت دمغویې پورشته دارمولوی صاحب دحالاتو د جائزې اخستلودپاره دمغویې دپلارکورته لاړوچه ایادنکاح په وخت مغویې

﴿۱﴾قال العلامة ابن نجیم: (قوله ولا تجبر بکربالغة علی النکاح) ای لا ینفذ عقد الولی علیها بغیر رضاها...... لانها حرة مخاطبة فلایکون للغیر علیها ولایة والولایة علی الصغیرة لقصور عقلها وقد کمل بالبلوغ بدلیل توجه الخطاب الخ.

(البحر الرائق ۳: ۱۱۰ باب الاولیاء والاکفاء)

رضامندي یاخاموشي ظاهرکړې وه یاڅه معامله وه؟ (ع) مولوی صاحب چه کله دکوردښځونه دحالاتوپوښتنه اوکړه کومې چه دنکاح په وخت دمغویې سره موجودې وې نودوه ښځې چه هغه دمغوبې اومولوی صاحب خاصې رشته دارانې وې هغوی دابیان ورکړوچه په دې حادثه کښې دمغوبې د پلار مرحوم غلطی وه ځکه چه مغوبې په هغه وخت کښې صاف انکار اوکړو، اوجهګړې ئې کولې، دمغوبې پلارخپلواوپردوډیرپوه کړوخولیکن هغه په خپل مصلحت باندې کلک ولاړووچه په څه طریقې سره لورراضی کړم (ک) مغویه دآشناسره دتلونه دوه میاشتې پس عدالت ته په دې نیت سره حاضر شوه، چه عدالت کښې بیان ورکړم چه زه دکوم آشناسره تلې ووم هغه زما خاوند دې اوپلارزه په صحیح نکاح سره ده له ورکړې ووم لیکن هغه زه دخپل خاوندسره دڅه لالچ دوجهې نه تلوته نه ورکولم، لهذازه دخپل خاوند سره پخپله خوشحالې سره تلې یم (ل) عدالت کښې دحاضریدونه مخکښې کله چه دمغوبې رشته دارانوته عدالت ته دتللوپته اولیږده، نوهغوی فوراً مغوبې له ورغلل اوموقعې موندلوسره ئې مغوبې له داتحریض ورکړوچه ستا پلارستاآشناوالوقتل کړې دې لهذااوس ته داغوابالجبراودقتل دعوی په پخپل آشنااودهغه په پلاراودهغه وروربانډې اوکړه اومغوبې ته یې دایقین دهانی ورکړه چه رشته داران به تاته په دې ناخوښه حرکت باندې هیڅ هم نه وائی پس مغوبې درشته دارانودتلقین شده بیان مطابق په خپل آشنا او دهغه رور اوپه پلاردقتل اواغوادعوی اوکړه ددې په وجه باندې آشنا خو مفرور شو د آشنا پلارته او رورته بامشقته سزاملاؤشوه (ی) دمغوبې دواپس کیدلو په وخت دهغې په رشته دارانو کښې یورشته دارمسماه فلان هم وو. چه دهغه سره وعده کړې شوې وه چه کله مغویه د آشنانه واپس راشی نو دهغې نکاح به تاسره کوو (م) اوس هغه رشته دارچه دهغه سره دمغوبې دنکاح وعده کړې شوې وه دمغوبې رشته دارمجبورکړې



شوچه حسب وعده مغویه ستاښځه ده ماته رقم راکړه (ن) هغه فلان په جواب کښې وائی چه بې شکه ماوعده کړې وه لیکن په دې شرط سره چه په مغویه کښې به ماسره دنکاح متعلق دڅه شک اوشبهې ګنجائش نه وی، اوس چونکې زمونږمولوی ضاحب وائی چه مادموجوده ښځونه پوښتنه اوکړه چه مغویه دعقدنکاح په وخت هم انکاری وه لهذادمغوبې نکاح دوراره سره صحیح نه ده، اوپه دویمه نکاح کښې ئې شبه ده ددې وجهې نه تاته حلاله نه ده اوس چه علماءدې ته جائزنه وائی نوزه څنګه داپه خپل تحویل اونکاح کښې راولم محترم مفتی صاحب بامرادجواب راکړه.

المستفتی: مولاناشهیداحمدمهتمم مدرسه عربیه مدنیه ملانه ختک ۱۹۷۹ء۲/۱۷/۱

**الجواب**: په صورت مسئوله کښې دپلارنکاح نامنظوره ده، لمافی الـدرالمختار وغیره لاتجبرالبالغة البکرعلی النکاح﴿۱﴾ اوکه چرته دآشناسره نکاح شوې وی نوهغه منظوره ده، فنفذ نکاح مکلفة بلارضاولی﴿۲﴾ لهذاد آشناسره نکاح باقی کیدلوپورې بل کس داپه نکاح سره نشی اخستلې بشکه دطلاق یافسخې نکاح نه پس دیته دنکاح ثانی حق حاصل دې، وهوالموفق

**بالغه جینۍ چه د نکاح په خبر باندې فورا انکاری شی نودا نکاح کالعدم ده**

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئله باره کښې چه یوسړی خپله عاقله بالغه لور په نکاح ورکولودپاره مخامخ څلورګواهان ایجاب اوقبول اوکړه، څه وخت پس دې جینۍ دخپل تره نه زبانی واوریدل چه ددې پلاردیعقوب سره ددې رشته کړې ده، نودې فورا انکاراوکړواووهل ټکول ئې شروع کړل په دې باندې ددې مورداووهله هم لیکن جینۍ صفااووئیل چه دارشته ماته منظور نه ده اوداخبریعنی انکاریعقوب ته هم اورسیدلو، څه وخت پس داجینۍ د تا یا زا د رور رشتې غوښتلوباندې جینۍ رضامندی ظاهره کړه اوحقیقی رور ددې نکاح اوکړه او رخصتی هم اوشوه اوس جینۍ هلته خوشحاله او

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲٤ باب الولی)

﴿۲﴾ شرح التنویر علی هامش الشامیة ۲ل ۳۲۲ باب الولی)

راضی ده اوس یعقوب په عدالت کښې مقدمه درج کړه،دریافت طلب امر دادې چه مخکښې دایجاب اوقبول اعتبارعندالشرع وویانه؟ اودادویمه نکاح صحیح ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولاناعبدالرشیدچهاونی پشاور...... ۱۳۳جولائ۱۹۷۵ء

**الجواب**: بشرط صدق اوثبوت دا عقد اول نامنظوراو کالعدم دې.

**کما فی العالمگیریة (۱:۳۰۵) لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکراً کانت او ثیباً فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل، کذا فی السراج الوهاج﴿۱﴾. وهوالموفق**

## جینئ بالغ کیدلو سره د جرګې په مخامخ د واده نه انکار اوکړو. ایا دا نکاح به کالعدم وی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئله باره کښې چه دوه نابالغ هلک جینئ د ولی په اجازت سره په حضور دشاهدینو بالغینوعاقلینونکاح اوشوه بیا د واده نه مخکښې جینئ دبالغ کیدلوسره دعام جرګې په مخامخ دخپلې نکاح دمنسوخ کولورائ ښکاره کړه اودواده نه ئې انکاراوکړو. ایا ددې عدمې قبولیت په وجهې سره دانکاح فسخه کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداسماعیل پبی آرایس...... ۱۹۷۵ء۱۲۱۴۱

**جواب**: که چرته دانکاح دپلار یادنیکه نه علاوه بل ولی عقد کړې وی نو معتبر اعلان دناراضګې په صورت کښې دانکاح قاضی فسخه کولې شی. کمافی الهندیه(۱:۳۰۴) ویشترط فیه القضاء بخلاف خیارالعتق کذافی الهدایه﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)



## د نیا په کورکښې اوسیدونکې بالغه د پلارکړې شوې نکاح نه د انکارمسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئله باره کښې چه دنن نه شپاړس کاله مخکښې چه خاوند خپله ښځه اولورد کورنه اوخکلوسره اوئیل چه ماته سره د لورنه ښښلې ئې،ددې نه پس دا ښځه سره دلوردمورکورته لاړه اوشپاړسو کالو پورې خاونددې خیرخبروانخستلوکله چه پلارته پته اولیګده چه نن شپه ددې نکاح کیدلووالاده،نوپلاردخپل طرف نه دماسخوتن دمونځ نه مخکښې ددې جینئ نکاح دبل هلک سره اوکړه کله چه جینئ ته معلومه شوه چه زماپلارزمانکاح دبل هلک سره کړې ده نودفورادخپلې مور او نیا اود یوبل کس سره تهانې ته روانه شوه اورپوټ ئې درج کړواووې وئیل چه ماته دموراونیاوالانکاح منظوره ده اوپلارزماچه کومه نکاح دکوم کس سره کړې ده هغه ماته نامنظوره ده،دشریعت په رڼاکښې دپلارکړې شوې نکاح صحیح ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمجیدلاهورصوابی...... ۱۹۷۴ء۱۳۱۱۰۱

**جواب**: کله چه پلارددې جینئ نکاح کوله اوهغه جینئ بالغه وه،اوهغې ته دنکاح خبررسیدلوسره رپوټ درج کولودپاره روانه شوه اوانکارئې اوکړو، نود شریعت په رڼاکښې دپلارکړې شوې نکاح نامنظوره ده اودې بالغې جینئ ته اختیاردې چه کوم ځائ غواړی نکاح کولې شی﴿۱﴾وهوالموفق

## د ماما د نابالغه خورځې نکاح تړل اود جینئ د ناراضګئ مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیوجینئ نکاح دعدمې

﴿۱﴾وفی الهندیة: **لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیباً فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذا فی السراج الوهاج.** (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

بلوغ په ورځو کښې ماماديو سړي سره او تړله جينئ بلوغت درسيدلو سره اعلان اوکړو چه ماته دا نکاح نامنظوره ده او نه زما ماما زما د نکاح حقدار دې، دجينئ والدين ژوندى نه دى د دې نکاح شرعي حکم څه دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن غريب پورخيرآباد نوشهره....... ۲۰/۱۲/۱۹۷۲ء

**الجواب:** که چرته جينئ دبلوغت سره داعلان کړي وي نو دمسلمان حاکم په ذريعې سره دا نکاح فسخه کيدې شي فى الدرالمختار بشرط القضاء للفسخ (هامش ردالمحتار ۲: ۴۲۱)(۱) وفى الهنديه ويشترط فيه القضاء (۱: ۳۰۴)(۲) وهو الموفق

## د بالغې جينئ نه اجازت اخستل او د جينئ په کورکښې د نکاح تړلو مسئله

**سوال:** څه فرمائى علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د نکاح په تقريب کښې مشوره ده کيدله چه ديني رور کوم مقرر کړې شي. مااووئيل چه کله پلارولى موجود وى نو دوکالت څه ضرورت دې؟ دويم سړى ماته اووئيل چه چونکه دجينئ مرضى دګواهانو مخکښې ضروري ده او پلاردې کارله نشي کولې، ددې وجهې نه غيرمحرم عزيز ديني رورجوړولې شي دې وجهې نه ما خاموشي اختيارکړه، ليکن په زړه کښې مې دا مسئلې مخ ته راغلې چه: دخاوند په کورکښې نکاح څنګه کولې شي؟ او ايا پلار دلورنکاح نشي تړلې؟ او ددې ګواهئ څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل محمد باجا صوابى........ ۱۹/نومبر ۱۹۸۹ء

(۱) قال العلامة الحصكفى: ولكن لهما اى لصغير وصغيرة خيار الفسخ بالبلوغ او العلم بالنكاح بعده بشرط القضاء للفسخ.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۲ باب الولى)

(۲) وفى الهندية: وان زوجهما غير الاب والجد فلكل واحد منهما الخيار اذا بلغ ان شاء اقام على النكاح وان شاء فسخ...... ويشترط فيه القضاء.
(فتاوىٰ عالمگيريه ۲: ۲۸۵ الباب الرابع فى الاولياء)



**جواب:** کله چه جينئ نابالغه وى نو پلار وغيره ددې جينئ دنکاح تړلو مجازوى البته که چرته پلاريانيکه نکاح او تړله نو په دې صورت کښې جينئ ديپاره خيار بلوغ نشته(۱) او کله چه جينئ بالغه او پيغله وى نو بغير ددې داجازت نه نکاح تړل کالعدم دى. البته که چرته داجازت اخستلو دپاره اجنبى سړې روان شى نو تصريح ضروري ده ګنى خاموشى ژړل وغيره څنګه چه عرف وى کافي دى(۲) او دبالغه کيدلو په صورت کښې بهرحال دامستحب دى چه دوه سړې په دې اجازت باندې ګواه جوړشى ضرورى نه ده(۳) او د واده نه پس دخاوند په کور کښې نکاح تړل ناجائز نه دى ليکن مصلحت دادې چه دپلارپه کور کښې باقاعده نکاح او تړلې شى او مهر مقرر کړې شى چه د ډيرو مشکلاتو نه خلاصي حاصل شى(۴) وهو الموفق

(۱) وفى الهندية: فان زوجهما الاب والجد فلا خيار لهما بعد بلوغهما وان زوجهما غير الاب والجد فلكل واحد منهما الخيار اذا بلغ ان شاء اقام على النكاح وان شاء فسخ الخ.
(فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۸۵ الباب الرابع فى الاولياء)

(۲) قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلى: ولا اجبار على البكر البالغة فى النكاح والسنة للولى ان يستأمر البكر قبل النكاح ويذكر لها الزوج فيقول ان فلانا يخطبك او يذكرك فاذا سكتت فقد رضيت، ولو ضحكت فهو اذن ولو بكت ان كان بغير صوت فهو رضا ولو استأذنها غير الولى فلا بد من القول.
(الاختيار لتعليل المختار ۲: ۱۲۱ تا ۱۲۴ فصل فى اعتبار عبارة النساء)

(۳) قال العلامة محمد امين الشامى: واعلم انه لا تشترط الشهادة على الوكالة بالنكاح بل على عقد الوكيل وانما ينبغى ان يشهد على الوكالة اذا خيف جحد الموكل اياها فتح.
(فتاوىٰ الشاميه هامش الدر المختار ۲: ۳۵۲ مطلب فى الوكيل والفضولى فى النكاح)

(۴) قال العلامة الكاسانى: لا جواز للنكاح بدون المهر عندنا...... قال اصحابنا ان المهر شرط جواز نكاح المسلم...... ويجوز النكاح بدون المهر...... يجب مهر المثل بنفس العقد عندنا حتى يثبت لها ولاية المطالبة بالتسليم الخ. (البدائع الصنائع ۲: ۵۵۹ فصل ومنها المهر)

## د نکاح په خبربانديِ د ښځې خاموشی او بيا د انکارحکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه دښځې نکاح پلار دیو سړی سره اوکړه کله چه ښځې ته دعقدنکاح خبراورسیدلونوهغه خاموش پاتې شوه،ددې نه پس په دویمه ورځ دې انکاراوکړواووې وئیل چه زه په دې نکاح راضی نه یم،ایادانکاح صحیح ده یانه؟ اوکه چرته ښځه راضی کړئ شی نوبیاپه سابقه نکاح باندې اکتفاءاوکړئ شی یاتجدیدد نکاح ضروري دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعدالرشید زیارت کاکاصاحب........ ۲۵۱۳۱،۱۹۲۹

**جواب:** که چرته دانښځه دخبررسیدلوپه وخت کښې خاموشه پاتې شوئ وی اودومره الفاظ ئی هم نه وی وئیلي چه ماخوتاسوته اول نه واضحه کړې وه چه زه دفلانی سره په نکاح کولوباندې راضی نه یم،نوپه دې صورت کښې دانکاح صحیح ده.

**فی الدرالمختار: ولو استأذنها فی معین فردت ثم زوجها منه فسکتت صح فی الاصح (قال العلامة الشامی ۲:۲۱۲) اما لو قالت حین بلغها قد کنت قلت انی لا ارید فلانا ولم تزد علی هذا لم یجز النکاح انتهیٰ﴿۱﴾، قلت فاذا صح النکاح بالسکوت فلا یبطل بالانکار اللاحق. وهوالموفق**

## د نکاح فضولی په صورت کښې علم کیدلو باندې په اوچت آواز ژړیدلو سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه یوولی خپله متوله چه هغه بالغه باکره وی بغیرداجازت نه دمتولیه چاته په نکاح کښې ورکړه، د نکاح په خبرملاویدلوباندې په اوچت آوازژړیدل شروع کړل حالانکه دا ژړیدل رسمی نه وو بلکه دخاص ناراضګئ دوجهې نه وو.اوس واده اوشو او

﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۲۵ باب الولی)



د واده په وخت تجدید دنکاح هم اونه شوایادانښځه ددې سړی منکوحه ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالقهار........

**جواب:** که چرته دقرائنونه دامعلومه وی چه دانښځه په دې نکاح راضی نه ده نو دا نکاح صحیح نه ده که چرته اشتباه موجودوی نوتجدیدد نکاح ښه اوبهتر دې.

**فی الدرالمختار: ولا تجبر البالغة البکر علی النکاح فان استأذنها هو او زوجها فسکتت او بکت بلا صوت فهو اذن، فلو بصوت لم یکن اذ ناولا رداً حتی لو رضیت بعده انعقد، (انتهیٰ باختصار وتقدیم وتاخیر)﴿۱﴾ وفی ردالمحتار ۲:۳۱۱ قال فی الفتح بعد حکایة الروایتین: والمعول اعتبار قرائن الاحوال فی البکاء والضحک فان تعارضت او اشکل احتیط انتهیٰ فقد ظهر لک ان ما فی المعراج ضعیف لا یعول علیه، انتهیٰ ما فی ردالمحتار﴿۲﴾. وهوالموفق**

## د نکاح په اطلاع باندې دجینئ رضاء او عدم رضا پیژندل اود نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې په کوژدنه اونکاح کښې یوولی هم دخپلې بالغې متولیه نه دنکاح اجازت نه اخلی بلکه ولی دخپلې مرضې مطابق چاته په نکاح کښې ورکوی که متولیه راضی وی اوکه نه وی راضی بلکه ولی دمتولیه دنکاح پټولوکوشش هم کوی. اودرې څلورومیاشتوپورې دیته خبرنه وی؟ روستوچه کله متولیې ته دنکاح پته اولیږی نوپه اوچت آوازسره په ژړاشی که دې ته دولی نکاح خوښه وی اوکه نه وی خوښه.اوس بعضې خلق وائی چه داژړیدل په اوچت آوازسره دا د رواج دوجهې نه دی دناراضګئ دوجهې نه ندی اوکه چرته دښځې نه دې باره کښې پوښتنه اوکړئ شی نوهغه وائی چه داوچت آوازژړیدلودوه صورتونه دی اول داچه دجینئ اودخاوندپه مینځ کښې دڅه فرق وی یعنی جینئ کم عمره وی اوخاوندزیات عمروالایاداچه جینئ صحت منده اوښه بدن والاوی

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۲۴ باب الولی)
﴿۲﴾(ردالمحتار علی شرح التنویر ۲:۳۲۵ باب الولی)

او هلک کمزوري او ګډوي، یاجینۍ دیواوچت خاندانه نه وی او هلک دبې نومه کورنۍ والایاځه نورقسمه فرق وی نوداپه اوچت آوازژړیدل دنکاح د ناخوښي دوجهې نه وی، اودویم صورت دادې که چرته مذکوره فرقونوکښې څه قسمه فرق نه وی نوبیاهم دمورپلاردکوردجدائي دوجهې نه یوه جینۍ هم نکاح نه خوښه وی اوکله کله دومره په اوچت آوازسره اوژاړی چه جینۍ بې هوشه شی یا بیماره شی ددې قسمه نکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدعمرلورالائ........ ۲/۵/۱۹۷۵ء

**جواب:** که چرته دابالغه دباقاعده اطلاع نه پس په واضحو الفاظو کښې انکار اوکړی نودانکاح کالعدم ده دواده په وخت دوباره نکاح کول (په اجازت) سره ضروری دی،

کما فی الهندیة (۱:۳۰۵) **لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکراً کانت او ثیباً فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذا فی السراج الوهاج﴿۱﴾.**

او که چرته صرف په اوچت آوازسره ژاړی نوپه قرائنو باندې به دارومدار کولې شی او که چرته اشتباه واقع وی نوپه احتیاط باندې به عمل کولې شی.

**کما فی ردالمحتار ۲:۴۱۱ قال فی الفتح والمعول اعتبار قرائن الاحوال فی البکاء والضحک فان تعارضت اواشکل احتیط انتهیٰ﴿۲﴾ ای النکاح لا یثبت بالشک. وهو الموفق**

## په استیذان کښې د جینۍ خاموشی اجازت دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې لورنکاح اوکړه اولورئې خاموشي اختیارکړه، ایادا نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام صادق شاه کوټ پشاور........ ۲۵/صفر ۱۴۰۲ء

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۲۵ قبیل قوله فهو اذن باب الولی)



**الجواب:** دانکاح شوې ده، کما فی شرح التنویر ۲:۴۱۰ فان استاذنها........ فسکت...... فهواذن الخ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د ګواهانو په مخامخ د جینۍ نکاح، روستو د جینۍ انکار اود عدم بلوغت دعویٰ وغیره

**سوال:** څه فرمائی علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه جینۍ دوو ګواهانو ته دنکاح اجازت ورکړو، جینۍ ځوانه وه، روستو داختلاف په وجه دې انکاراوکړو اودعوی ئې اوکړه چه زه دنکاح په وخت نابالغه ووم، یاده دې وی چه دنکاح په وخت دمورپلارهم اجازت وو، اوس شرعی مسئله څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالوکیل تحصیل هزاره........ ۱۲/۱۱/۱۹۷۲ء

**الجواب:** دانکاح دخیاربلوغ په وجه فسخه کول دشریعت خلاف دی، ځکه که چرته دابالغه وه، نودبالغې په نکاح کښې خیاربلوغ تصور کیږی نه، اود نابالغې عقدنکاح که چرته پلاریانیکه کړې وی نوپه هغې کښې خیاربلوغ نشته، کمافی الهندیه ۱:۳۰۴ فان زوجها الاب والجد فلاخیار لها بعد بلوغها﴿۲﴾ وهوالموفق

## بغیر دولی نه نکاح تړل اود ښځې په دویم ځائ کښې د نکاح کولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه مسمی زیدهغه چه غیرولی دې دمسماة جمیله اخترسره نکاح اوتړله حالانکه په نکاح کښې دجمیله اختر یو وارث هم نه وو، اوپخپله جمیله اخترته هم دانکاح منظورنه وه، ددې وجهې درخصتئ نه مخکښې جمیله اختردبل سړی سره نکاح اوتړله

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۲۳ باب الولی)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

او رخصتی اوشوه. اوس مقدمه روانه ده کومه نکاح صحیح ده او کومه نه ده صحیح؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالحئ صاحب...... ۱۹۷۴ء/۲۱/۱۸

**جواب:** که چرته جمیله اختر باقاعده په دې سابقه نکاح باندې ناراضګی ظاهره کړې وی. نو دا سابقه نکاح نامنظور او کالعدم ده. فی الهندیه ۱: ۳۰۵ لایجوز نکاح احد بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیبا الخ(۱) قلت فالاجنبی یکون اولی بعدم الصحة: وهو الموفق

## د جینۍ پلار نیکه ته د نکاح اختیار ورکولو نه پس انکار کول.....؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپل پلار ته دخپلې لور اختیار ورکړو چه چاسره دې خوښه وی ددې نکاح او کړه. په دې باندې نیکه دخپل نمسی سره ددې نکاح تړل او غوښتل. کله چه دجینۍ پلار ته معلومه شوه نو هغه انکار او کړو چه دا نکاح به نه کوی. اوس نیکه ته چه کوم اختیار ورکړې شوې دې ایا بغیر د رضامندۍ دجینۍ دپلار نه دا نکاح کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی غلام غوث امام مسجد ډهوک فتح کیملپور ۱۹۷۰ء/۹/۱۴

**الجواب:** چونکه پلار د نیکه په نسبت نزدې ولی دې لهذا د پلار د نه موجودګۍ په وخت کښې نیکه ته د نکاح حق حاصل نه دې(۲) او د جینۍ پلار چه کله نیکه د وکالت نه معزول کړو نو د وکالت حق هم ختم شو. لهذا د پلار د رضامندۍ نه بغیر دچا نکاح کول منظور نه دی. فی الدر المختار: متی شاء مالم یتعلق به حق الغیر(۳) وهو الموفق

(۱) (فتاوی عالمګیریه ۱: ۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

(۲) قال العلامة الحصکفی: وللولی الابعد التزویج بغیبة الاقرب فلو زوج الابعد حال قیام الاقرب توقف علی اجازته، قال ابن عابدین: کذلک فلا یکون سکوته اجازة لنکاح الابعد وان کان حاضرا فی مجلس العقد مالم یرض صریحاً او دلالةً (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۴۱ قبیل فروع باب الولی)

(۳) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۴: ۴۶۳ باب عزل الوکیل)



## د سیئ الاختیار پلار د نابالغه لور د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د زید او ده د ښځې په مینځ کښې تعلقات خراب دی. اوس زید د ښځې د تنګولو د پاره د خپلې نابالغه لور نکاح په غیر قبیله کښې کوی. اوس مطلوب دا دې چه جینۍ ته د فسخې نکاح د پاره خیار بلوغ به حاصل وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعد الباقی جان شیرګړ......... ۱۴۰۱/۴/۲۴ھ

**جواب:** کله چه پلار سیئ الاختیار نه وی یعنی ددې نه مخکښې پلار بلې لور له په غیر مناسب ځائ کښې نه وی ورکړې نو دا نکاح لازم او ناقابل تنسیخ ده.

لما فی شرح التنویر: او زوجها بغیر کف ان کان الولی المزوج بنفسه ابا او جداً لم یعرف منهما سوء الاختیار مجانةً وفسقا وان عرف لا یصح النکاح (بحذف یسیر) (هامش ردالمحتار ۲: ۳۱۸) (۱). وهو الموفق

## پلار د بالغې لور نکاح په زور نشی کولې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه جینۍ بالغه ده ددې عقد نکاح ددې پلار او کړو، مګر دا په دې عقد باندې ناراضه ده او نه ئې منی نو ایا د پلار دا جبری نکاح کیدلې شی؟

المستفتی: عبد الرحیم ایبټ آباد

**جواب:** که چرته دا امر چه جینۍ ددې عقد په وخت بالغه وه، او په دې عقد باندې د ناراضګۍ اعلان کړې وی که مسلّم وی یا معتبرهن وی نو دا عقد به نامنظور او کالعدم وی، کما فی الهندیه (۱: ۳۰۵) فلیراجع (۲) وهو الموفق

(۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۰ باب الولی)

(۲) قال العلامة النظام: لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیباً فان فعل ذلک فالنکاح...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د هلک په غیر موجودګۍ کښې نکاح او واده کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه نظام پور کښې دارواج دې چه دهلک په غیرموجودګۍ کښې واده کولې شی. دنکاح په وخت دهلک دطرف نه دده پلار رضامندئ اظهاراوایجاب اوقبول اوکړی، بیاچه کله هلک دفارن نه په چهټئ باندې راشی نوددوباره نکاح نه بغیر خاونداوښځه په ازدواجئ زندګۍ کښې منسلک شی ایاداصحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: شاه الیکټرک ستورنوشهره...... ۱۹۷۲ء ۳\۱۷

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې کله چه پلار دخپل زوئ نه اجازت اخستئ وی نودانکاح بغیردشک اوشبهې نه صحیح ده اوکه چرته اجازت نه وی اخستلې شوې خولیکن زوئ په خبریدوباندې قولاً یا فعلاً قبول کړې وی نو بیاهم صحیح ده اوکه چرته هلک انکارکړې وی نونکاح نامنظور ده﴿۱﴾ وهو الموفق

## د پلار اجازت چه نه مبرهن وی نه مسلّم

## نو د نیکه کړې شوئ نکاح کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې نابالغې لوراختیارخپل زوئ ته وکړو مګردرور په نه موجودګۍ کښې دجینئ نیکه دجینئ نکاح دیوهلک سره اوکړه. مګردجینئ پلارددې نکاح دنفاذنه منکر

(بقیه حاشیه) موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذافی السراج الوهاج...... بالغة زوجها ابوها فبلغها الخبر فقالت لا ارید او قالت لا ارید فلانا فالمختار انه یکون رداً فی الوجهین. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۷،۲۸۸ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۱﴾وفی الهندیة: رجل زوج رجلا امرأة بغیر اذنه فبلغه الخبر فقال نعم ما صنعت او بارک الله لنا فیها او قال احسنت او اصبت کان اجازة کذا فی فتاویٰ قاضی خان وهو المختار اختاره الشیخ ابواللیث کذافی المحیط...... رجل زوج امرأة من رجل بغیر امرها فبلغها الخبر فقالت باک نیست فهذا اجازة الخ.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۹۹ الباب السادس فی الوکالة بالنکاح)



وو، د پلاردعزت دوجهې نه دنکاح په مجلس کښې موجودوو، دمجبورئ نه ئې شرکت اوکړو، څکه چه دلعن طعن نه محفوظ شی، اوس جینئ بالغه ده خپله ګټه اونقصان پیژنی، دطرفینودا ختلاف دوجهې نه جینئ ددې نکاح منلونه منکرده. دنکاح ولی هم منکر دې اونیکه ئې هم مخالف دې، البته داهلک کوروالا ګواه پیش کوی چه دنکاح په وخت پلارنیکه ته اجازت ورکړې ووهغه دجینئ پلاردروغژن بولی. په دې صورت کښې دانکاح شوې ده یانه دې شوې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی غلام نبی اچهریامانسهره....... ۱۳\شعبان ۱۴۰۲ء

**جواب:** که چرته دپلاردطرف نه ددې عقداجازت نه مبرهن وی اونه مسلّم وی نودا عقد نافذنه دې.

کما فی ردالمحتار ۳: ۸۱ (مطبع مصطفیٰ البابی) والظاهر ان سکوته (الاقرب) هنا کذلک فلا یکون سکوته اجازة لنکاح الابعد وان کان حاضراً فی مجلس عقد النکاح مالم یرض صریحاً او دلالةً تامل﴿۱﴾. وهوالموفق

## د نابالغې حق ولایت د علاتی رور د پاره دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې یوسړې وفات شواودده نه یو زوئ اودرې لوریانې پاتې شوې، اویوښځه ترینه هم پاتې شوه چه هغه صرف دجینکومورده، دې ښځې دویم واده هم اوکړواوس دجینکودنکاح حق ولایت ددې موریادمورخاوندته به حاصل وی یاعلاتی رورته؟ بینوا توجروا

المستفتی: یوسف شاه حقانی وزیرستان....... ۱۴\ربیع الاول ۱۴۰۱ء

**جواب:** که چرته داعلاتی رورددې علاتی خویندوبدخواه نه وی نودې علاتی

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۳۴۱ قبیل الفروع باب الولی)

روورته ددې علاتی خویندوهغه چه نابالغه دی. حق ولایت حاصل دې نه چه مور یا د مور خاوندته. والتفصیل فی الدرالمختار﴿۱﴾وهوالموفق

## د عاقلې بالغې د کفو سره نکاح نافذ ده اګرچه ولی په دې راضی نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوعاقلې بالغې ښځې نکاح دیوکس سره اوشوه اودنکاح په فارم باندې دستخط د ګواهانو اومولوی صاحب په مخامخ هم موجودوی. اودنکاح په وخت ئې ددوی په مخکښې رضامندی هم ظاهره کړې وی. روستو دمنکوحې دخپلوانوپه نه رضامندئ باندې به دا نکاح بحال وی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعیداحمدعباسی........ ۱۹۷۳ء۱۵۱۶

**الجواب:** که چرته دانکاح د کفو سره شوې وی نوبحال به وی. دې لره پلاروغیره فسخ کولې نه شی

وفی الهندية ۱:۳۰۵ نفذ نکاح حرة مكلفة بلا ولی عند ابی حنيفة وابی يوسف فی ظاهر الرواية﴿۲﴾ وبمعناه فی ردالمحتار﴿۳﴾ والبحر والفتح والخلاصة وغيرها. وهوالموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی: الوالی فی النكاح العصبة بنفسه وهو من يتصل بالميت بلا توسط انثى على ترتيب الارث والحجب، قال ابن عابدين: وابن الابن كالابن ثم يقدم الاب ثم ابوه ثم الاخ الشقيق ثم لاب.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۳۸ مطلب لا يصح تولية الصغير شيخاً على خيرات)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولياء)

﴿۳﴾قال العلامة الحصكفی: فنفذ نكاح حرة مكلفة بلا رضا ولی...... وللولی اذا كان عصبة...... الاعتراض فی غير الكفؤ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۲۲ باب الولی)



## د مور ولایت د اخیافی تره نه قوی دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دجمیلې واده اکرم سره اوشواوددوی نه یوهلک خالدپیداشو. روستواکرم وفات شو. بیاجمیلې د اسلم سره دویم واده اوکړواویوهلک حامدترینه پیداشو. اوس خالد او حامد د مورپه رشته کښې رونړه دی. خالدنکاح اوکړه دده یولورشاهده پیدا شوه. اودحامدزوئ شکیل پیداشو. په دې دوران کښې دخالدانتقال اوشو. حامد دشاهدې نکاح دپنځومیاشتوپه عمرکښې دخپل زوئ شکیل سره اوکړه. دبالغه کیدلونه پس شاهدې نکاح ختمه کړه. ایاشاهده دانکاح ختمولې شی؟ بله داچه حامدوائی چه شاهده زماوریره ده زه ددې ولی یم. حالانکې مورئې وائی چه زه زیاته حقداره یم نودولایت زیات حق چاته حاصل دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی نعیم شاه کبیرکلې ضلع کرک..... ۱۲۲رمضان ۱۴۰۸ء

**الجواب:** دمورولایت داخیافی تره نه قوی دې﴿۱﴾پس که چرته دعقدنکاح په وخت مورئې اعتراض کړې وی نودتره کړې شوې نکاح کالعدم ده﴿۲﴾ګنې دخیاربلوغ دوجهې نه دفسخې قابله ده(شامی)﴿۳﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: الوالی فی النكاح العصبة بنفسه وهو من يتصل بالميت بلا توسطة انثى على ترتيب الارث والحجب...... فان لم يكن عصبة فالولاية للام.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۳۷، ۳۳۹ باب الولی)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفی: وللولی الابعد التزويج بغيبة الاقرب فلو زوج الابعد حال قيام الاقرب توقف على اجازته. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۴۱ باب الولی)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: وان كان من كفء وبمهر المثل صحيح لكن لهما ای لصغير وصغيرة خيار الفسخ ولو بعد الدخول بالبلوغ او العلم النكاح بعده.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۳۲ باب الولی)

## د پلار د انکار او ناراضګئ د وجهې نه د نیا کړې شوې نکاح کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه صالحه چه نابالغه وه، ددې نیا ددې عقد نکاح د صالحه د پلار د مشورې نه بغیر د طورو سره او کړه حالانکه په دې وخت یعنی په وخت د ایجاب او قبول په جرګه کښې پلارئې صفا انکار هم او کړو، اوس بالغه کیدلو باندې صالحې پخپله او د پلار په مشوره باندې د بل سړی هاشم سره عقد نکاح او کړه. اوس طورو دعوی کوی چه دا جینئ زما په نکاح کښې ده چه ددې نیا دا ماله راکړې ده. اوس سوال دا دې چه سابقه نکاح صحیح ده که دویمه نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد یونس نوازآباد هزاره...... ۱۹۷۵ء۱/۹/۷

**جواب:** که چرته پلار په دې سابقه نکاح باندې انکار کړې وی او د ناراضګئ اظهارئې کړې وی نو دا سابقه نکاح به نامنظوره او کالعدم وی.

**کما فی الدرالمختار: فلو زوج الابعد حال قیام الاقرب توقف علی اجازته. (هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۲) ﴿۱﴾. وهو الموفق**

## د نابالغې جینئ د تره د زوئ زوئ د موجود کیدلو په صورت کښې د مور د نکاح کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ایا مور د خپلې نابالغې لور نکاح د تره د ځوئ ځوئ د موجود کیدلو په صورت کښې کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلیم الرحمٰن تل کوهاټ.......

**جواب:** که چرته دې ولی (چه د تره د ځوئ ځوئ دې) ﴿۲﴾ د مور و الا په نکاح

﴿۱﴾ **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۴۱ باب الولی قبیل باب الکفاءة)**

﴿۲﴾ **قال العلامة الحصکفی: الوالی فی النکاح العصبة بنفسه...... علی ترتیب الارث والحجب...... فان لم یکن عصبة فالولایة للام ثم لام الاب.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۷، ۳۳۹ باب الولی)**



باندې رضامندی ښکاره کړې نه وی نو دا مخکښنئ نکاح به کالعدم وی او ددې ولی نکاح به معتبره وی. ﴿۱﴾ البته د جینئ د پاره به خیار بلوغ ثابت وی ﴿۲﴾ (شامی) بحر، هندیه) وهو الموفق

## د نابالغې خور په غیر کفو کښې نکاح کول نامنظور دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید د خپلې وړوکی خور چه د هغې پلار وفات شوې دې او هغه نابالغه ده، د بکر سره نکاح او کړه کله چه جینئ بالغه شوه نو دې په دې نکاح باندې اعتراض او کړو او ددې نه ئې په قطعی طور باندې د ناراضګئ اظهار او کړو بلکه کله نه چه نکاح شوې ده د هغې وخت نه تر او سه پورې انکار کونکې را روانه ده نیز بکر غیر کفو هم دې ایا دا نکاح صحیح ده او برقراره پاتې کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید فدا حسین شاه کهاریان ګینټ...... ۱۹۷۴ء۱۲/۱۱/۸

**الجواب:** بغیر د پلار او نیکه نه کله چه جینئ په غیر کفو کښې ورکړې شی نو دا نکاح کالعدم وی پس بشرط صدق او ثبوت دا نکاح د عدمې کفائت په وجهې سره به نامنظوره او کالعدم وی.

**لما فی الدرالمختار: وان کان المزوج غیرهما ای غیر الاب وابیه لا یصح النکاح من غیر کفو او بغبن فاحش اصلا، وفی ردالمحتار ۲: ۴۲۰ قوله اصلاً ای لا لازماً ولا موقوفاً علی الرضا بعد البلوغ ﴿۳﴾. وهو الموفق**

﴿۱﴾ **قال العلامة الحصکفی: فلو زوج الابعد حال قیام الاقرب توقف علی اجازته.**

**(شرح التنویر علی هامش الشامیة ۲: ۳۴۱ باب الولی)**

﴿۲﴾ **وفی الهندیة: وان زوجهما غیر الاب والجد فلکل واحد منهما الخیار اذا بلغ ان شاء اقام علی النکاح وان شاء فسخ.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ۲: ۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)**

﴿۳﴾ **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۳۱ مطلب هل للعصبة تزویج الصغیر امرأة)**

## خیاربلوغ او په عدالت کښې په زبردستۍ سره غلط بیانی اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زینب یویتیمه جینئ وه دلس کالوپه عمرکښې تره موراونیایوځائ شول اوزید سره ئې ددې نکاح اوکړه اوتربلوغت پورې ئې رخصتی ایساره کړه کله.چه زینب بالغه شوه نو مورئې زیدته درشتې ورکولونه انکاراوکړوبلکه دنکاح دفسخې کولودپاره ئې په عدالت کښې دعوی دائره کړه.چونکه زینب دزید سره په نکاح کولو باندې خوشحاله اوراضی وه خولیکن مورئې په زبردستئ اوپه جبرکولوسره د زینب نه غلط بیان په عدالت کښې واخستواوعدالت یکطرفه فیصلې کولوسره زینب ته ددویمې نکاح کولواجازت ورکړوایاپه دې صورت کښې زینب دبل سړی سره دویمه نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: منظوراحمدشاه دیپ ګران مانسهره...... ۲۷\۷\۱۹۷۲ء

**جواب:** که چرته زینب دبلوغت معلوم کیدلوسره نزددعدمې رضامندئ اظهار کړې نه وی نونکاح دخیاربلوغ په وجهې سره فسخه کول بې قاعدې اوغلط دی.اودانکاح الان کماکان هم دغسې پخپل حال باقی ده ددې دپاره دوئم ځائ کښې نکاح کول حرام دی.

فی الدرالمختار: بطل خیار البکر بالسکوت لو مختارة عالمة باصل النکاح ولا یمتد الیٰ آخر المجلس، (هامش ردالمحتار ۲: ۴۲۶)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د پلار د اجازت نه بغیر د نابالغې نکاح که تره اوتړله نو هغه به نامنظوره وی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه درې رونړه دی.ارشد، خواجه اوانور دارشدرونړوخواجه اوانورمشوره اوکړه چه د ارشد د لور د مسماة زینب نکاح دخورائی سره کوو.ارشدډیوټې له تلې وواودده په عدم موجودګئ کښې ئې دده د لورنکاح اوکړه.ایادارشدذنابالغې لورنکاح دده

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۵ باب الولی)



اجازت نه بغیر کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانامحمداسماعیل ټوپی صوابې ۱۲۸ربیع الثانی ۱۴۰۲ء

**الجواب:** دپلارداذن اواجازت نه بغیربه دنابالغې نکاح نامنظوراوکالعدم وی لمافی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۳۲ وللولی الابعد التزویج بغیبة الاقرب فلو زوج الابعد حال قیام الاقرب توقف علی اجازته...... مسافة القصر واختار فی الملتقی ما لم ینتظر الکفء﴿۱﴾. وهوالموفق

## که پلارنکاح اوکړه او زوئ تصدیق اوکړی نو دا نکاح نافذه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دخپل مشرزوئ د اجازت نه بغیردنکاح وکالت اوکړویعنې قبوله ئې کړه.ګواه هم موجود وو. روستوپلارزوئ لره خبرکړواوهلک دپلاروکالت برقراره اوساتلو.البته ددې ګواه نشته.اوس دجینئ پلارانکاراوکړوچه دانکاح نه ده شوې.ځکه چه دلته دفضولی شکل متصوردې اوروستودهلک اجازت غیرمعتبردې. واضح اوفرمائې چه دانکاح شوې ده یانه ده شوې؟بینوا توجروا

المستفتی: قاری امیرالدین خټک...... ۴\۶\۱۹۷۹ء

**الجواب:** دانکاح لازمه اونافذه ده دبالغ هلک (جینئ) پلارفضولی وی﴿۲﴾ اود

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۴۱ باب الولی)

﴿۲﴾ قال عبد الله بن مودود الموصلی: وینعقد نکاح الفضولی موقوفا کالبیع اذا کان من جانب واحد اما من جانبین او فضولیا من جانب اصیلا من جانب فلا، اما الفضولی من جانب بان یزوج امرأة بغیر امرها رجلا وقبل الرجل او رجلا بغیر امره امرأة فقبلت فانه ینعقد ویتوقف علی اجازة الغائب.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۳۰ فصل فی اعتبار عبارة النساء)

اجازت نه پس دفضولی تصرف نافذ کیږی. صرح به فی البحرورد المحتار والهندیه وفتح القدیر وسائر کتب الفتاوی﴿۱﴾وهو الموفق

## د نابالغې نکاح که پلار کړې وی نو هغه قابل د فسخ نه وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ځما رور دخپلې لور د ګواهانو اوډ مولوی صاحب په مخامخ یوسړی سره نکاح اوتړله. جینۍ نابالغه وه. څلور کاله پس د جینۍ پلار فوت شو. اوس د کور په معاملاتو کښې د بدلون په وجه د جینۍ رور خپله خور هغه سړی ته نه ورکوی او پټه ئې په یو بل ځائ کښې نکاح کوله. چه هغلته مولوی صاحب د نکاح تړلو نه انکار اوکړو. اووې وئیل چه ددې جینۍ نکاح مخکښې د یو سړی سره شوې ده اودا منکوحه ده او ګواهان هم موجود دی. اوس سوال دادې چه د هغه ړومبنۍ نکاح په وخت کښې جینۍ نابالغه وه اوس جینۍ بالغه شوې ده ایا هغه په بل ځائ کښې نکاح نشی کولې؟ بینوا توجروا

المستفتی: جمعه خان مانسهره...۱۹۷۸ء۱۸۱۲۲

**جواب:** د کومې نابالغې نکاح چه پلار کړې وی یعنې پلار ایجاب او قبول کړې وی نودا نکاح لازم او ناقابل تنسیخ وی.

**کما فی الهندیة ۱:۲۰۴ فان زوجها الاب والجد فلا خیار لهما بعد بلوغهما﴿۲﴾، وفی شرح التنویر: ولزم النکاح ان کان الولی المزوج بنفسه ابا او جداً (بحذف) (هامش ردالمحتار ۲:۴۱۷)﴿۳﴾. وهو الموفق**

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (ان کانت ابنته حاضرة والا لا) ای ولم تکن حاضرة لا یکون العقد نافذاً بل موقوفا علی اجازتها کما فی الحموی لانه لا یکون ادنی حالا من الفضولی وعقد الفضولی لیس بباطل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۹۸ قبیل فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۳۰ باب الولی)



## د عاقلې بالغې جینۍ په کفو کښې د خپلې خوښې نکاح کول نافذ دی اګر چه پلار ناراضه وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو عاقله بالغه جینۍ چه د هغې د بلوغت تصدیق د محکمه صحت نه هم شوې دې. د پلار په ناخبرۍ او بغیر د مشورې نه او په خپل هوش او حواس سره دخپلې خوښې مساوی القوم کفو هلک لره دخاوند جوړولو په ارادې سره د مورپلار کور پریخودلو سره په رضا او رغبت علی الاعلان د دې هلک سره نکاح اوکړی او دخپلې خوښې خاوند سره په اطمینان سره ژوند تیرول شروع کړی. اوس د قومی ننګ اوناموس اوغیرت په وجه د جینۍ پلار په عدالت کښې دلور دخپلې خوښې خاوند خلاف رپورټ تیار کړې دې جینۍ هم عدالت کښې حاضره شوه اوخپل بیان ئې لیکلې دې. اوس که چرته پلار ضد کوی او د بل چا سره د رشتې سازش کوی اوپه زورزیاتۍ سره اوپه قسماقسم حربوسره جینې لره د سابق بیان نه واړوی اوخپله هم خیاله ئې جوړه کړی نو په دې صورت کښې:

(۱) د لور خلاف مرضۍ د پلار کړۍ شوې نکاح به شرعاً منعقد وی یا نه؟

(۲) یو اسلامی شرعی ادارې ته ددې مفصل بیان کړۍ شوې عقد نکاح د نسخ حق حاصل دې؟

(۳) په عدالت کښې د درج شوی بیان خلاف متناقض بیان چه هغه په زور زیاتۍ باندې کړې دې څه اعتبار شته دې؟

(۴) دهغه مخکښنۍ نکاح باوجود دویمه نکاح د بل سړی سره که چرته اوکړی نو ددې به څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام نبی شبقدر چارسده....۱۹۷۲ء۱۸۱۲۰

**الجواب:** چونکه دا جینۍ عاقله بالغه ازاده ده. ددې (په کفو) کښې عقدشوې نکاح لازم اوناقابل تنسیخ ده اګرچه پلار په دې باندې ناراضه وی....فی الهندیه ۱:۳۰۵ نفذ نکاح حرة مکلفة بلاولی عندابی حنیفه وابی یوسف فی ظاهر الروایه کذافی التبیین﴿۱﴾

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

وبمعناه فی ردالمحتار۲۰۷:۲﴿۱﴾وهو الموفق

## د پلار په موجودګئ کښې نیکه ته ولایت نشته

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپل ورکوټې زوئ دځان سره کړو او دکلی دوه معزز سړی هم دځان سره کړه دمشر زوئ کره لاړل هلته ئې دواړه ځامن یوځائ کړل او ورته ئې او وئیل چه مادمشرزوئ جینئ دکشرزوئ هلک ته ورکړه. اودکشرزوئ جینئ مې دمشرزوئ هلک ته ورکړه. یوهم انکاراونه کړو. البته دمشرزوئ ښځې انکاراوکړو. ایادې سره شرعی نکاح کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں محمدهری پورایبټ آباد...... ۲۷\۱ربیع الاول ۱۴۰۳ﻫ

**الجواب**: په ظاهره دانکاح شرعی نه ده. لعدم ولایة الجد عند وجود الاب﴿۲﴾ وعند بلوغ المتزوجین﴿۳﴾ ولعدم وجودالقبول المعتبر ظاهرا﴿۴﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله فنفذ نکاح حرة مکلفة بلا ولی) اراد بالنفاذ الصحة وترتب الاحکام من طلاق وتوارث وغیرهما لا اللزوم الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۲۲ باب الولی)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان زوج الصغیر او الصغیرة ابعد الاولیاء فان کان الاقرب حاضرا وهو من اهل الولایة توقف نکاح الابعد علی اجازته. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی: ولا تجبر البالغة البکر (ولا الحر البالغ) علی النکاح لانقطاع الولایة بالبلوغ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۲۴ باب الولی)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین: اجاب صاحب البدایة فی امرأة زوجت نفسها بالف من رجل عند الشهود فلم یقل الزوج شیئاً لکن اعطاها المهر فی المجلس انه یکون قبولا وانکره صاحب المحیط وقال الامام ما لم یقل بلسانه قبلت بخلاف البیع لانه ینعقد بالتعاطی والنکاح لخطره لا ینعقد حتی یتوقف علی الشهود الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۸۷ قبیل مطلب التزوج بارسال کتاب)



## د پلارپه کړې شوې نکاح کښې جینئ ته خیاربلوغ حاصل نه دې

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې نابالغې لور نکاح دیو سړی سره اوکړه. ګواهان وغیره ټول موجود وو. ایااوس دبالغه کیدلو نه پس دې جینئ ته خیاربلوغ حاصل دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری امیرالدین هائ سکول نمبر ۱ پشاورصدر ۱۵\ربیع الاول ۱۴۰۴ء

**جواب**: دې جینئ دپاره خیاربلوغ ثابت نه دې ځکه چه پلارئې نکاح تړلې ده. اوکله چه دنابالغې نکاح ولی اوتړی نوهغه منعقده کیږی. کمافی الهندیه ۲:۳۱۶ ویجوزنکاح الصغیر والصغیرة اذازوجها الولی الخ﴿۱﴾وهو الموفق

## د ماما کړې شوې نکاح بغیر د اجازت د پلار نه موقوفه ده

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیونابالغې نکاح هغې ماما داسلم سره اوکړه. دجینئ پلارپه کلی کښې موجود وو. لیکن دهغه نه ئې اجازت وانخستلو. اوهغه تراوسه پورې په دې نکاح ناراضه دې ایا عند الشرع مامادنکاح ولی کیدلې شی؟ ایاقاضی دانکاح فسخ کولې شی دبالغه کیدلو سره سم که چرته جینئ انکاراوکړی نوددې څه حل دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن نظام پور نوشهره...... ۱۲\۱۷\۱۹۷۴ء

**جواب**: که چرته پلاردخبرداری سره فورا ناراضګی ظاهره کړې وی اودانکاح ئې منظوره کړې نه وی نوبغیرد محتاج کیدلو دقاضی نه دانکاح فسخ او کالعدم ده، فی الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ۲:۳۲ فلوزوج قیام الابعد حال الاقرب توقف علی اجازته﴿۲﴾واضحه دې وی چه ددې په فسخ کښې قضاء او

---

﴿۱﴾(هدایه ۲:۳۱۶ باب فی الاولیاء والاکفاء)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۴۱ باب الولی)

قاضی ته څه ضرورت نشته دانکاح موقوفه ده نافذ نه ده.وهو الموفق

## د مدعی عقل ولی شهادت راجح دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دي مسئلې باره کښې چه دولی په عقل اوپه عته کښې اختلاف وی نودعته شهادت به راجح وی که دعقل شهادت به راجح وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملک شاه اوګئ مانسهره..... ۲۱\۱رمضان ۱۴۰۹هـ

**جواب:** دولی دمعتوه کیدلو مطابق داختلاف په صورت کښې دمدعی دعقل شهادت به ترجیح ورکولې شی.

کما فی شرح المجله (۵:۳۹۳ ماده ۱۷۶۹) ترجح بینة العقل علی بینة الجنون، فلو ادعی زید علی عمرو انک بعتنی عقارک هذا بثمن معلوم حال کونک عاقلا وادعیٰ عمرو ان البیع صدر منه حال الجنون او العته وبرهنا فبینة العقل اولیٰ﴿۱﴾. وهو الموفق

## بغیر د اجازت د بالغې نه نکاح کول باطل دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه یو پلار دخپلې بالغې لور نکاح دلور داجازت نه بغیر اوکړه، جینئ ته چه کله خبراوشونوفورائې انکار اوکړواوژړل ئې شروع کړل هغه وخت هم تیرشو اوهغه رسومات هم تیرشول خو جینئ قبول نه کړل اوتراوسه پورې انکارکوی، په شریعت کښې ددې نکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله تخت بهائي ضلع مردان.......

**الجواب:** بشرط صدق مستفتی دا نکاح باطله او کالعدم ده. لما فی الهندیة ج ۱ ۳۵۰

﴿۱﴾(شرح المجله لخالد الآتاسی ۵:۳۹۳ ماده ۱۷۶۹)



لایجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکراً کانت او ثیباً فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذا فی السراج الوهاج﴿۱﴾.وهو الموفق

## د نابالغې نکاح نیا اوکړه پلارئې تردید اوکړو. د نکاح څه حکم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دي مسئلې باره کښې چه دیونابالغې جینئ نکاح نیا اوکړه پلارئې موجودنه وو، پلارئې چه راغلو ددې نکاح تردیدئې اوکړو او انکارئې اوکړو، جینئ دبالغه کیدلونه پس ددې تردیداوکړو، آیادانکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولاناغریب الله (فاضل دیوبند) صوابی..... ۱۹۸۶ء۱۷۱\۷

**جواب:** که چرته دشهادت شرعیه نه داثابت شی چه ددې پلار ددې نکاح تردید اوکړونو دانکاح به کالعدم وی﴿۲﴾اوکه چرته دمجبورئ نه ددې پلار تسلیم کړې وی﴿۳﴾ نومسلمان جج به ددې نکاح تنسیخ کوی اود تنسیخ نه پس دا جینئ په بل ځائ کښې نکاح کولې شی﴿۴﴾وهو الموفق

﴿۱﴾(فتاوی عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان زوج الصغیر او الصغیرة ابعد الاولیا فان کان الاقرب حاضراً وهو من اهل الولایة توقف نکاح الابعد علی اجازته...... وان زوجهما غیر الاب والجد فلکل واحد منهما الخیار اذا بلغ ان شاء اقام علی النکاح وان شاء فسخ. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله توقف علی اجازته) ...... فلم یجعلوا سکوته اجازة والظاهر ان سکوته هنا کذلک فلایکون سکوته اجازة لنکاح الابعد وان کان حاضرا فی مجلس العقد ما لم یرض صریحاً او دلالة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۴۱ باب الولی)

﴿۴﴾ قال الشیخ شمس الحق الافغانی: واذا کان احد المتناکحین قاصرا بان کان صغیرا او معتوها او مرقوقا او مجنونا فللولی الاجبار علیه واذا افاق فلهما خیار الفسخ فی غیر الاب والجد بشرط القضاء کما فی السعدیات والهندیة. (معین القضاة والمفتیین ۷۵ الفصل الثالث فی الاولیاء والاکفاء وغیرهما)

# باب فی الاکفاء

## نکاح کښې د کفاءت نه بغیر موافقت مشکل وی

**سوال**: څه فرمائی علمائې دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د بعضې خلقو خیال دې چه سید خاندان د غیرسید خاندان سره نکاح نه کیږی. بعضې خلق په دې کښې عجیبه دلیلونه پیش کوی ددې صحیح وضاحت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ارباب امدادخان تهکال پشاور.......

**الجواب**: د الله تعالی په نزد د کرامت او نزدې والی دارومدار په تقوی سره دې. کما قال الله تعالی: ان اکرکم عندالله اتقاکم (الآیه)﴿۱﴾ او د کفاءت نه بغیر موافقت مشکل شی، ددې وجهې نه کفاءت معتبرشوې دې﴿۲﴾ او ټولو فقهاء کرامو واضحه کړې ده چه د غیرسید سره د سیده نکاح بغیر د اجازت د ولی نه

﴿۱﴾(سورة الحجرات پاره: ۲۶، آیت: ۱۳)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: واما اعتبار الکفاءة فمشروع بقوله تعالیٰ: والله لا یحب الفساد، ویغلب الفساد عند کون الزوج دنیئا عن الزوجة تسبه ویضر بها وتعاربه وبقوله علیه السلام لا تنکحوا النساء الا الاکفاء رواه البیهقی وفی سنده کلام لاکنه حجة بالتضافر والشواهد کما فی فتح القدیر...... واعلم مدار النجاة والکرامة عند الله علی التقویٰ قال الله تعالیٰ: ان اکرمکم عند الله اتقاکم، دون النسب والمال والصورة کما ورد به الاحادیث، لکن الشرع اعتبر الکفاءة لبقاء النظام والتحرز عن الفساد لان فساد ذات البین لیفضی الی الأثم والعصیان.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴: ۲۴۶ باب فی من ترضون دینه فزوجوه)

وقال الامام ولی الله الدهلوی: قال ﷺ: اذا......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



ناجائزدی او کالعدم دی﴿۱﴾ وهوالموفق

## په کفائت کښې د کسب او نسب تفصیل

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوسړې د حکومت په کاغذونو کښې بافنده یعنی جولا لیکلی شوې دې چه د څورشتې د قوم بافنده چه هغه په بل کلی کښې استوګنه کوی کړی دی او خپلې هم یو دوه رشتې ئې هغی ته ورکړې دی. بیاهم ددوی او د هغوی سلسه نسب یو ځائې نه معلومیږی. د زید غورنیکه دې کلی ته د بل ځائې نه راغلې او آبادشوې دې. خپل کافی جائیدادئې جوړکړې دې او ذریعه معاش زمینداری ئې اختیار کړې ده. ددې کس نه واخله څومره چه هم تیرشوئ دی یاموجوددی نو داپیشه کول پیژنی. چونکه د جداعلی نه پس ددوی په اولاد کښې معاشی تنګی پیدا شو. نو دوی نورې مزدورئ او ملازمتونه اختیارکړل د مجبورې په حالت کښې ئې وطن پریخودو، خو د بافندګئ پیشه ئې اختیارنه کړه. او س چونکه دا سړې د پنځه ویشتو کالوراهسې امامت کوی او په علمی لحاظ سره د فقه. نظم. حدیث او تفسیرنه واقف دې. او س مسائل دادی چه

(۱) دا سړې یادده نورورونړه چه هغه بې تعلیمه دی د یو قوم لکه مشوانی.

(بقیه حاشیه) خطب الیکم من ترضون دینه وخلقه فزوجوه ان لا تفعلوه فتنة فی الارض وفساد عریض، اقول لیس فی هذا الحدیث ان الکفاءة غیر معتبرة کیف وهی مما جبل علیه طوائف الناس وکادیکون القدح فیها اشد من القتل والناس علی مراتبهم والشرائع لا تهمل مثل ذلک، ولذلک قال عمر رضی الله تعالیٰ عنه: لا منعن النساء الا من اکفائهن الخ.

(حجة الله البالغة ۲: ۷۶۹ من ابواب تدبیر المنزل)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: المرأة اذا زوجت نفسها من غیر کفء صح النکاح فی ظاهر الروایة عن ابی حنیفة...... ولکن للاولیاء حق الاعتراض وروی الحسن عن ابی حنیفة ان النکاح لا ینعقد وبه اخذ کثیر من مشائخنا والمختار فی زماننا للفتویٰ روایة الحسن.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)

مغل، ګوجر، یادبل یومعزز قوم سره بغیردرضادولی یاپه رضادولی رشته اوکړی، نودادده دپاره کفوکیدې شی یانه؟ که چرته بغیردرضادولی نه نکاح اوکړی نوولی ته به دفسخې نکاح حق حاصل وی که نه؟

(۲) که چرته داقوم دبافندګئ په ځائ خپل ځان ته دبل قوم نوم اولیکی نود شریعت په رڼاکښې جائزدې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرفیق، مولوی سراج الدین براسته غازئ هری پور ۱۹۷۵ء ۴/۲۱

**جواب:** واضحه دې وی چه بافندګی د (جولاپیشه) دکسب نوم دې دنسب نوم نه دې لهذادې کسب دپریخودلوپه صورت کښې په داسې قوم باندې به د بافندګانو احکامات جاری کیږی نه. لیکن دعار د بقاء په صورت کښې د کفاءت حکم به هم باقی وی، لقولهم ان الصنعة وان امکن ترکها یبقی عارها (ردالمحتار ۲: ۴۴۳) ﴿۱﴾ لیکن عالم به ددې حکم نه مستثنی وی (کمافي ردالمحتار ۲: ۴۴۴) ﴿۲﴾ مختصره داچه هرکله دآمدن دپاره کسب بدلول جائز دی نو کاغذونو کښې زمیندار وغیره لیکل به هم جائزوی، دابه په نسب بدلولو باندې نشی قیاس کولې، اوتاسو بغیردرضادولی نه نکاح کولې شئ لیکن نور رونړانه شی کولې. وهوالموفق

## د پلار په غیر کفوکښې د نابالغې لورد ورکولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپله نابالغه لور دزید په نکاح کښې ورکړه، روستو د هم قوم نه کیدلو په وجه کله چه لور بالغه شوه هلته دتلونه انکاراوکړو، چه زه هیڅکله ددغسې غیرکفوسړی سره اوسیدل نه غواړم. یوکال تیرشواوس زیداودده ملګری ده ته وائی چه

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۵۰ باب الکفاءة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: العالم یکون کفؤا للعلویة لان شرف الحسب اقویٰ من شرف النسب وعن هذا قیل ان عائشة افضل من فاطمة لان لعائشة شرف العلم کذا فی المحیط. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۵۰ باب الکفاءة)



څوک تاسره دخپلولئ خواهشمندنه ووتاپه خپله مونږته جینئ راکړې ده، اوس په دې غیرکفوکښې د واقع شوې نکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدسیاد کوهاله براسته مری...... ۱۹۷۰ء ۲۹/۱۴۱

**الجواب:** دا نکاح صحیح اولازم ده.

**قال فی الهدایة: ومن زوج ابنته وهی صغیرة عبداً او زوج ابنه وهو صغیرامة فهو جائز قال وهذا عند ابی حنیفة (۳۰۲) ﴿۱﴾ وبمعناه فی الهندیة ۱: ۳۱۳ وفیها ایضا والصحیح قول ابی حنیفة رحمة الله علیه هکذا فی المضمرات ﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په هاشمی او غیر هاشمی کښې د کفائت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دهاشمی اوغیر هاشمی په مینځ کښې کفاءت موجود وی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدارشاه بابوخیل زیده صوابی

**الجواب:** ددوی په مینځ کښې کفاءت نشته لیکن زمونږ په علاقه کښې چونکه

**﴿۱﴾ (هدایه ۱: ۳۰۲ قبیل باب المهر)**

**﴿۲﴾ وقال العلامة النظام: ولو زوج ولده الصغیر من غیر کفءٔ بان زوج ابنه امة او ابنته عبداً او زوج بغبن فاحش بان زوج البنت ونقص من مهرها او زوج ابنه وزاد علی مهر امرأته جاز وهذا عند ابی حنیفة...... والصحیح قول ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ کذا فی المضمرات واجمعوا علی انه لا یجوز ذلک من غیر الاب والجد ولا من القاضی.**

**(فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۲۹۴ قبیل الباب السادس فی الوکالة بالنکاح وغیرها)**

......

رشته داران پلاروغیره عجمي پښتنوسره په نکاح کښې عارنه ګڼړی لهذاکه چرته نکاح اوشی نوجائزه اونافذه به وی﴿۱﴾وهوالموفق

## د سیدې ښځې د غیر سید سړی سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه ایاد سیدقوم ښځه دغیر سیدقوم سړی سره نکاح کولې شی. که نه کیږی نوددې دلیل څه دې په شریعت کښې کفو کیدل فرض دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشیدمانکیال......۱۹۷۷ء۱۱۹۱۳۰

**الجواب:** سیده ښځې نکاح دغیرسید سړی سره ناجائزاو کالعدم ده کله چه دولی داجازت نه بغیرشوې وی.

**کمافی شرح التنویر: ویفتی فی غیر الکفو بعدم جوازه اصلا وهو المختار للفتویٰ لفساد الزمان وفی ردالمحتار ۱:۴۰۹ قوله بعدم جوازه اصلا هذه روایة الحسن عن ابی حنیفة وهذا اذا کان لها ولی لم یرض به قبل العقد فلا یفید الرضا بعده بحر﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په قریشی او په سید خاندانونو کښې د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې عالم دین چه د

---

**﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: فقریش بعضهم اکفاء بعض وبقیة العرب بعضهم اکفاء بعض...... وهذافی العرب واما فی العجم فتعتبر حریة واسلاما، قال ابن عابدین: واما فی العجم المراد بهم من لم ینتسب الی احدی قبائل العرب ویسمون الموالی والعتقاء کما مر وعامة اهل الامصار والقریٰ فی زماننا منهم سواء تکلموا بالعربیة او غیرها الا من کان له منهم نسب معروف کالمنتسبین الی احداالخلفاء الاربعة او الی الانصار ونحوهم.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۴۵،۳۴۶ باب الکفاءة)**

**﴿۲﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۲۲ باب الولی)**



نسب په لحاظ سره قریشی دې. ایا هغه د سید خاندان د جینئ سره نکاح کولې شی؟ کله چه د جینئ پلار او نیکه په رشته په ورکولو باندې راضی وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمدعلی قریشی...۱۹۷۵ء۱۰۱۱۲۶

**الجواب:** د ازاد قریشی د سیدې(هاشمیې) سره نکاح صحیح ده. خصوصاً چه کله اولیاء معترض نه وی.

**کمافی الدرالمختار فقریش بعضهم اکفاء بعض، وفی ردالمحتار ۲:۴۳۸ اشار به الی انه لا تفاضل فیما بینهم من الهاشمی والنوفلی والتمیمی والعدوی وغیرهم (الی ان قال) فلو تزوجت هاشمیة قرشیا غیر هاشمی لم یرد عقدها الخ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## غیرقریشی عالم دین د قریشیه کفو دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه غیرقریشی اوقریشیه کفو دې یانه؟ حالانکه غیرقریشی عالم دین هم دې که چرته داولیاء درضانه بغیرپه پخپلو کښې نکاح اوکړی، نواولیاء دې لره فسخ کولې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیخ صدیق کهرورپکاملتان......۱۴۰۱۱۵۱۲۸ه.

**الجواب:** غیرقریشی عالم دین دقریشیه کفودې، دې نکاح لره اولیاء فسخ کولې نشی.

**لمافی ردالمحتار ۲:۴۴۳ لکن فی جامع قاضی خان قالوا ان الحسیب یکون کفوا للنسیب فالعالم العجمی یکون کفؤا للجاهل العربی والعلویة لان شرف العلم فوق شرف النسب﴿۲﴾. وهوالموفق**

## د سید زادې د غیرسید سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه د سیدزادې نکاح د

---

**﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۴۵ باب الکفاءة)**

**﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۳۵۰ باب الکفاءة)**

غیرقوم سره شرعاً جائزنه ده؟ که چرته نه وی نو په کوم بنیاد باندې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیع...... ۱۴۱۱۵۱۹۷۷

**الجواب**: اګرچه داعزازاواکرام دارومدارپه تقوی باندې دې. نه چه په نسبت عالیه باندې. لقوله تعالی: ان اکرمکم عندالله اتقاکم (الایه) لیکن په بعضې اوقاتوکښې دعدم رعایت نه کیدلوپه وخت کښې مصالح دنکاح فوت شی. لهذا په شریعت مقدسه کښې ددې مصالح دنیاوی په وجه باندې دکفاءت رعایت کړې شوې دې﴿۱﴾اوباوجودددې ددین درعایت نه منعه کړې شوې نه ده.

قال رسول الله ﷺ: ولا یزوجن الا من الاکفاء (بدائع ۲:۳۱۷) واما امر النبی ﷺ بنی بیاضة بتزویج ابی طیبة ......

---

﴿۱﴾وفی المنهاج: واما اعتبار الکفاءة فمشروع لقوله تعالیٰ: والله لا یحب الفساد، ویغلب الفساد عند کون الزوج دنیئا عن الزوجة تسبه ویضر بها وتعاربه، وبقوله علیه الصلاة والسلام: لا تنکحوا النساء الا الاکفاء رواه البیهقی وفی سنده کلام لکنه حجة بالتضافر والشواهد کما فی فتح القدیر، وبقوله علیه الصلاة والسلام وانکحوا الاکفاء وانکحوا الیهم رواه ابن ماجة عن عائشة، وقال الحافظ بن حجر صححه الحاکم واخرجه ابونعیم من حدیث عمر ایضا وفی اسناده مقال، ویقوی احد الاسنادین بالآخر انتهیٰ وعزاه العلامة السیوطی فی الجامع الصغیر الی مستدرک الحاکم وسنن البیهقی وسنن ابن ماجه ثم صححه، ولقوله علیه الصلاة والسلام ثلاث لا توخر (الی قوله) والایم اذا وجدت له کفوا، اخرجه الترمذی والحاکم عن علی مرفوعا، حسنه السیوطی وصححه الحاکم والذهبی کما فی المستدرک ویؤیدنا ما رواه محمد فی کتاب الآثار عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه موقوفاً، واعلم ان مدار النجاة والکرامة عند الله علی التقویٰ، قال الله تبارک وتعالیٰ: ان اکرمکم عند الله اتقاکم، دون النسب والمال والصورة کما ورد به الاحادیث لکن الشرع اعتبر الکفاءة لبقاء النظام والتحرز عن الفساد لان فساد ذات البین لیفضی الی الاثم والعصیان. (منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۲۴۶ باب فی من ترضون دینه فزوجوه)



**وکذا امره قوما من الانصار بتزویج بلال فمحمول علی فضیلة الدین او مخصوص والمسئلة واضحة﴿۱﴾. وهو الموفق**

---

﴿۱﴾قال العلامة الکاسانی: قال عامة العلماء ان (الکفاءة) شرط وقال الکرخی لیست بشرط اصلاً وهو قول مالک وسفیان الثوری والحسن البصری واحتجوا بما روی ان اباطیبة خطب الی بنی بیاضة فابوا ان یزوجوه فقال رسول الله ﷺ انکحوا اباطیبة ان لا تفعلوا تکن فتنة فی الارض وفساد کبیر، وروی ان بلالاً رضی الله عنه خطب الی قوم من الانصار فابوا ان یزوجوه فقال له رسول الله ﷺ قل لهم ان رسول الله ﷺ یأمرکم ان تزوجونی، امرهم رسول الله ﷺ بالتزویج عند عدم الکفاءة، ولو کانت معتبرة لما امر، لان التزویج من غیر کفؤ غیر مأمور به وقال النبی ﷺ لیس لعربی علی عجمی فضل الا بالتقویٰ، وهذا نص ولان الکفاءة لو کانت معتبرة فی الشرع کان اولیٰ الابواب بالاعتبار بها باب الدماء لانه یحتاط فیه مالا یحتاط فی سائر الابواب ومع هذا لم یعتبر حتی یقتل الشریف بالوضیع فههنا اولیٰ...... ولنا ما روی عن رسول الله ﷺ انه قال لا یزوج النساء الا الاولیاء ولا یزوجن الا من الاکفاء ولا مهر اقل من عشر دراهم، ولان مصالح النکاح تختل عند عدم الکفائة لانها لا تحصل الا بالاستفراش والمرأة تستنکف عن استفراش غیر الکفؤ وتعیر بذلک...... ولا حجة لهم فی الحدیثین لان الامر بالتزویج یحتمل انه کان ندباً لهم الی الافضل وهو اختیار الدین وترک الکفاءة فیما سواه والاقتصار علیه، وهذا لا یمنع جواز الامتناع وعندنا الافضل اعتبار الدین والاقتصار علیه ویحتمل انه کان امر ایجاب امرهم بالتزویج منهما مع عدم الکفاءة تخصیصاً لهم بذلک کما خص اباطیبة بالتمکین من شرب دمه...... ولا شرکة فی موضع الخصوصیة حملنا الحدیثین علی ما قلنا توفیقا بین الدلائل. واما الحدیث الثالث فالمراد به احکام الآخرة اذ لا یمکن حمله علی احکام الدنیا لظهور فضل العربی علی العجمی فی کثیر من احکام الدنیا فیحمل علی احکام الآخرة الخ.

(بدائع الصنائع ۲: ۳۲۳ بیان کفاءة الزوج)

## د سید زادې په پخپله کړې شوې نکاح او د مور پلارکړې نکاح کومه صحیح ده؟

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه سیدزادې یوځائ په پخپله نکاح کړې ده. حالانکه ددې مورپلارپه بل ځائ کښې نکاح کړې ده. اوس کومه نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدعالم خان......

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت که چرته مخکښنې نکاح کښې ایجاب اوقبول کړې شوې هم وی بیاهم مخکښنې نکاح غیرشرعی ده. اودادهغه منکوحه نه ده اودویم سره اوسیدل دې لره حرام نه دی.

المجیب: عبدالحلیم عفی عنه

**الجواب صحیح:** دبالغې دغیرکفوسره نکاح کول نامنظوراوکالعدم دی. کله چه داولیاءدرضانه بغیرشوی وی﴿۱﴾وهوالموفق

......محمدفریدعفی عنه......

## د یو جینئ په خپله کړې شوې نکاح او د اولیاء د اعتراض حکم

**سوال:** دذکرشوې مسئلې جواب مطلوب دې. امیددې چه تاسوپه ړومبنی فرصت کښې دذکرشوې مسئلې متعلق جوازدنکاح یادعدم جوازفتوی راکولو سره په مونږمهربانی اوکړې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اسماعیل خان دربندهزاره...... ۱۹۶۹ء۱۵\۲۱

**الجواب:** که چرته ددې جینئ عصبه اولیاءیعنی دتره ځامن نه وی یاموجودوی لیکن ددې مادری رشتې په نکاح کولوباندې راضی وی نوددې مادری رشتې والوسره نکاح صحیح ده کنی دعصبه اولیاءدعدمې رضامندې په وخت نکاح صحیح نه ده. فی الدرالمختار: وله ای للولی اذا کان عصبة

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وللولی اذا کان عصبة الاعتراض فی غیر الکفؤ ویفتی فی غیر الکفؤ بعدم جوازه اصلاً وهو المختار للفتویٰ لفساد الزمان.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۲۲ باب الولی)



الاعتراض فی غیر الکفؤ ویفتی فی غیر الکفؤ بعدم جوازه اصلاً، وهو المختار للفتویٰ انتهیٰ مختصراً، وفی ردالمحتار ۲:۴۰۹ وهذا اذا کان لها ولی لم یرض به قبل العقد...... واما اذا لم یکن لها ولی فهو صحیح نافذ مطلقا اتفاقاً الخ. ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د اولیاءد اجازت نه بغیر د سیدې نکاح په غیرکفوکښې کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږپه علاقه کښې بعضې سیده جینکوپه خپلې مرضئ سره دغیرسیدهلکانوسره نکاح کړې ده. اوبعضې اغواکړې شوې دی ایادسیده جینکونکاح دغیرسیدهلکانوسره جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: پیرسرورشاه گیلانی تهانه پوره ایبټ آباد...... ۱۹۸۴ء۲۱\۷\۲۱

**الجواب:** دبالغې سیدې نکاح دغیرکفوسره کالعدم وی کله چه اولیاءمعترض وی: کمافی ردالمحتار۲:۴۰۹﴿۲﴾والهندیه ۱:۳۱۱﴿۳﴾ وهوالموفق

## په عباسی جینئ اواعوان قطب شاهی هلک کښې کفاءت نشته

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه یوشل کلنه جینئ ناواده

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۲۲ باب الولی)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ویفتی فی غیر الکفؤ بعدم جوازه اصلا) هذا روایة الحسن عن ابی حنیفة وهذا اذا کان لها ولی لم یرض به قبل العقد فلا یفید الرضا بعده بحر واما اذا لم یکن لها ولی فهو صحیح نافذ مطلقاً اتفاقا لان وجه عدم الصحة علی هذه الروایة دفع الضرر عن الاولیاء اما هی فقد رضیت باسقاط حقها الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۲۳ باب الولی)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ثم المرأة اذا زوجت نفسها من غیر کفؤ صح النکاح فی ظاهر الروایة عن ابی حنیفة..... ولکن للاولیاء حق الاعتراض. (فتاوٰی عالمگیریه ۱:۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)

کړې وه موردډې رشته زيدته دورکولووعده کړې وه اوجينۍ هم زيد غوښتلو چنانچه جينۍ اوزيدديوبل سره دواده کولووعده کړې وه.ليکن جينۍ يو څو رشته دارانوپه زوردې لره دخپل تره زوئ ته واده کړه درشتې پخيدونه تر واده پورې جينۍ مسلسل احتجاج کولو.ليکن يوهم نه اوريدلو.مورئې هم د رشته دارانودهمکيانونه مجبوره وه.چنانچه دواده په ورځ هم جينۍ ته دماما ځوئ تمانچه ښودلوسره اووئيل که چرته تاانکاراوکړويادې داسې خبره اوکړه چه هغه زمونږده عزت خلاف وی.نوته به اووژلې شې.پس نکاح اوشوه اورخصتی هم اوشوه ليکن تراوسه پورې جينۍ هلته ناخوښه ده.او د خپلې مرضې اوخوښې مطابق زيدسره تلل غواړی اوزيدته دپټوپيغاماتوپه ذريعه سره دتللوخواهشمندده.اوس زيددپاره کوم صورت اختيارول پکار دی اويادې وی چه جينۍ عباسيه ده اوزيداعوان قطب شاهی دې حالانکه دجينۍ رشته دارانودزيدپه قوميت باندې اعتراض کولوسره په زوره په دويم ځائ کښې نکاح اوکړه؟ بينوا توجروا

المستفتی: زيدمعرفت محمودهيلت سنټرکوهاله مری ۲۹۱۱۱۱ء۱۹۲۹

**جواب:** داولياء داعتراض اودناراضګئ د وجهې نه زيدسره ددې جينۍ نکاح نامنظوره ده.

**لان العباسية من العرب، وفی الهندية ۱:۳۰۹ والموالی وهم غير العرب لا يکونون اکفاء للعرب (وفيها ۳۱۱) وروی الحسن عن ابی حنيفة ان النکاح لا ينعقد وبه اخذ کثير من مشائخنا رحمهم الله تعالیٰ کذا فی المحيط والمختار للفتویٰ فی زماننا رواية الحسن وقال الشيخ الامام شمس الائمة السرخسی رواية الحسن اقرب الی الاحتياط کذا فی فتاویٰ قاضی خان انتهیٰ وما فی الهندية فالمراد بها مسئلة تزويج المرأة نفسها من غير کفو، فقط﴿۱﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگيريه: ۲۹۰،۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)



## د لوهار په لور او د مولوی خاندان په هلک کښې د کفاءت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دين دې مسئلې باره کښې چه ايا د لوهار د لور دمولوی خاندان دهلک سره نکاح کيدلې شی؟ ايادا دواړه ديوبل کفودی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالقهار...... ۵۱۱۱ء۱۹۷۲

**الجواب:** دملا دلور د لوهارسره نکاح کول او ورکول محل اعتراض دی.او بالعکس محل اعتراض نه دې.

**کما فی شرح التنوير: الکفاءة معتبرة من جانبه ای الرجل لان الشريفه تأبی ان تکون فراشا للدنئ ولذا لا تعتبر من جانبها لان الزوج مستفرش فلا تغيظه دناءة الفراش وهذا عند الکل فی الصحيح (هامش ردالمحتار ۲:۳۳۵) بحذف يسير﴿۱﴾. وهوالموفق**

## د ابائی قوم د يوکس د ابائی امام لور سره په نکاح کښې دکفاءت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه ديوقوم بنيادی ابائی خاندان راروان وی.اوددوی سره ددوی ابائی امام اواستاد خاندان هم پشت په پشت راروان وی حالانکه ددې استادانواوپيش امامانودقوم سلسله نسب سادات سره ملاؤيږی.ددې نه علاوه حق الاستاداقدم من حق الوالدين، نو اياداستاد دخاندان دجينۍ سره ددې ابائی قوم ديوهلک نکاح جائزده؟ بينوا توجروا

المستفتی: غلام ربانی هيډګارډنرکينټ ايبټ آباد.....

**الجواب:** چونکه په ظاهره صورت مسئوله کښې کفاءت موجود دې لهذا ددې

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۳۴ باب الکفاءة)

امام دلورسره په نکاح کولو کښې څه عدمې جوازنه معلومیږی﴿۱﴾ په شرط ددې چه دکفاءت نورقسمونه معدوم نه وی.وهوالموفق

## د شیخ مطلب او د میاں، ملا، سید، اوپه صاحب زاده کښې د کفومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه (۱)دشیخ نه څه مراد دې؟(۲) میاں،ملا،اوصاحب زاده په خپلو کښې دکفو کیدلو په اعتبارسره مساوی دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعیدالمستعان قاضی آبادګدون مردان......

**جواب:**(۱) دشیخ نه مراد صدیقی اوفاروقی خلق دی.(۲) دا ټول مساوی نه دی ددوی نه بعضې دنوروبعضې کفوکیدلې نشی.وهوالموفق

## د بالغې جینئ په عدالت کښې بیان کول روستو خلاف بیانی کول، اوس د بلې نکاح څه حکم دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوجینئ دبالغېدلوسره دکلی یوکس سره واده اوکړو.ذکرشوې جینئ دکلی پرېښودلوسره ددې سړی سره سکهرته لاړه.اوهلته په عدالت کښې دبیان ورکولوسره د مجسټریټ په مخکښې ددې کس سره دنکاح کولواقراراوحلفیه بیان ئې هم ورکړو.ددې نه پس دجینئ مورپلاردعوی اوکړه اوذکرشوې هلک ګرفتار شو.اوپولیس جینئ دمورپلارحواله کړه.ذکرشوې جینئ دمور پلار د وینا مطابق دهلک خلاف بیان ورکړو.هلک ګرفتارشو.ذکرشوې نکاح دضلع اټک جج دترمذی شریف اودڅه نوروحوالونه غلطه ثابت کړه چه دولی نه بغیرنکاح نشی کیدلې.خواه جینئ بالغه ده ولې نه وی.اوس دجینئ مور پلار دانکاح په بل ځائ کښې کول غواړی ایادادویمه نکاح به صحیح وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: خالدمحمود کامره......۱۴صفرالمظفر۱۴۰۱ھ

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وقالوا الحسیب کفٔ للنسیب حتی ان الفقیه یکون کفأ للعلویة ذکره قاضی خان والعتابی فی جوامع الفقه وفی الینا بیع والعالم کف للعربیة والعلویة الخ. (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۹۰ الباب الخامس فی الاکفاء)



**جواب:** که چرته داهلک کفونه وی نودانکاح کالعدم اونامنظوره ده.کمافی الهندیه ۱:۳۱۱وروی الحسن عن ابی حنیفه ان النکاح لاینعقدوبه اخذکثیرمن مشائخناکذافی المحیط والمختارفی زماننالللفتوی روایة الحسن﴿۱﴾اوکه چرته کفو وی نودعاقلې بالغې نکاح به نافذه اولازم وی نه دې لره پلارختمؤلې شی نه دا بالغه.کمافی الهندیه ۱:۳۰۵نفذنکاح حرة مکلفة ولی عندابی حنیفه وابی یوسف رحمهماالله تعالی فی ظاهرالروایةکذافی التبیین﴿۲﴾وهوالموفق

## مغوی د مغوئې د کفو کیدلوپه صورت کښې د اولیاءفسخ نامنظور ده

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زیدیوه بالغه جینئ اغوا کولوسره داولیاءداجازت نه بغیردجینئ سره طوعاوکرهانکاح اوکړه. ایا دانکاح په شریعت کښې صحیح کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ګل سردار...... ۱۹۷۳ء۱\۳\۲۷

**جواب:** که چرته دامغوی (اغواکړې شوې) ددې مغوئې کفووی نودانکاح صحیح ده،داولیاءدناراضګئ دوجه نه ددې فسخ کول(شرعا) نامنظور دی. وفی الهندیه ۱: ۳۰۵ نفذنکاح حرة مکلفة بلاولی عندابی حنیفه وابی یوسف رحمهماالله تعالی فی ظاهرالروایة،کذافی التبیین﴿۳﴾وهوالموفق

## خپل ځان اعلی قوم ظاهرکړی روستو پته لګیدلوباندې به نکاح کالعدم وی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه مسمٰی...... دواده په وخت دهوکه راکړه څه ئې دایبټ ابادنه پنډې ته راوستم اوخپل ځان ئې

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

پټهان ظاهر کړو. حالانکه هغه دموچی قوم سره تعلق لری اته لس ورځې ئې هم دغه رنګ څه پټه اوساتلم. روستوئې ماسره نکاح اوتړله. دنکاح نه مخکښې ئې داهم ظاهرنه کړه، چه واده کړې شوې یم. حالانکه دده دوه بچې هم دی. څه دده سره دوه دوه نیم کاله آباده ووم، او روستوڅه دخپلې مور کور ته راغلم. ایا دده دې دهوکې په صورت کښې اودولی نه کیدلو په صورت کښې یعنی بغیرداجازت دولی نه دانکاح صحیح کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: بی بی مین بازارایبټ آباد.....۱۲۸شعبان۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د مفتی به قول په بناء باندې د غیرکفو سره نکاح نامنظور او کالعدم وی.

لما فی الشامیة﴿۱﴾ والهندیة ۱:۲۹۳ وعبارتها ثم المرأة اذا زوجت نفسها من غیر کفو صح النکاح فی ظاهر الروایة عن ابی حنیفة ...... وروی الحسن عن ابی حنیفة ان النکاح لا ینعقد وبه اخذ کثیر من مشائخنا کذا فی المحیط والمختار فی زماننا للفتویٰ روایة الحسن الخ﴿۲﴾. وهوالموفق

## په شیعه اوسنی کښې د کفاءت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې چه شیعه اوسنی مذهب والادیوبل کفو دی. اوددوی پخپلو کښې نکاح کیدلې شی؟بینوا توجروا

المستفتی: یونس نشرروډ کراچی ۳......۵۱۴۱ء۱۹۷۳

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ویفتی فی غیر الکفء بعدم جوازه اصلاً هذه روایة الحسن عن ابی حنیفة وهذا اذا کان لها ولی لم یرض به قبل العقد فلا یفید الرضا بعده...... وهو المختار للفتویٰ لفساد الزمان، وقال شمس الائمة وهذا اقرب الی الاحتیاط.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۲۲ باب الولی)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)



**جواب:** واضحه دې وی چه پاکستانی شیعه په اکثری طورسره دکفرعقیده لری، مثلاداعقیده لری چه حضرت علی رضی الله عنه پیغمبروویااله وو. نیز دصدیق اکبر رضی الله عنه دصحبت نه انکارکوی. اوصدیقه قذف کوی. لهذا ددوی سره به نکاح صحیح نه وی﴿۱﴾ اوهغه شیعه چه صرف د تفضیل قائل وی﴿۲﴾ نودده سره په نکاح کښې د عدمې کفاءت حکم جاری کړې شوې دی﴿۳﴾ وهوالموفق

## د تفضیلی شیعه سره د سنی العقیده جینئ د کفاءت اود نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زاهد شیعه دې لیکن

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: نعم لا شک فی تکفیر من قذف السیدة عائشة رضی الله عنها او انکر صحبة الصدیق او اعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او نحو ذلک من الکفر الصریح المخالف للقرآن. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۲۱ مطلب فی حکم سب الشیخین)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: واما المعتزلة فمقتضی الوجه حل مناکحتهم لان الحق عدم تکفیر اهل القبلة وان وقع الزما فی المباحث بخلاف من خالف القواطع المعلومة بالضرورة من الدین...... فانهم ما قالوا ذلک الا لشبهة دلیل شرعی علی زعمهم وان اخطؤا فیه ولزمهم المحذور علی انهم لیسوا بادنی حالا من اهل الکتاب بل هم مقرون باشرف الکتب...... وبهذا ظهر ان الرافضی ان کان ممن یعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی...... فهو کافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدین بالضرورة بخلاف ما اذا کان یفضل علیا او یسب الصحابة فانه مبتدع لا کافر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۱۴ مطلب مهم فی وطئ السراری اللاتی یوخذن)

﴿۳﴾ قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلی: قال: (وفی الدین والتقویٰ) حتی ان بنت الرجل الصالح لو تزوجت فاسقا کان للاولیاء الرد لانه من افجر الاشیاء وانها تعیر بذلک وقوله علیه الصلاة والسلام: علیک بذات الدین تربت یداک، اشارة الی انه ابلغ فی المقصود. (الاختیار لتعلیل المختار ۲:۱۳۲ فصل الکفاءة المعتبرة فی النکاح)

دده عقیده داده چه په قرآن کښې دیرش سپارې دی اوبغیرد څه تحریف نه دا صحیح منی، اود پیغمبر علیه السلام دختم النبوت قائل دې، په امهات المؤمنین کښې فرق نه کوی صحابه کرام ټول دده خوښ دی. البته دحضرت علی، حسنین، اوفاطمة الزهرا رضوان الله تعالی اجمعین سره بې حده محبت لری ایاددې زاهد سره دکومې سنې دیوبندې یابریلوې جینئ واده جائزدې یانه یامکروه دې یامباح؟ بینوا توجروا

المستفتی: امام محمد دینیات ټیچرپولټیکل چهاونې ټانک ۱۹۹۰ء۱۷۱۳

**جواب:** که چرته دازاهد تفضیلی شیعه وی﴿۱﴾ نودسنیه جینئ نکاح دده سره نامنظور او کالعدم ده، هرکله چه داولیاء داذن نه بغیرشوې وی لعدم الکفائة اوباذن اولیاء صحیح دی﴿۲﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان الرافضی ان کان ممن یعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی...... فهو کافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدین بالضرورة بخلاف ما اذا کان یفضل علیا او یسب الصحابة فانه مبتدع لا کافر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۱۴ مطلب مهم فی وطئ السراری اللاتی یوخذن)

﴿۲﴾ قال عبد الله الموصلی الحنفی: (قال فی الدین والتقویٰ) حتی ان بنت الرجل الصالح لو تزوجت فاسقا کان للاولیاء الرد لانه من افجر الاشیاء وانها تعیر بذلک وقوله علیه الصلاة والسلام: علیک بذات الدین تربت یداک، اشارة الی انه ابلغ فی المقصود.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۳۲ فصل الکفاءة المعتبرة فی النکاح)



# باب الرضاعة

## رضاعت کښې مشاهده ضروری ده تسامع کافی نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه مسمی باز په بچپن کښې دخپلې ترور سره دنیاسیفه رولې وه. اوس بازدخپل رضاعی رورجینئ یعنی د نیانمسئ عالم جان سره نکاح کړې ده د رضاعت خبر صرف دبازترورچه هغې دبازسره سینه رولې وه ورکړودترور بیان دادې چه ځما عمرخومره زیاتېدو مشرانو رونړو او خویندو نه مې هم داخبره اوریده چه بازاو تا په بچپن کښې د رضاعت په موده کښې یوځائ سینه رولې وه. دبازدماما مولوی محمد حسین هم دابیان دې چه بازدخپلې نیاسینه دشریعت په موده کښې دننه څکلې ده، ددې نه علاوه یو څو سړی دشبهاتو بیان ورکوی، چه معلومه نه ده چه بازدنیاسینه دشریعت په موده کښې دننه څکلې ده او که روستو. مګر رودلې ضرورده. په دې صورت کښې دبازاودعالم جان هغه چه ددې رضاعی وریرې دی په خپلو کښې نکاح کولې شی یانه؟ اوددې شبهاتو څه حکم دې؟

المستفتی: مولوی محمد حسین ګجرانواله...... ۱۹۷۵ء۱۳۱۷

**جواب:** دعدمې اعتراف په صورت کښې د دؤو سړو یایو سړې او دوو ښځو د شهادت نه بغیرد حرمت نکاح حکم نشی ورکولې.

کما فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار (۲: ۵۶۸) حجته حجة المال وهی شهادة عدلین او عدْل وعدلتین﴿۱﴾، قلت ولا بد من المشاهدة ولا یکفی ههنا التسامع﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۸ قبیل کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة شمس الحق الافغانی: یلزم ان یکون......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## نکاح نه پس د یوې ښځې د رضاعت په دعوٰی کښې تفصیل

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دزید اودزینب عقدنکاح شرعی اوتړاکلې شو، ټول کلی والاخبرشو اوپه خوشحالوکښې ئې ځانونه شریک کړل، دوه کاله تیریدلونه پس یوښځې اووئیل، چه مازید اوزینب ته سینه ورکړې ده اوس ددې ښځې په ویناواعتبارسره نکاح فسخه کیدلې شی یا برقرارپاتې کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن.....

**جواب**: که چرته ښځه خاونددواړه یاصرف خاونددې ښځې تصدیق اوکړی، نونکاح به فاسده وی، اوکه چرته دواړه ددې ښځې تکذیب اوکړی، اوداښځه عادله وی، نواحتیاط په مفارقت کښې دې، اونکاح فاسده نه ده، اوکه چرته داښځه عادله نه وه، نوبیاڅه حرج نشته.

**قال فی ردالمحتار (۲:۵٦۸) فی الهندیة: تزوج امرأة فقالت امرأة ارضعتکما فهو علی اربعة اوجه ان صدقاها فسدالنکاح وان کذباها وهی عدلة فالتنزه المفارقة وان صدقها الرجل وکذبتها فسد النکاح وان بالعکس لا یفسد، انتهیٰ بحذف یسیر ﴿۱﴾. وهوالموفق**

**(بقیه حاشیه) الشهود قدعاینوا بالذات المشهود به وان یشهدوا بذلک الوجه (المجله) والامور التی یتعذر علی کثیر من الناس مشاهدتها ویبقی احکامها ممر الدهور یجوز الشهادة بها بالتسامع وهی النسب والنکاح والدخول بالزوجة وولایة القاضی والموت واصل الوقف بشرط ان تشهر لدی الشاهد شهرة حقیقیة کالتواتر او حکمیة تکون بشهادة عدلین او عدل وعدلتین (الاصول القضائیه).**

**(معین القضاة والمفتیین ص۲۸ الفصل الثانی فی کیفیة اداء الشهادة)**

**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۴۸ تنبیه قبیل کتاب الطلاق)**



## د نصاب شهادت نه کیدلو په صورت کښې حرمت د نکاح نه ثابتیږی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دیوښځې سره نکاح کول اوغوښتل لیکن ددې ښځې خور(علاتی) دعوٰی اوکړه، چه ماددې سړی ته دپیدائش نه پس دمورولادت بیمارې دوجه نه په موسم سرماکښې ډیره سینه ورکړې وه، اودده دمورد پاره مې روټې تیارولې. ددې مدعیه خاوند هم داوائی. لیکن نورګواهان ددې مدعیه په بیان باندې نه دی، حالانکه ناکحه ددې موراومشرانې خویندې اوپلار. دذکرشوی بیان خلاف اود مدعیه دمخالفت اود عناد دعویداردی. دکلی دمشرانو نه دحالات پوښتنه اوشوه، نوټولو په متفقه طورسره بیان ورکړو، چه ددې واقعې دراتلونه مخکښې مونږته ددې مرضعې څه خبرنه وو. ذکرشوی بیانات دلاندې خلقوپه مخامخ په اخستلی شوې دی. (۱) قاضی فیض الرحمٰن (۲) قاضی فضل هادی صاحب (۳) قاضی محمد قاسم ډوګ دره (۴) مولاناحبیب محمد فاضل حقانیه ومولوی فاضل (۵) قاضی زین العابدین.

آیاددې سړی نکاح ددې ښځې سره دذکرشوې بیاناتو په لحاظ سره صحیح ده. ددې علاتی خور(مدعیه) اوددې دخاوند دعوی قابل قبول ده؟ په صورت دمتهم کیدلو کښې څه جواب دې. حالانکه دنکاح والاپه زړونوکښې څه خوف اوخطره په وجه دبهانها نه ده راغلې. چه ددې په خیال کښې هغه عنادیه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی فیض الرحمٰن سیاه بدرکنی ریاست دیر ۱۹۷۰ء۲۱/۶/۳

**جواب**: چونکه په صورت مسئوله کښې دشهادت نصاب موجودنه دې. لهذا حرمت دنکاح به ثابت کیږی نه. بیشکه احتیاط په اجتناب کښې دې.

**فی الدرالمختار: الرضاع حجته حجة المال وهي شهادة عدلین او عدل وعدلتین ﴿۱﴾(وبمعناه فی جمیع معتبرات**

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۴۸ قبیل کتاب الطلاق)**

المذهب)﴿۱﴾ والدلیل علی التنزه ما رواه البخاری فقال رسول الله ﷺ: کیف وقد قیل ففارقها عقبة فنکحت زوجاً غیره﴿۲﴾. وهو الموفق

## پخپله د مرضعې د شهادت حکم او د درمختار د عبارت تفصیل

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې ترور سینه اورودله. په دې باندې ګواه پخپله مرضعه اوددی خاوند دې. او یو سړې او یوښځه ده. که چرته دمرضعې اوددې دخاوند ګواهې شرعًا منظور وی، نو نصاب دشهادت پوره دې. او که چرته منظورنه وی. نوپه نزد داحنافو په شهادت کښې کمې دې. چونکه درمختارباب الرضاع قبیل کتاب الطلاق ۲:۴۴۸ باندې لیکلی دی. اوشهادتةعدل وعدلتین، اوعلامه شامی دعدلتین په تشریح کښې لیکلی دی. ولو احدهما المرضعة لایضر کون شهادتهاعلی فعل نفسها کشهادةالقاسم الوازن والکیال علی رب الدین، بیاپه درمختارکښې لیکلی ددې نه پس. وهل یتوقف ثبوته علی دعوی المراة الظاهر لالتضمنها علی حرمةالفرج وهی من حقوقه تعالی: نوجناب. ددې نه معلومه شوه چه حرمت د رضاعت دعوی باندې موقوف نه دې. ددې وجه نه لیکې. ولو احدهما المرضعة،

﴿۱﴾وفی الهندیه: ولا یقبل فی الرضاع الاشهادة رجلین اورجل وامرأتین عدول کذا فی المحیط...... وان کان المخبر واحد او وقع فی قلبه انه صادق فالاولی ان یتنزه ویأخذ بالثقة وجد الاخبار قبل العقد او بعده ولا یجب علیه ذلک.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۴۷ کتاب الرضاع)

﴿۲﴾وعن عقبة بن الحارث انه تزوج بنت ابی اهاب فجاء ت امرأة فقالت لقد ارضعتکما، فسال النبی ﷺ فقال: کیف وقد قیل؟ ففارقها عقبة فنکحت زوجاً غیره، اخرجه البخاری.

(لوغ المرام ۳۸۵ قبیل باب النفقات)



څه دخپلې کم علمې نه داګنړم چه دمرضعې اوددې دخاوند ګواهی شرعًا قبوله ده. مګرڅه ستاسوپه فتوی باندې زیات اعتمادکوم. نوایاددې مرضعې اودخاوند ګواهی منظوره ده یانه؟ والتوفیق علی الله

المستفتی: محمدهلال خطیب تربیلاډیم...... ۱۸۱۹۱،۱۹۷۹

**الجواب:** تاچه څه ګنړلی هغه صحیح دی. دمرضعې شهادت مقبول دې. اوصرف په دې باندې اکتفاءکول مردوددی. اوکله چه دمرضعې شهادت مقبول دې، حالانکه داپخپل کارباندې شهادت دې، نودخاوند شهادت به په طریقه اولی منظوروی.

**نوټ:** په شهادت کښې دعدالت رعایت ضروری دې﴿۱﴾وهو الموفق

## په شهادت عدلین سره چه کله مبرهن نه وی رضاعت به ثابت نه وی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه د بکر دلور د اسماء د زید سره دنکاح کولوپروګرام شروع وو. داسماء ماماداخبره مشهوره کړه. چه اسماء دزیددمورډهندې سینه رولې ده. دزیدمورهندې مقامی قاضی ته بیان ورکړو. چه ماسینه نه ده ورکړې. اوداماماذاتی دشمنې دوجه نه دروغ وائی. او د اسماء ماما عدالت ته هم نه پیش کیږی. اوس دنکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محی الدین دهړیال مانسهره......

**الجواب:** کله چه ماماعادل دوه سړی یایوسړې اودوه ښځوپه شهادت سره دا دعوی مبرهن نه کړی ترهغه وخته پورې حرمت درضاعت نه ثابت کیږی. کمافی الدرالمختاروغیره حجته حجتة المال وهی شهادته عدلین اوعدل

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولا یقبل فی الرضاع الاشهادة رجلین او رجل وامرأتین عدول کذافی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۴۷ کتاب الرضاع)

وعدلتين﴿۱﴾وهو الموفق

## د شک او د ښځې په سينه کښې د پيو نه موجود کيدلو په صورت کښې حرمت نه ثابت کيږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين دې مسئلې باره کښې چه عصمت خان په بچپن کښې خپلې نيا په سينه باندې اخستی وو. اوس هغه دخپلې ترورلور سره واده کول غواړی. ليکن د پيو مسئله ددوی په مينځ کښې حائله ده. نيادې لره د ژړا نه دخاموش کولو دپاره په سينه باندې اخستی وو. او هغه ئې نه وو اخيستې. اوس معلومه نه ده. چه سينه ئې اخستی ده يا نه؟ او نيا يقين سره وائی چه پئ نه دی څکلی. هم دغه شان دهلک مورهم وائی. ليکن بيا هم خلق شک کوی. چه شايد پئ څکلی وی. او هلک لره نيا صرف يو مرتبه په سينه باندې اخيستې دې. شرعی حکم څه دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالحليم بشام سوات...... ۷/۵/۱۹۹۱ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې حرمت رضاعت ثابت کيږی نه.

(۱) دشک په صورت کښې (۲) کله چه شپږ دهنده اوائی چه څما په سينه کښې پائې نه وو. نو حرمت رضاعت به ثابت کيږی نه (شامی)﴿۲﴾ هنديه﴿۳﴾......

---

﴿۱﴾ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۸ قبيل كتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: قوله فلو التقم الخ تفريع على التقييد بقوله ان علم وفى القنية امرأة كانت تعط ثديها صبية واشتهر ذلك بينهم ثم تقول لم يكن فى ثدى لبن حين القمتها ثديى ولم يعلم ذلك الامن جهتها جاز لابنها ان يتزوج بهذه الصبية وفى الفتح لو ادخلت الحلمة فى فى الصبى وشكت فى الارتضاع لا تثبت الحرمة بالشك.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۴۳۹ باب الرضاع)

﴿۳﴾ وفى الهندية: المرأة اذا جعلت ثديها فى فم الصبى ولا تعرف امص اللبن ام لا ففى القضاء لا تثبت الحرمة بالشك وفى الاحتياط تثبت ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



الاشباه والنظائر﴿۱﴾وهو الموفق

## د مرضعې غيرعادلې د خبر کولو او بيا د انکار کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د زيد او هندې دعقد نکاح لس کاله شوې دی. اوس معلومه شوه چه يو ښځې دوی ته پئ ورکړی دی. ليکن د مرضعې نه علاوه بل ګواه نشته. صرف يو ښځه بله هم ورسره ده. ليکن زيد د صدق د مخبر نه انکار اوکړو. او قسم ئې اوکړو چه هنده څما محرمه نه ده. او هندې هم د دعوې کولو نه انکار اوکړو. اوس غرض دادې. چه آيا سابقه نکاح ددې ذکر شوې شبهې دوجه نه فاسده يا نه. که چرته نکاح نه وی شوې نو آئنده دپاره نکاح زفاف مجازده يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولانا جعفر شاه بلند کوټ مانسهره ۱۷/۱۰/۱۹۷۷ء

**الجواب:** که چرته دا مرضعه عادله نه وی. کماهو الظاهر فی شر القرون، نو په صورت مسئوله کښې نه مفارقت واجب دې او نه په دې کښې احتياط شته.

**كما يفهم من الهندية ۱: ۳۷۵ الرضاع يظهر باحد امرين احدهما الاقرار والثانى البينة كذا فى البدائع، ولا يقبل فى الرضاع الا شهادة رجلين اور رجل وامرأتين عدول، كذا فى المحيط، وان كان المخبر واحد او وقع فى قلبه انه صادق فالاولىٰ ان يتنزه ويأخذ بالثقة سواء وجد الاخبار قبله او بعده ولا يجب عليه ذلك﴿۲﴾. وهو الموفق**

---

(بقيه حاشيه) دخل فى فم الصبى من الثدى مائع لونه اصفر تثبت حرمة الرضاع لانه لبن تغير لونه. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۳۴۴ كتاب الرضاع)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: لو ادخلت المرأة حلمة ثديها فى فم الرضيع ولا يدرى أدخل اللبن فى حلقه ام لا لا يحرم النكاح لان فى المانع شكاً كذا فى الولوالجية.

(الاشباه والنظائر ص ۶۶ القاعدة الثالثة اليقين لا يزول بالشك)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۳۴۷ كتاب الرضاع)

## صرف په سینه باندې خوله اېښودلو سره (کله چه ځکلوکښې شک) وی حرمت رضاع نه راځی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې که چرته یو ښځه کوم ماشوم له سینه په خوله کښې ورکړی. اوفورأئې جداکړی. اوپئ په خوله کښې د ننه لا رنشی. نوایا په دې سره رضاعت ثابت کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی اسماعیل وزیرستانی.....۱۴۰۱۱۵۱۴ء

**الجواب:** کله چه په پیو ځکلو کښې شک وی. نوصرف سینه باندې خولې اېښودلو سره حرمت نه ثابت کیږی. لمافی الاشباه ۵۹ لوادخلت الحلمة ثدیها ولا یدری ادخل اللبن فی حلقه ام لالایحرم النکاح (۱) وهوالموفق

## رضیع دمرضعې په ټول اولاد باندې حرام کیدل اود هدایه د عبارت مطلب

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مسماةخائسته جان دیو جینئ زرین تاجې ته دخپل وروکی زوئ ملنګ سره پئ ورکړې دی. دخائسته جان یوبل زوئ دې زلمې چه دملنګ نه په عمر کښې زیات دې. ایادزرین تاجې نکاح دزلمې سره جائزده یانه؟ نیزدصاحب هدایه داقول چه: وکل صبیین اجتمعها علی ثدی امراة واحدة لم یجزلاحدهماان یتزوج بالاخری الخ: ددې نه اجتماعی زمانی مراده یامکانی. یعنی ددې جزئې په وجه سره دحلت حکم کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: هیډماسټرباندہ سیدان براسته اوګئ مانسهره ۱۵۱۹۱۰،۱۹۷۵

**جواب:** داجینئ زرین تاجه ددې مرضعې په ټول اولادباندې حرامه ده.

یدل علیه مافی الخلاصة ۱: ۲۴۳ ولو ارضعت امراة صبیا یحرم علیه من یقدم من اولادها ومن

(۱) (الاشباه والنظائر ۷۱ القاعدة الیقین لا یزول بالشک)



تأخر (۱)، وفی الدرالمختار: لا حل بین الرضیعة وولد مرضعتها (هامش ردالمحتار ۲: ۵۶۱) (۲)، قلت: وکذا نقول بلبن الفحل فیحرم علیها الولد الثانی لکونه ولد ابیها من الرضاع (۳). فافهم. وهوالموفق

## د سینې نه پئ ویستلو سره ځکول هم موجب حرمت دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیو ښځې د سینې نه پئ ویستلې شو. اوبوتل کښې ئې واچول اویوهلک ته ئې ورکړه. ایارضاعت به ثابت وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: تاج ولی جلبئی صوابی.....یکم ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دکومې ښځې دسینې نه چه پئ ویستل شی اوکوم هلک ته ورکړې شی نوحرمت رضاعت به ثابت وی. یدل علیه مافی شرح التنویر: والحق بالمص الوجور والسعوط (هامش ردالمحتار ۲: ۵۵۴ (۴)) وهوالموفق

## د مرضعې د تصدیق په صورت کښې نکاح جائزنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې وائی چه څما مور وائی چه مادفلانې جینئ پلار ته پئ ورکړې وو. اوڅه داجینئ خپل رور

(۱) (خلاصة الفتاوی ۲: ۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

(۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۳ باب الرضاع)

(۳) قال العلامة المرغینانی: ولبن الفحل یتعلق به التحریم وهو ان ترضع المراة صبیة فتحرم هذه الصبیة علی زوجها وعلی ابائه وابنائه ویصیر الزوج الذی نزل لها منه اللبن ابا للمرضعة. (هدایه ۲: ۳۷۰ کتاب الرضاع)

(۴) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۳۷ باب الرضاع)

..........

دپاره په نکاح باندې اخستل غواړم په رضاعت کښې دمورنه علاوه بل کوم چشم دیداه ګواه نشته. اوځمایقین دې چه ځمامور دروغ نه وائی ایادشریعت په رڼړا کښې دانکاح جائزده؟ نیزځما اوددې جینۍ دخاندان په خپلو کښې جهګړه ده. که چرته داجینۍ زمونږکورته راغله نوټولې جهګړې به ختمې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ولی محمدبابرفورټ سنډیمن بلوچستان ۲۲\۱ستمبر ۱۹۷۹ء

**جواب**: کله چه ته ددې مرضعې (مور) تصدیق کوې نوحلت به دکومې نه راځی.

قلت: ونظیره التصدیق بعدعقدنکاح کمافی ردالمحتار ۲: ۵۶۸ء فلیراجع﴿۱﴾

وهوالموفق

## خپل زوئ کښلوسره په غلطئ سره بل ماشوم
## ته پئ ورکولو سره هم حرمت ثابت کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زینب په غلطئ سره خپلې لور ګښلوسره بلې جینۍ ته ئې پئ ورکړه. په دې وخت کښې دزینب هوش اوحواس دبیمارۍ دوجه نه صحیح نه وو. کله چه یومرتبه ئې پئ اوڅکل. نوهوش اوحواس ئې په تیهک کیدلوباندې محسوس کړل اوپئ هم صرف یومرتبه څکلې وو. ایادزینب دزوئ سره ددې جینۍ نکاح جائزده یانه. او د زینب دولد الولد سره جائزده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالکبیرجلال آباد.......

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی الهندیةتزوج امرأة فقالت امرأة ارضعتکما فهو علی اربعة اوجه ان صدقاها فسد النکاح...... وان کذباها وهی عدلة فالتنزه المفارقة...... وکذا لو شهد غیر عدول او امرأتان او رجل وامرأة وان صدقها الرجل وکذبتها فسد النکاح وان بالعکس لا یفسد ولها ان تحلفه ویفرق اذا نکل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۴۸ قبیل کتاب الطلاق)



**الجواب**: د جزئیاتونه معلومه ده. چه رضاع کښې په علم. جهل. اورضااواکراه کښې څه فرق نشته. لهذادزینب پلاردې رضیعې رضاعی رورذې. او ولدالولد ئې رضاعی وراره دې. اوڅنګه چه دنسبتی وراره سره نکاح حرامه ده، هم دغه شان درضاعی وراره سره هم نکاح حرامه ده.

قال رسول الله ﷺ: **یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب﴿۱﴾ وفی الدرالمختار: ولا حل بین الرضیعة وولد مرضعتها وولد ولدها لانه ولد الاخ انتهیٰ باختصار یسیر﴿۲﴾. وهوالموفق**

## د دوؤ بنو مختلفو بچوته پئ ورکولوسره د رضاعت مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دزید دوه ښځې دی. هنده اوسایه. هندې یواجنبی هلک ته سینه ورکړه. اوسایې هم یواجنبیې جینۍ ته سینه ورکړه. اوس ددې اجنبی جینۍ اوهلک په مینځ کښېن نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالقیوم پیرهاړی بتګرام..... ۱۹۸۳ء۱۱\۱۱

**جواب**: دادلبن الفحل مسئله ده. اوس ددې دواړو په مینځ کښې نکاح ناجائز ده. ځکه چه دادواړه دزیدرضاعی بچی دی﴿۳﴾وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ (رواه البخاری ۹: ۱۲۱ کتاب النکاح، وراه مسلم باب تحریم الرضاعة ماء الفحل الحدیث: ۱۴۴۷ ورواه النسائی ۶: ۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۳ باب الرضاع)**

**﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: ولبن الفحل یتعلق به التحریم وهو ان ترضع المرأة صبیة فتحرم هذه الصبیة علی زوجها وعلی آبائه وابنائه ویصیر الزوج الذی نزل لها منه اللبن ابا للمرضعة.**

**(هدایة ۲: ۳۵۱ کتاب الرضاع)**

**د خوب په حالت کښې د یو بچي راتلل اود پیوځکلوسره د حرمت مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوښځه اوده وه، چه یو هلک راغلواوپه دې حالت کښې ئې ددې نه پئ اوځکل. اوښځې ته هم معلومه شوه، ایادې سره حرمت درضاعت ثابت کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مجید علی متعلم حقانیه.... ۱۳۱۱۱۹۸۶

**جواب:** د اوده شوې (نائمې) ښځې نه دپیوځکلوپه صورت کښې حرمت د رضاعت ثابت کیږی

لما فی شرح التنویر: او میتة﴿۱﴾، والوجه ظاهر لان النوم ادنیٰ من الموت، ولما فی العالمگیریة ۱: ۳۶۸ وکذا الصغیرة اذا جاءت الی الکبیرة وهی نائمة فاخذت ثدیها وارتضعت منها بانتا منه، فافهم﴿۲﴾. وهوالموفق

**دچا په بدن کښې د وینې داخلیدلو سره حرمت د رضاعت نه راځی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دچاپه بدن کښې دچا وینې داخلیدلوسره حرمت درضاعت ثابت کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ریاض الحسن ستاره جرات تحصیل گوجرخان۱۹۷۲ء۱۱۱۵

**الجواب:** واضحه دې وی چه دچاپه بدن کښې دوینې داخلیدلوسره دحرمت رضاع ثبوت اوعدمې ثبوت متعلق وضاحت ملاؤنشو. البته دقواعدوپه رڼا سره داعمل موجب حرمت نه دې. لان الدم لا یدفع المجاعة ولا تتغذی بها فلا تکون محرمة، قال رسول الله صل الله علیه وسلم انما الرضاعة من

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۳۷ باب الرضاع)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۴۵ کتاب الرضاع)

.......



المجاعة﴿۱﴾ نیزواضحه دې وی چه کله ددوه نیموکالونه پس پئ اوځکولې شی نوموجب حرمت نه کیږی﴿۲﴾دخول دوینې به څنګه موجب حرمت وی. وهٰذا هوالمختار عندالاکابر. وهوالموفق

**د ښځې پئ ځکلوسره اووینې ورکولوسره حرمت رضاعت نه راځی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه (۱) خاونددپاره دښځې سینه په خوله کښې اخستل یادکومې مجبورئ (بطورعلاج) دوجه نه دښځې پئ ځکل جائزدې یانه. دحرمت څه حکم دې. (۲) دښځې دبیمارې یاکمزورې په بنیادباندې که چرته دوینې ضرورت پیښ شی اودخاونددوینې نه علاوه دبل چاوینه ورسره موافق نه وی په دې صورت کښې داوینه ورکول جائزدی؟ اود حرمت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... نوشهره... ۱۸\شوال ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** (۱) دوه نیم کاله نه پس دکومې ښځې پئ ځکل اوورکول بغیر دضرورت شرعی نه جائزنه دی. البته دې سره حرمت رضاع ثابت کیږی نه. (عمدة الرعایة﴿۳﴾ وهدایة﴿٤﴾

---

﴿۱﴾ عن عائشة ان النبی ﷺ دخل علیها وعندها رجل فکانه تغیر وجهه کانه کره ذلک فقالت انه اخی فقال انظرن من اخوانکن فانما الرضاعة من المجاعة.

(الصحیح البخاری ۲: ۸۶۴ باب من قال لارضاع بعد حولین)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: قلیل الرضاع وکثیره اذا حصل فی مدة الرضاع تعلق به التحریم...... واذا مضت مدة الرضاع لم یتعلق بالرضاع تحریم کذا فی الهدایة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۴۲ کتاب الرضاع)

﴿۳﴾ قال العلامة عبد الحئی اللکنوی: قوله لا بعده ای لا بعد مدة الرضاعة لحدیث لا رضاع بعد فصال ولا یتم بعد حلم اخرجه الطبرانی وعبد الرزاق وغیرهما وفی جامع الترمذی مرفوعاً لا یحرم من الرضاع الا ما فتق الا معاء فی الثدی وکان قبل الفطام الخ.

(عمدة الرعایة هامش شرح الوقایة ۲: ۶۴ کتاب الرضاع)

﴿۴﴾ قال العلامة المرغینانی: وهل یباح الارضاع.... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

وشامی﴿۱﴾.(۲) دضرورت شرعی په وخت نکاح باندې ددې اثرنه پریوزی اوحرمت هم نشته دې.اوبغیردضرورت نه په نکاح باندې اثرخونه پریوزی لیکن حرام اوموجب ګناه ده،ولم یذکره الفقهاءفی محرمات النکاح.وهوالموفق

## که چرته پئ ورکول یقنی طورباندې یاد وی اوښځې خاوند ته هم د حقیقت یقین وی نو تفریق ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوښځې خپل زوئ دپاره یوجینئ خوښه کړه روستو دا صورت حال پیدا شوچه دې ښځې ته دا خبره یاده شوه چه هغه جینئ کومه چه ماخپل زوئ ته په نکاح باندې اخستې ده.دې ته هم کیدې شی ماپئ ورکړې وی لیکن ددې کاردمدت اودوخت د پریشانئ اومصیبت دوجه نه په شک کښې دې.لیکن غالب ګمان دپیؤ ورکولو دې چه دې خپل پئ ورکړی دی نوایاپه دې صورت کښې حرمت رضاع ثابت کیدلو سره جدائی لازمه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی:حاجی علی محمدبیټنی ټانک ډیره......۱۹۷٤ء۲۱\۱۵

**الجواب:** که چرته پئ ورکونکی ته یقینی طورباندې خپل پئ ورکول یادوی او ددې جینئ اوهلک په دې خبره باندې یقین وی چه دا ښځه رښتیاوائی نوپه دې هلک باندې ددې جینئ پریښودل ضروری دی(شامی)﴿۲﴾ وهوالموفق

(بقیه حاشیه) بعد المدة قد قیل لا یباح لان اباحته ضروریة لکونه جزء الادمی.

(هدایه ۲: ۳۵۱ کتاب الرضاع)

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: ویثبت التحریم فی المدة فقط ولو بعد الفطام...... ولم یبح الارضاع بعد مدته لانه جزء آدمی والانتفاع به لغیر ضرورة حرام علی الصحیح.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٤۳۸ باب الرضاع)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدین: تزوج امرأة فقالت امرأة ارضعتکما فهو علی اربعة اوجه ان صدقاها فسد النکاح...... وان کذباها وهی عدلة فالتنزه المفارقة...... وان صدقها الرجل وکذبتها فسد النکاح...... وان بالعکس لا یفسد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ٤٤۸ قبیل کتاب الطلاق)



## د پیؤ نه کیدل یقینی وی نوحرمت ثابت کیږی نه

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوهلک دخپلې نیا سینې سره خوله اولګوله حال داچه دې کښې پئ نه وو.اونیادده دپلار د طرفه وی،نوایاپه ده باندې خپله دتروړلورحرامه ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عالمګیرشاه اکبرپوره......۲۵\جمادی الثانی ۱۳۹۹هـ

**جواب:** که چرته ددې نیاپه سینه کښې یقینی طورسره پئ معلوم نه وو.نودې سره حرمت رضاعت نه ثابت کیږی.صرح به فی الاشباه والنظائر ۶۳:۵۹﴿۱﴾ وهوالموفق

## که پئ نه وی نوحرمت رضاعت به ثابت نه وی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوماشوم دمورنه دشپږو میاشتوپاتې شواوپه دې دوران کښې دچیلئ یادغواپه پیوباندې پرورش اوشو.کله چه داماشوم په ژړاشی نودې لره خپله حقیقی نیاسینې

﴿۲﴾قال العلامة ابن نجیم: ومنها لو ادخلت المرأة حلمة ثدیها فی فم الرضیع ولا یدری أدخل اللبن فی حلقه ام لا یحرم النکاح، (بعد صفحات) فلو کان فی الحرمة شک لم یعتبر ولذا قالوالو کان فی الحرمة شک لم یعتبر ولذا قالوا لو ادخلت المرأة حلمة ثدیها فی فم رضیعة ووقع الشک فی وصول اللبن الی جوفها لم تحرم لان فی المانع شکا کما فی الولو الجیة وفی القنیة: امرأة کانت تعط ثدیها صبیة واشتهر ذلک فیما بینهم ثم تقول لم یکن فی ثدیی لبن حین القمتها ثدیی ولا یعلم ذلک الا من جهتها جاز لابنها ان یتزوج بهذه الصبیة وفی الخانیة صغیر وصغیرة بینهما شبهة الرضاع ولا یعلم ذلک حقیقة، قالوا: لا باس بالنکاح بینهما هذا اذا لم یخبر بذلک احد!

(الاشباه والنظائر ۶۲،۶۶ القاعدة الثالثة الیقین لا یزول بالشک)

باندې واخلي اوپرله پسې دوه کاله دا سلسله جاري وه.دنیاعمرشپیته کاله وو،او د اوولسو کالونه دانیابې اولاده وه.ایااوس ددې نیاحقیقي نمسۍ سره ددې هلک نکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شریف پشاور......۱۹۷۴ء/۱۰/۱۰

**جواب**:که چرته ددې نیاپه سینه کښې د پیووجود یقیني نه وو،نو حرمت د رضاعت به ثابت نه وی.

**وفي القنية امرأة كانت تعط ثديها صبية واشتهر ذلك بينهم ثم تقول لم يكن في ثديي لبن حين القمتها ثديي ولم يعلم ذلك الا من جهتها جاز لابنها ان يتزوج بهذه الصبية (ردالمحتار ۲:۵۵۶)﴿۱﴾. وهوالموفق**

## د آنسې ښځې په پیوْ کیدلو او نه کیدلو کښې د حرمت مسئله

**سوال**:څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه په کتاب الرضاع کښې په دې خبره کښې اختلاف دې.واذانزل للبكرلبن فارضعت صبيايتعلق به التحريم لاطلاق النص وهوقوله:وامهاتكم اللتي ارضعكم،اوس که چرته یوښځه وی. اوددې خاوندنه وی اوبوډهې شی.اویوماشومه دسینې سره اولګوی اوپئ ددې په سینه کښې پیداشی.نودې سره حرمت ثابت کیږی.هم دغه شان که چرته پئ نه وی نوحرمت نه راځی ایادامسائل صحیح دی؟بینوا توجروا

المستفتی:مولاناآغامحمدطیب کوئټه.....۱۲رمضان المبارک۱۳۹۹ھ

**جواب**:(۱) دامسئله صحیح ده.﴿۲﴾دامسئله هم صحیح ده. کمافی

---

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۳۹ باب الرضاع)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفي: هو مص الثدي وشرعا مص من ثدي آدمية ولو بكرا او ميتة او آيسة والحق بالمص الوجور والسعوط.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۴۳۷ باب الرضاع)



ردالمحتار ۲:۴۵۵)﴿۱﴾وهوالموفق

## ددوه نیم کالونه زیات عمروالا که چرته پئ اوڅکی نوحرمت نه ثابتیږی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مسماة کچکول خان هغه چه لاډلااوبداخلاقه وو.دجادوپه طورباندې دعلی محمد دمورصرف یوځل پئ اوڅکل.علی محمد دکچکول نه صرف شپږمیاشتې مشردې.هم دغه رنګ دکچکول خان کوېدنه دعلی محمد دکشرې خورسره اوشوه.اوس د واده خبرې شروع دی نوداخبره یاده شوه.لیکن دایاد ول پکاردی.چه کچکول خان دخپلې منګتیرې مورصرف یوځل پئ څکلی دی.دانکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیروزشاه

**جواب**:که چرته دپیوڅکلوپه وخت دکچکول عمرددوه نیم کالونه زیات وو. نوحرمت به نه وی.في الدرالمختار:في وقت مخصوص هوحولان ونصف عنده وحولان فقط عندهماالخ﴿۲﴾اوکه چرته عمرددوه نیم کالونه کم وونوحرمت به ثابت وی.وفيه ويثبت به ان قل﴿۳﴾وهوالموفق

## د ښځې پئ څکلو کښې د حرمت دلیل

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دسرې دپاره دخپلې

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: وفي القنية امرأة كانت تعط ثديها صبية واشتهر ذلك بينهم ثم تقول لم يكن في ثديي لبن حين القمتها ثديي ولم يعلم ذلك الا من جهتها جاز لابنها ان يتزوج بهذه الصبية.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۳۹ باب الرضاع)

﴿۲﴾(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۴۳۷ باب الرضاع)

﴿۳﴾(شرح التنوير على هامش الشامية ۲:۴۳۹ باب الرضاع)

ښځې پۀ څکل ولې حرام دیٰ ددې څه وجه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری رحمت دین متعلم گورنمنټ دار العلوم اسلامیه چارباغ سوات۱۹۸۹ء۱۹۱\۲۳

**جواب:** روستو د مدت رضاع نه دخپلې ښځې وغیره پۀ څکل حرام دی لیکن موجب د جدا والی او د طلاق نه دی.

**کما فی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵٦۹ مص رجل ثدی زوجته لم تحرم﴿۱﴾ وفی ۲: ۵۰۵ ولم یبح الارضاع بعد مدته لانه جزء آدمی والانتفاع به لغیر ضرورة حرام علی الصحیح﴿۲﴾. وهو الموفق**

## د رضاعت د مودې نه علاوه دښځې پۀ څکلو سره نکاح باندې اثر نه پریوزی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې ښځې سره صحبت کولو. ښځې ته ئې اووئیل چه ستا پۀ سینه کښې پۀ شته یا نه. ښځې ورته اووئیل نشته. لهذا ددې پۀ سینه باندې خوله کیخودله او چه کله ئې دډیر شوق دوجه نه اورولې نو ددې پۀ رولو سره دهغه پۀ خوله کښې مالګیژن پۀ راغلل. دده پۀ خوله کښې پۀ راتللو سره ئې ګزار کړل او خوله او ژبه ئې صفا کړه. او پۀ ئې تیر نه کړل. او بیائې خوله او بو سره صفا کړه. هلته ئې دیو عالم نه پوښتنه اوکړه. اوهغه جواب ورکړو چه ددې سره رضاعت نه ثابت کیږی. تاسو صاحبان دصحیح مسئلې نه مو خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: کمال الباکستانی حائل سعودیه عربیه..... ۱۴۰۱۱۴۱۱۴ھ

**جواب:** ددې مولوی صاحب مسئله صحیح ده. که تاسو چرته پۀ هم اوڅکل اولاندې موتیرهم کړل. نو بیاهم پۀ نکاح باندې څه اثر نه پریوزی. لما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار..

**﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٤٤۹ قبیل کتاب الطلاق)**

**﴿۲﴾ (علائیه علی هامش الشامیة ۲: ٤۳۸ باب الرضاع)**



**۲: ۵٦۹، مص رجل ثدی زوجته لم تحرم، انتهیٰ﴿۱﴾. قلت هذا اذا کان الزوج تجاوز عمره من ثلاثین شهراً﴿۲﴾. وهو الموفق**

## نمسی یا نمسئ ته پۀ ورکول اګرچه ممنوع نه دی مګر موجب د حرمت رضاعت دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه نیا خپلو نمسو لره داوده کولو دپاره خپل سینه دهغوی پۀ خوله کښې ورکوی او هغوی پۀ څکی ایا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الرؤف لوند خوړ مردان..... ۱۲۸رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**جواب:** نمسی وغیره (کله چه دوه نیم کالونه کم وی نو دته) سینه ورکول ممنوع نه دی. که چرته درضاعت پۀ موده کښې ئې پۀ او څکل نو حرمت درضاعت به ثابت وی (شرح تنویر وغیره)﴿۳﴾ وهو الموفق

## د اقرارنه پس د رضاعت نه انکار اوکړی نو نکاح به جائزوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه حیات دخپل زوئ وارث

**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ٤٤۹ کتاب الطلاق)**

**﴿۲﴾ قال العلامة طاهر بن عبد الرشید: ولا رضاع بعد الفصال ومدة الرضاع عندهما سنتان وعند ابی حنیفة سنتان ونصف والرضاع فی هذه المدة محرم فطم الصبی ام لا ولا یثبت الحرمة بعد سنتین ونصف وان لم یفطم.**

**(خلاصة الفتاویٰ ۲: ۱۱ الفصل الرابع فی الرضاع)**

**﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ویثبت التحریم فی المدة فقط ولو بعد الفطام علی المذهب وعلیه الفتویٰ...... ولم یبح الارضاع بعد مدته لانه جزء آدمی والانتفاع به لغیر ضرورة حرام علی الصحیح. (الدر المختار علی هامش الشامیة ۲: ٤۳۸ باب الرضاع)**

دپاره دغلام دلور رشته اوغوښتله، دغلام ښځې جواب ورکړو چه ما وارث ته دخپلې لور سره پئ ورکړې دی ددې وجه نه دا رشته نه شی کیدې. ددې اقرار ګواه هم موجود دې څه وخت پس حیات دوباره رشته اوغوښته غلام اودده ښځه رشتې ورکولو باندې راضی شول. نکاح اوشوه. چه کله دکلی خلقو د رضاعت دسابقه داقرار دوجه نه نکاح باندې اعتراض اوکړو نودې ښځې د رضاعت نه انکار کولو سره اووئیل چه اولنې اقرار صرف رشتې نه ورکولو دپاره یو بهانه وه. په دې سلسه کښې ئې یو دینی عالم ته رجوع اوکړه نو د نکاح دجواز فتوی ورکولو سره ئې دا دلیل ورکړو چه رضاعت دثبوت ګواه نشته حالانکه یو بل عالم دین دجدا والی حکم ورکولو سره اووئیل چه د اقرار دوجه نه یو ځل رضاعت ثابت شوې دې. اوس سوال دادې چه داقرار رضاعت نه پس دانکار په صورت کښې حرمت رضاعت ثابت کیږی یا نه؟ نیز ذکرشوې نکاح برقراره پاتې کیدلې شی یا دې لره فسخه کول ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ حیات محمد ساکن مروال کیملپور اټک...... ۱۹۷۴ء۷/۷/۱

**جواب:** دانکاح جائزده دفسخې څه ضرورت نشته.

لما فی تنقیح الفتاوٰی (۱: ۳۴) **سئل فی امرأة قالت ارضعت زیداً ثم کذبت نفسها وحلفت بالله العظیم انها لم ترضعه اصلاً وصدقها زید علی ذلک ویرید التزوج بابنتها فهل له ذلک، قال نعم والمسئلة فی التنویر الخ**﴿۱﴾. **وهو الموفق**

## د رضیع او د مرضعې د ټول اولاد په مینځ کښې نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه علی دولی سره دده د موز پئ څکلی دی. اوس دعلی نکاح دولی دمور دخیښې نه پیدا شوې دولی

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاوٰی الحامدیة ۱: ۳۴ باب الرضاع)



خور سره کو. ایا ذکرشوې صورت کښې نکاح جائز ده. ایا د رضیع دپاره د مرضعې ټول اولاد حرام دې. ﴿۱﴾ حالانکه فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۴ **سوال:** (۹۲۱) لاندې په ذکرشوې صورت کښې نکاح حرامه قراره کړې شوې ده. او په دویم جلد کښې اصول بیان کړې شوې دې. چه رضیع دپاره دمرضعې ټول اولاد حرام دې﴿۲﴾ مفتی اعظم پاکستان مفتی محمد شفیع صاحب سابق مفتی دیوبند حال کراچی او مولانا خیر محمد صاحب خیر المدارس والا ذکر شوې نکاح حرامه قرار کړې ده. لیکن دګوجرانواله یو مفتی صاحب په عبارت کښې، تحل اخت اخیه رضاعاً ونسبا، بحر الرائق ۲۲۷، شامی ۳: ۵٦۱، فتح التقدیر ۳: ۱۱ حواله ورکوی چه ذکرشوې نکاح جائز قرار کړې شوې ده. مدلل جواب مع ثبت مهر دار الافتاء رحمت اوفرمائی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالله لدهیانوی مرکزی دفتر مجلس ختم النبوت ملتان شهر ۱۹۷۹ء۱۲/۱۱/۱

**الجواب:** دعلی دپاره دولی مور د مرضعې ټول اصول او فروع حرام دی.

لما فی الهندیة ۱: ۳٦۵ **یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعاً حتی ان المرضعة لو ولدت من هذا الرجل او غیره قبل هذا الارضاع او بعده...... فالکل اخوة الرضیع واخواته الخ**﴿۱﴾..

او فقهاء کرامو چه څه لیکلې دی چه تحل اخت اخیه رضاعاً ونسبا، نو ددې نه مراد دعلاتی رورا خیافی خورده ټولو فقهاء کرامو په دې باندې تصریح کړې ده.

قال فی الدر المختار: **وتحل اخت اخیه رضاعاً ونسباً بان یکون لاخیه لابیه اخت لام انتهیٰ ما فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۵٦۱**﴿۲﴾ **وهکذا فی الهندیة ۱: ۳٦٦**﴿۳﴾.

﴿۱﴾ (فتاوٰی عالمگیریه ۲: ۳۴۳ کتاب الرضاع)
﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۴۴۲ باب الرضاع)
﴿۳﴾ وفی الهندیة: وتحل اخت اخیه رضاعا کما تحل نسبا مثل الاخ لاب اذا کانت له اخت من امه یحل لاخیه من ابیه ان یتزوجها کذا فی الکافی. (فتاوٰی عالمگیریة ۱: ۳۴۳ کتاب الرضاع)

**وهکذا فی الهدایة ۱ ۳۳۱﴿۱﴾ کتاب الرضاع، وهکذا فی البدائع ۴:۴﴿۲﴾. وهو الموفق**

## د نیا پئ څکلو سره نمسۍ د ترونو رضاعی رور جوړیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه نیاخپل نمسی ته پئ ورکړل، نوایاواقعی به دانمسۍ دخپلو ترونوروروی؟ اودتره لوریانې به په ده باندې حلالې نه وی؟ لیکن حقیقت خوددې برعکس دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحمت الله خان اوګئ مانسهره...... ۱۲۲\شوال۲ ۱۴۰ه

**جواب:** داهلک دټولوترونورضاعی روردې. ددې ترونولوریانې په ده باندې حرامې دی، داددې هلک رضاعی وریرې دی، قال رسول الله صل الله علیه وآله وسلم: یحرم من الرضاع مایحرم من النسب﴿۳﴾وهو الموفق

## اجنبی هلک جینئ د اجنبی ښځې پئ څکلو سره په دواړو کښې رضاعت ثابت کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید دفاطمې زوئ او

---

﴿۱﴾ وقال العلامة المرغینانی: ویجوز ان یتزوج الرجل باخت اخیه من الرضاع لانه یجوز ان یتزوج باخت اخیه من النسب وذلک مثل الاخ من الاب اذا کانت له اخت من امه جاز لاخیه من ابیه ان یتزوجها.

(هدایة ۲: ۳۳۱ کتاب الرضاع)

﴿۲﴾(بدائع الصنائع ۴: ۴ کتاب الرضاع)

﴿۳﴾(رواه البخاری ۲: ۷۶۴باب قوله تعالی وامهاتکم اللاتی ارضعنکم کتاب النکاح ) (ورواه مسلم ۱: ۴۶۷ باب الرضاعة من ماء الفحل ورواه النسائی ۶: ۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع )

.....



زینب دهندې لورده، دواړوددریمې مورپئ اوڅکل اوس دفقه حنفی په رڼا کښې دزید اوزینب په مینځ کښې عقدنکاح جائزده یانه؟یعنی دارضاعت د صورت محرمه ځینې دې یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولانافضل مولی صاحب دلبوړی مدرس حقانیه (حال مهتمم دارالعلوم دلبوړی)۱۹۸۹ء

**الجواب:** دزید اوزینب په مینځ کښې نکاح حرامه ده، ځکه چه دادواړه رضاعی رورخوردی، قال رسول الله صل الله علیه اوآلیه وسلم: یحرم من الرضاع مایحرم من النسب﴿۱﴾وفی الدرالمختار: ولاحل بین رضیعی امراة لکونهمااخوین وان اختلف الزمن﴿۲﴾وهو الموفق

## د نیا پئ څکلو والا په خپلو کښې رضاعی رور خوردی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوښځه خپلونمسوته چه هغه هلک اوجینئ وی پئ ورکړه، ایاددوئ په مینځ کښې به نکاح جائز وی؟ بینوا توجروا

المستفتی:فضل هادی........۱۹۷۴ء\۱۳\۱۹

**الجواب:** چونکه پئ څکلووالاپه خپلوکښې رورخوردی، لهذاددوی په مینځ کښې نکاح جائزنه ده، کما صرحوابه﴿۳﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (رواه البخاری ۵۱۰۰، ومسلم الرضاع ۱۱، ۱۲، ۱۵ وغیرهما انظر تحفة الاشراف ۷: ۴۰۱)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۳ باب الرضاع)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعا حتی ان المرضعة لو ولدت من هذا الرجل او غیره قبل هذا الارضاع او بعده او ارضعت رضیعا او ولد لهذا الرجل من غیر هذه المرأة قبل هذا الارضاع او بعده او ارضعت امرأة من لبنه رضیعا فالکل اخوة الرضیع واخواته الخ.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۴۳ کتاب الرضاع)

## د رضاعی پلار د دویمې ښځې سره نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دوه ودونه کړی وی.دواړه ښځې دده سره دی.داولې ښځې نه ئې شپږلوریانې اوځامن وو. بیا اولنې ښځه وفات شوه.بیاپلارهم وفات شواوداشپږبچی ددې کونډې سره پاتې شول.بیادې کونډې موردیو سړی سره واده اوکړو.لیکن دې خاوند ددې شپږوبچوولاموړېئ هم څکلې وو.نوایادابنځه ددې سړی سره نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

**الجواب:** درضاعی پلاربنځه (غیرمرضعه)حرامه ده. کمافی ردالمحتار ۳۱:۳ویحرم من الرضاع اصوله وفروعه....وحلائل اصوله وفروعه﴿۱﴾

**نوټ:** داحکم هله دې چه رضاعت مسلم یامبرهن وی﴿۲﴾وهو الموفق

## رضاعی ترور د محرماتو نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مثلاهندې یوهلک عمرو ته پئ ورکړی دی،اوس دامرضعه(هنده)دخپلې نسبی خورسره.ددې هلک نکاح کول غواړی،ایاداپه رنړادشریعت کښې جائزده؟

بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالصمدبن شیخ الحدیث

مولانامحمدعلی سواتی مدرس حقانیه.....۱۸۱۹۱،۱۹۷۶

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۳ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: الرضاع یظهر باحد امرین احدهما الاقرار والثانی البینة کذا فی البدائع ولا یقبل فی الرضاع الا شهادة رجلین او رجل وامرأتین عدول.

فتاویٰ عالمگیریه ۲:۳۴۷ کتاب الرضاع)



**الجواب:** دابنځه درضاعی تروركیدلوپه وجه دمحرماتونه ده.

لحدیث: یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب (متفق علیه) ﴿۱﴾. ولما فی الهندیة: ۱:۳۶۵ یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما (الی ان قالوا) واخوا المرضعة خاله واختها خالته﴿۲﴾، وفی ردالمحتار ۲:۳۸۳ یعنی یحرم من الرضاع اصوله وفروعه وفروع ابویه وفروعهم و کذا فروع اجداده وجداته ﴿۳﴾.

قلت: الخالة فرع الجد الفاسد والجدة الصحیحة. وهوالموفق

## د مزنیې په پیو باندې د پاللې شوې

## هلک د زانی د لورسره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دیوې ښځې سره زنااوکړه اوولدزناهم پیداشو.دې مزنیې ښځې یوهلک ته دزناپئ ورکړه،اوس دزانی یوه لورده،نوایاددې مزنیې درضیع اودزانی دلورپه مینځ کښې نکاح جائزده،حالانکه زانی اومزنیه دواړه دزنااوددې ولدالحرام معترف دی حالانکه ددې ښځې یوخاوندهم نشته؟بینوا توجروا

المستفتی: مولانارحمٰن الدین بازارشیرینګل دیربالا.....۱۴۱۲۱،۱۹۷۹

**جواب:** دامختلف فیه مسئله ده،اومحققین دعدم حرمت قائل دی.

قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ۲:۵۲۲ وحاصله ان فی حرمة الرضیعة بلبن الزنا علی الزانی و کذا

﴿۱﴾ (رواه البخاری ۲:۷۶۴ کتاب النکاح باب قوله تعالیٰ: وامهاتکم اللاتی ارضعنکم. ورواه مسلم ۱:۴۶۷ باب تحریم الرضاعة من ماء الفحل، ورواه النسائی ۶:۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۴۳ کتاب الرضاع)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۳ فصل فی المحرمات)

على اصوله وفروعه روايتين كما صرح به القهستاني ايضاً وان الاوجه رواية عدم الحرمة ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د رضاعی رور د خور سره نکاح جائزده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دي مسئلې باره کښې چه ګل رحمٰن دخیرالاسلام سره دګل رحمٰن دمورسینې نه پئ رولي دی.ایادخیرالاسلام دخورنکاح دګل رحمٰن سره جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں محمداسلام کاکاخیل

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې ګل رحمن دخیرالاسلام دخورسره نکاح کولې شی.

کمافی شرح التنویر:وتحل اخت اخيه رضاعايصح اتصاله بالمضاف وبالمضاف اليه كان يكون لاخيه رضاعااخت نسباًالخ﴿۲﴾وهوالموفق

## د رضاعی رور د خور سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه زیداوعمرداسې دوه رضاعی رونړه دی،چه زیددعمرسره دعمردمورپئ څکلی دی.په رڼړا د شریعت کښې ازجانب شیرده همه خویش شونداوازجانب شیرخوارزوجان او فروع.زیددپاره عمردهریوې خورسره نکاح ناجائزده.ایادعمردپاره د زید خور فهمیده یاسیده سره نکاح جائزده؟

بینوا توجروا

المستفتی: پروفیسرخیرالرحمٰن چارسده......۱۱۴جمادی الاول ۱۳۹۵ھ

---

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۴۶ قبيل كتاب الطلاق)

﴿۲﴾(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۴۴۲ باب الرضاع)



**الجواب:** واضحه دي وی چه فهمیده اوسیده دعمررضاعی خوریانې نه دی بلکه درضاعی رورنسبی خوریانې دی.لهذادعمرددوی سره نکاح جائزده.

كما فى الدرالمختار: وتحل اخت اخيه رضاعا يصح اتصاله بالمضاف كان يكون له اخ نسبى له اخت رضاعية وبالمضاف اليه كان يكون لاخيه رضاعاً اخت نسبا الخ (هامش ردالمحتار ۲:۵۶۱)﴿۱﴾، وبمعناه فى جميع الفتاوىٰ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د رضیع د مرضعې ټول اولاد سره نکاح جائز نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه یوې جینئ دیوې ښځې پئ اورول.اوس ددې جینئ نکاح ددې ښځې صرف یوزوئ سره چه هغه وخت ئې پئ څکل نه کیږی یادهریوزوئ سره به ئې نکاح نه کیږی؟بینوا توجروا

المستفتی: امیرفاضل ضیاء راولپنډی....۲۲۱۴۱۱۹۷۵ء

**جواب:** ددې مرضعې ټول اولادددې جینئ سره نکاح نشی کولې. کمافی الخلاصة ۲۴۴:۱ ولورضعت امراة صبيايحرم عليه من يقدم من اولادومن تاخر﴿۳﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۴۴۲ باب الرضاع)

﴿۲﴾قال العلامة ابن نجيم: (قوله: وتحل اخت اخيه رضاعا) يصح اتصاله بكل من المضاف والمضاف اليه وبهما كما قدمناه فى نظائره فالاول ان يكون له اخ من النسب ولهذا الاخ اخت رضاعية والثانى ان يكون له اخ من الرضاع له اخت نسبية.

(البحر الرائق ۳:۳۹۶ كتاب الرضاع)

﴿۳﴾(خلاصة الفتاوىٰ ۲:۱۲ قبيل الفصل الخامس فى الاكفاء)

..........

## د اخوت رضاعی باوجود نکاح حرامه او ددې نه منکرکیدل یا کول حرام بلکه کفردي

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښې چه هندي خپلي نمسو (هلکانو اوجینکو) ته درضاعت په ورځوکښې پئ ورکړی دی. ایاددوی په مینځ کښې نکاح کیدلي شي؟ اوهغه صلاح کاردي حرمت ختمولوپاره هندي ته باوجودپئ ورکول باندي دمکمل شهادت نه منکره کوي مجرم دي یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشیداوګئ مانسهره...... ۱۲۲ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** داخوت رضاعی دوجه نه ددي نمسو (هلکانواوجینکو) په مینځ کښې نکاح حرامه ده (قرآن)(۱) اود شهادت شرعیه باوجودمنکرکیدل یاکول حرام بلکه کفردي؟ (۲) وهوالموفق

## رضاعی خورزي سره نکاح صحیح نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښې چه هندي یوې جینئ عمرې

(۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: حرمت علیکم امهتکم وبنتکم واخواتکم وعمتکم وخلتکم وبنت الاخ وبنت الاخت وامهتکم التی ارضعنکم واخواتکم من الرضاعة.
(سورة النساء پاره:۴، رکوع:۱۵، آیت: ۲۳)

(۲) قال الشیخ محمد عمر النسفی: واستحلال المعصیة صغیرة کانت او کبیرة کفر اذا ثبت کونها معصیة بدلیل قطعی...... وعلی هذه الاصول یتفرع ما ذکر فی الفتاویٰ من انه اذا اعتقد الحرام حلالاً فان کانت حرمته لعینه وقد ثبت بدلیل قطعی والا فلا بان یکون حرمته لغیره او ثبت بدلیل ظنی...... فقال من استحل حراما وقد علم فی دین النبی علیه السلام تحریمه کنکاح ذوی المحارم او شرب الخمر...... من غیر ضرورة فکافر وفعل هذه الاشیاء بدون الاستحلال فسق.
(شرح العقائد ۱۲۰ بحث استحلال المعصیة کفر)



نه دخپل زوئ سره پئ ورکړل. اوس دهنده (مرضعه) زوئ اود عمره (رضیعي) لور نکاح کولي شي؟ بینوا توجورا

المستفتی: حافظ عطاءالرحمٰن کاملپوری (متعلم حقانیه) ۲۳،۶،۱۹۷۴

**الجواب:** چونکه په رضاعت کښې دمقدم اومؤخرحکم یوشان دي، کمافی خلاصه الفتاوی ۲:۲۴۴، ولوارضعت امراة صبیایحرم علیه من یقدم من اولادها ومن تاخر(۱) لهذاداجینئ ددي هلکانورضاعی خورده. اوددي عمرې لور ددي هلکانوخورزه ده. هغه چه حرام ده. لحدیث یحرم من الرضاع مایحرم من النسب(۲) وهی السبع المذکورة فی قوله تعالی: حرمت علیکم (الایة) ومنهابنات لاخت(۳) وهوالموفق

## رضاعی ترور سره نکاح صحیح نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښې چه دعمریوه ښځه وه ددي نه یوه جینئ پیداشوه اوهغه واده کړي شوه اودعمرښځه مړه شوه. بیا عمر دویم واده اوکړو. ددي ښځې نه ئي زید پیداشونودهغه ړومبئ ښځې لور د زیدخورجوړه شوه. بیاددي خورزیدلره پئ ورکړه. چه کله زیدهم واده اوکړو، نو دده هلک بکرپیداشو. اوددي خورئي جینئ پیداشوه نوایابکردپاره دا جینئ جائزده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید احمدشاه متعلم حقانیه...... ۲۲،۱۱،۱۹۷۵

(۱) (خلاصة الفتاویٰ ۲:۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

(۲) (رواه البخاری فی کتاب الشهادات باب الشهادة علی الانساب والرضاع، ورواه مسلم فی کتاب الرضاع باب تحریم الرضاعة من ماء الفحل، ورواه النسائی فی النکاح باب تحریم بنت الاخ من الرضاع من حدیث ابن عباس رضی الله عنه)

(۳) قال الله تبارک وتعالیٰ: حرمت علیکم امهتکم وبنتکم واخواتکم وعمتکم وخلتکم وبنت الاخ وبنت الاخت. (سورة النساء پاره: ۴، رکوع:۱۵، آیت:۲۳)

**الجواب:** چونکه په رضاعت کښې دمقدم اومؤخرحکم یوشان دې. کمافی الخلاصة ۱: ۲۴۴ولوارضعت امراة صبیایحرم علیه من یقدم اولادهاومن تاخر(۱) لهذاداجینئ ددې هلک(بکر)دپاره رضاعی ترورده اومحرمه ده.لحدیث یحرم من الرضاع مایحرم من النسب(۲) وفی الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار۲: ۳۸۳وحرم الکل ممامرتحریمه نسباومصاهرة رضاعا(۳)وهوالموفق

## د رضاعی خورئ سره نکاح حرام ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوهلک دخپلې نیاپئ څکلی دی.ددې نیالورچه ددې هلک ترورده دلورسره ددې هلک نکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورحبیب شاهین چپل میکرشپقدر......۱۹۷۵ء۱۱۳۱

**جواب:** ددې هلک ددې جینئ سره نکاح حرامه ده.

لقوله ﷺ: **یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب رواه الشیخان(۴).**

وفی الدرالمختار: **حرم علی المتزوج بنت اخیه واخته وبنتها (الی ان قال) وحرم الکل ممامر تحریمه نسباً ومصاهرة رضاعا الا ما استثنیٰ فی بابه، (باب المحرمات)(۵).**

وهوالموفق

---

(۱) (خلاصة الفتاویٰ ۲: ۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

(۲) (الصحیح البخاری ۲: ۷۶۴ کتاب النکاح باب قوله تعالیٰ وامهاتکم اللاتی ارضعنکم)

(۳) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۲ فصل فی المحرمات)

(۴) (رواه البخاری ۲: ۷۶۴ کتاب النکاح، ومسلم ۱: ۴۶۷ کتاب الرضاع)

(۵) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۱،۳۰۲ فصل فی المحرمات)



## د ناسکه نیا پئ څکلو سره د حقیقی ماما زادې سره هم حرمت رضاعت ثابت کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه څه دخپل مامادلورسره واده کول غواړم.لیکن ماته څما ناسکه نیاهغه چه څمادنیکه ښځه ده خو لیکن نه څمادمورموره ده نه څمادماما.هغې ماته پئ راکړی دی.نوایااوس څه دخپل حقیقی مامادلورسره نکاح کولې شم؟بینوا توجروا

المستفتی: سردرازخان دیربازاردیربالا.....۱۲۹شعبان ۲ ۱۴۰۲ه

**الجواب:** چونکه دلبن الفحل په قاعده باندې دنیکه ټول اولادستاسورضاعی رونړه خویندې دی.لهذاتاسودخپل سکه مامادلورسره نکاح نشئ کولې.

**کما فی رضاع الهندیة ۱: ۳۴۳ وهذه الحرمة کما تثبت فی جانب الام تثبت فی جانب الاب وهو الفحل الذی نزل اللبن بوطئه کذا فی الظهیریة، یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب الخ(۱). وهوالموفق**

## د مرضعې د دویم خاوند نه پیدا شوې جینئ سره د رضیع د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه بنده عهدطفولیت کښې دیوې ښځې پې څکلی دی، ماچه دکوم خاوندپه موجودګئ کښې پئ څکلی وو،هغه وفات شوې دې.ذکرشوې ښځې بیادویم سړی سره نکاح اوکړه.او ددې دویم خاوندنه ئې یوه جینئ پیداشوه.اوس بنده ددې جینئ سره کوژدنه اوکړه.دکوژدنې نه مخکښې بنده ددې مسئلې باره کښې دیومولوی صاحب

---

(۱) (فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۳۴۳ کتاب الرضاع)

نه پوښتنه اوکړه، نوهغه دانکاح صحیح اوویله. اودلیل ئې دابیان کړو. چه چونکه ستادپیوپه وخت کښې خاوندبدل وو. اواوس دجینئ پلاربدل دي، لیکن ماته تشفي اونه شوه تاسوصاحبان دفتوی په رڼا سره څه فرمائی؟ بینوا توجروا

المستفتي: نادرخان منیجرحبیب بینک ناوګئ باجوړ...... ۱۹۷۷ء/۱۸/۱۹

**الجواب:** محترم په تاسوباندې ددې ښځې (مرضعې) ټولې لوریانې حرامې دی. په دې کښې څه اختلاف نشته.

کما فی خلاصة الفتاویٰ ۱: ۲۴۴ ولو ارضعت امرأة صبیا یحرم علیه من یقدم من اولادها ومن تأخر ﴿۱﴾ وفی الهندیة ۱: ۳۶۵ یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعا حتی ان المرضعة لو ولدت من هذا الرجل او غیره قبل هذا الارضاع او بعده (الی ان قال) فالکل اخوة الرضیع واخواته ﴿۲﴾. وهو الموفق

## په پیو کښې د اصلی او غیراصلی تقسیم جاهلانه تقسیم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه جی خان اولال زمرود دتره ځامن دی. دې دواړو دخپلې سکې ترورپئ څکلی وو. مګرفرق دادې چه لال زمرود د تروراصلی پئ څکلی دی. اوجی خان دترور دخاوندوفات کیدلو نه تقریباشل کاله پس کوم پئ چه راوتلی دی هغه غیراصلی پئ څکلی دی نو آیا جی خان دپاره دلال زمرود دکومې لورسره نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: شیرولی خان آزادکشمیر رجمنټ بلوچستان ۱۷ رمضان المبارک ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې په دې سړی جی خان باندې دزمرود ټولې لونړه حرامې دی. داصلی اوغیراصلی تقسیم جاهلانه تقسیم دې، کمافی رضاع شرح التنویر: ولوبکرا اومیتة او آنسة ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ (خلاصة الفتاویٰ ۲: ۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)
﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۳۴۳ کتاب الرضاع)
﴿۳﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۷ باب الرضاع)



## د رضاعی زوئ د ښځې سره نکاح جائزنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دوه رونړه دی. د مشر رور ښځې کشرروته پئ ورکړه اچانک په څه حادثه کښې دا کشرروروفات شو، ایا مشرروردپاره دکشرروړمنکوحې سره نکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتي: شیرزمان پیرپیائی..... ۱۹۷۳ء/۱۷/۵

**جواب:** درضاعی زوئ ښځه دمحرماتونه ده. کمافی الهندیة: وامراة الرضیع حرام علی الرجل (هندیه: ۱: ۳۶۶) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د رضاعی تره سره نکاح جائز نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دشریف ښځې دخپلې خور لورته پئ ورکړه. ایاددې جینئ اودشریف دورور په مینځ کښې نکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتي: روح الامین پیش امام بابوزئ ضلع مردان

**جواب:** چونکه داسړې ددې جینئ رضاعی تره دې. لهذاددوی په مینځ کښې نکاح حرامه ده، بدلیل روایة البخاری: لیلج علیک افلح فانه عمک من الرضاعة ﴿۲﴾ وصرح به

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۳۴۳ کتاب الرضاع)
﴿۲﴾ وعن عائشة قالت جاء عمی من الرضاعة فاستاذن علی فابیت ان اذن له حتی اسأل رسول الله ﷺ فجاء رسول الله ﷺ فسألته فقال انه عمک فاذنی له قالت فقلت له یا رسول الله انما ارضعتنی المرأة ولم یرضعنی الرجل فقال رسول الله ﷺ انه عمک فلیلج علیک وذلک بعدما ضرب علینا الحجاب، متفق علیه.
(مشکوة المصابیح ۲: ۲۷۳ باب المحرمات)

فی جمیع کتب الفروع﴿۱﴾وهو الموفق

## رضاعی ترور هم د محرماتو نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دوه سکه خویندې دی کشرې خوردمشرې پئ څکلی دی. اوس دمشرې خورلورده او کشرې خور هلک دې ددې دواړونکاح صحیح ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عزیزالرحمٰن بازارکېئ صوابی۱۹ربیع الثانی۱۴۰۲هـ

**جواب:** داجینئ ددې هلک رضاعی تروره چه دمحرماتو نه ده، والمسئله من الواضحات لانه یحرم من الرضاع مایحرم من النسب﴿۲﴾وهو الموفق

## په رضاعت کښې د مقدم او مؤخر اولاد حکم یوشان دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دهندې نومې ښځې دخیټې نه جینکئ هلکان موجود وو. نیزیو هلک مشرناسکه دهغې خاوندنه هم موجودوو. چه دهغه یوهلک پیداشواوپخپله دذکرشوې هندې سره هم یوه ماشوم پیداشو. چه ددې سره هندې پسرپسرذکرشوۀته پئ ورکړه، ددې نه رضاعت ثابت شو. ددې نه پس دهندې بل زوئ یوه لورپیداشوه نوپه دې صورت کښې په مینځ دذکرشوې پسرپسرمشر هغه چه هندې ورته پئ ورکړې وو. اودلورپسرثانی عقدنکاح په رنړا دشریعت کښې صحیح ده، نور

﴿۱﴾ وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعا...... واخوا الرجل عمه واخته عمته الخ.

(فتاویٰ عالمگیریه ۲:۳۴۳ کتاب الرضاع)

﴿۲﴾ (رواه البخاری ۲:۷٦۴ کتاب النکاح، ورواه مسلم ۱:۴٦۷ باب تحریم الرضاعة کتاب الرضاع، ورواه النسائی ٦:۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع)



وضاحت مسئله داده چه درشتې په اعتبارسره ذکرشوې پسرپسراودلور پسرثانی پخپلو کښې دتره رونړه خویندې دی مګرذکرشوی پسرپسردخپل یو نوی ځیګل شوې تره سره دخپلې نیاپئ اوڅکل، ددې وجه نه دصورت مسئولې وضاحت طلب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدوارث......۱۹۷۴ء۱\٦\۵

**الجواب:** چونکه په رضاعت کښې دمقدم اومؤخرحکم یوشان دې، کمافی الخلاصة الفتاوی ٤٤٢:۱وغیرها﴿۱﴾لهذادهندې ټول اولاددې ذکرشوې سړی دپاره رونړه خویندې رضاعی دی اوددې اولاددې ذکرشوې هلک وریرونه او وریرې دی چه دحدیث:یحرم من الرضاع مایحرم من النسب﴿۲﴾اووضاحت دفقهاءکرامو په بنیادباندې حرام دې﴿۳﴾وهو الموفق

## د میرنی رضاعی وراره سره نکاح جائز نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیداوبکرپلار شریک رونړه دی، دپلارنوم ئې خالد حالانکه دزیدیورضاعی رورعمرودې هغه دزید

﴿۱﴾ قال العلامة طاهر بن عبد الرشید: ولو ارضعت امرأة صبیا یحرم علیه من یقدم من اولادها ومن تأخر.

(خلاصة الفتاویٰ ۲:۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

﴿۲﴾ (رواه البخاری ۲:۷٦۴ باب قوله تعالیٰ وامهاتکم اللتی ارضعنکم، ورواه مسلم ۱:۴٦۷ باب تحریم الرضاعة من ماء الفحل، ورواه النسائی ٦:۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ویثبت به وان قل امومیة المرضعة للرضیع ویثبت ابوة زوج مرضعة اذا کان لبنها منه له والا لا کما سیجئ فیحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب رواه الشیخان.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۳۹ باب الرضاع)

د موریئ ځکلی دی، اوس دعمرویوه لورده، ایابکرددې عمرودلورسره نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمودشاه دارالعلوم فیض الاسلام نسته چارسده ۱۴۰۱\۷\٦ھ

**جواب:** که چرته داپئ دخالدنه وی نودلبن الفحل مسئلې په بنیادباندې بکرهم دعمرورضاعی روردې ددې وجه نه دبکردعمرودلورسره نکاح حرامه ده، ځکه چه داجینئ دزیداودبکررضاعی وریره ده، وقال النبي علیه سلام یحرم من الرضاع مایحرم من النسب﴿۱﴾وهوالموفق

## د بکر د پاره د مرضعې هر اولاد سره نکاح ناجائز ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیداوبکریوځائ دزید د موریئ ځکلی دی، اوس بکردزید دمشرې خورلوردکوره اغواکړه، اوددې سره نکاح کول غواړی، ایادانکاح کول جائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمدیونس لنګا کوئې ایبټ آباد......۱۹۷۵ء\۵\۳

**جواب:** دبکردپاره ددې مرضعې د(پئ ځکلووالابنځې) د هراولادسره نکاح کول جائزنه دی کمافی الخلاصه ۲٤٤:۱ ولوارضعت امراة صبیا یحرم علیه من یقدم من اولادهاومن تاخر﴿۲﴾وهٰکذا فی سائرکتب الفتاوی﴿۳﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾(رواه البخاری ۲:۷٦۴ باب قوله تعالیٰ وامهاتکم اللاتی ارضعنکم، ورواه مسلم ۱:۴٦۷ باب تحریم الرضاعة من ماء الفحل، ورواه النسائی ٦:۱۰۰ باب تحریم بنت الاخ من الرضاع)

﴿۲﴾(خلاصة الفتاویٰ ۲:۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

﴿۳﴾وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما...... حتی ان المرضعة لو ولدت من هذا الرجل او غیره قبل هذا......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د پئ ورکونکې والا د ټول اولاد سره د پئ ځکونکی نکاح نشی کولې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مونږ دوه رونړه بهادرخان اوبهادرسیدیو، ځمادماماالورلعلی کنورځمادموریئ ځکلی دی، اودې جینئ ته دپیو ورکولونه لس ورځې پس مورځه دپئونه واړولم، حالانکه ځماروربهادرخان ځمانه دوه نیم کاله مشردې، مطلب دادې چه ما او لعلی کنور یوځائ پئ ځکلی دی، اوس دمشرروربهادرخان کوژدنه دلعلی کنور سره اوشوه، دلته علماءکرام وائی چه دانکاح نشی کیدئ، تاسوصاحبان دفتوٰی په رنړا کښې مونږ خبرکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: بهادرسید چترال........۱۹۷۵ء\۴۱\۲۳

**جواب:** ددې مرضعې (پئ ورکولووالا) هراولادسره ددې جینئ نکاح نشی کیدئ، ازجانب شیرده همه خویش شوند﴿۱﴾وفی الخلاصه ۲٤٤:۱ ولوارضعت امراة صبیایحرم علیه من یقدم من اولادهاومن تاخر﴿۲﴾وهکذافی سائرکتب الفتاوی﴿۳﴾وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) الارضاع او بعده او ارضعت رضیعاً او ولد لهذا الرجل من غیر هذه المرأة قبل هذا الارضاع او بعده او ارضعت امرأة من لبنه رضیعا فالکل اخوة الرضیع واخواته الخ.
(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۴۳ کتاب الرضاع)

﴿۱﴾(شرح الوقایة ۲:٦۷ کتاب الرضاع)

﴿۲﴾(خلاصة الفتاویٰ ۲:۱۲ قبیل الفصل الخامس فی الاکفاء)

﴿۳﴾وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعا حتی ان المرضعة لو ولدت من هذا الرجل او غیره قبل هذا الارضاع او بعده او ارضعت رضیعا او ولد لهذا الرجل من غیر هذه المرأة قبل هذا الارضاع او بعده او ارضعت امرأة من لبنه رضیعا فالکل اخوة الرضیع واخواته الخ.
(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۴۳ کتاب الرضاع)

### د رضاعي پلار د دويمې ښځې لور سره نکاح حرام ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید دیوښځې پئ اوڅکل په دې کښې ددې ښځې یولورهم شریکه وه،دابنځه دبکرښځه ده، دبکردویمه ښځه زاهده ده،ددې لورزیدپاره په نکاح کښې اخستل جائزدی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: تاج محمد.......۱۹۷۴ء/۱۴/۲۰

**جواب:** دبکرددې لورسره هم دزیدنکاح حرامه ده،وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما(الی ان قال)اوولدلهذاالرجل من غیره هذاالمراة قبل هذا الارضاع اوبعده﴿۱﴾وهوالموفق

### د رضاعي خور رور د لاعلمۍ په بنیاد سره د کړې شوې نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه نوازاومقصوده رضاعی رور خوردی،لیکن دلاعلمې په بنیادسره ددوی پخپلوکښې نکاح اوکړې شوه، اوس شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب الله جامع مسجدکوه مری

**جواب:** که چرته دارضاعت مبرهن یامسلم وی نوتفریق به ضروری وی،اود خاوند متارکت یادحاکم تنسیخ نه مخکښې دابنځه (مقصوده) دویم ځای کښې نکاح نشې کولې﴿۲﴾ نیزدابنځه دنفقه یادعصمت دوجه نه په ذریعه

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۴۳ کتاب الرضاع)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله الا بتفریق القاضی لتضمنها حق العبد) فلا بد من القضاء ای ان لم توجد المتارکة لما فی النهر الحاصل ان المذهب عندنا کما قال الزیلعی فی اللعان ان النکاح لا یرتفع بحرمة الرضاع والمصاهرة بل یفسد...... وفی الفاسد لابدمن تفریق القاضی او المتارکة بالقول فی المدخول بها وفی غیرها یکتفی بالمفارقة بالابدان.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۴۸ قبیل کتاب الطلاق)



دمسلمان حاکم تنسیخ دنکاح کولې شی، کمافی الحیله الناجزه﴿۱﴾وهوالموفق

### د واده نه پس رضاعت ثابت کیدلو باندې متارکت ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زینب یوهلک ته پئ ورکړه،بیائې دخپلې لورواده دهغه سره اوکړو،دواده په وخت یادواده نه مخکښې درضاع تذکره اونه شوه بیادواده نه څوکاله پس ددې تذکره اوشوه څه شرعی شهادت موجودنه دې اوس ددې څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: مولاناغلام جلیل صاحب مدرس مدرسه مفتاح العلوم هنګو۱۹۸۲ء/۱۰/۱۱/۷

**جواب:** که چرته ښځه خاوندیاصرف ښځه ددې مرضعې تصدیق کوی نوپه دې خاونددې ښځې پریښودل ضروری دی(کمافی ردالمحتار۲:۵۶۸)﴿۲﴾ وهوالموفق

### د واده نه پس د رضاعت دعویٰ او د انکارمسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیونابالغې جینئ پرورش نیا کړې وو،دې نیاددې واده دخپل یونمسی سره اوکړو،جینئ بالغه شوه بلکه بلوغت باندې هم اته لس کاله تیرشول،جینئ په دویم ځای کښې واده کول اوغوښتل بس لاړه بهانه ئې جوړه کړه چه دې جینئ دنیاپئ څکلی دی،سینه ئې څکلې ده،چه هغه ډیره بوډهې اوزیات عمروالاوه،نیاوفات

---

﴿۱﴾ (حیله ناجزه ۸۶،۱۶۹ للشیخ اشرف علی التهانوی)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: تنبیه: فی الهندیة تزوج امرأة فقالت امرأة ارضعتکما فهو علی اربعة اوجه، ان صدقاها فسد النکاح...... وان کذباها وهی عدلة فالتنزه المفارقة...... وکذالو شهد غیر عدول او امرأتان او رجل وامرأة وان صدقها الرجل وکذبتها فسد النکاح...... وان بالعکس لا یفسد ولها ان تحلفه ویفرق اذا نکل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۴۸ قبیل کتاب الطلاق)

شوه بهرحال په بې فکرې اومجبورې کښې دجینئ دنکاح دپاسه نکاح دبل هلک سره اوتړله،صرف یوه شپه تیره شوه سحرداځوان چه مفرور وو، گرفتار شو اوجیل ته لاړورومبیې ځوان دې لره طلاق نه دې ورکړې اونه ئې طلاق ورکول غوښتل تاسودفتوی په رڼاکښې اوښائې چه درضاعت دعدم ثبوت په صورت کښې سابقه یعنی اولنې نکاح بحاله قائمه ده یانه؟ یاده دې وی چه تراوسه پورې څه جانبدارشهادت تاحال موجودهم نه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیرمحمداکبرپوره پبی نوشهره..... ٢٤\٦\١٩٧٢ء

**جواب:** که چرته شهادت شرعی یعنی دوه سړی یایوسړې دوه ښځې موجودنه وی نودې سره ددې هلک نکاح ددې جینئ سره په خپل حال باقی ده،په شرط ددې چه دې هلک ددې جینئ دنیادسینې نه پئ ځکلوباندې اصرارنه وی کړې اونه دااصرارپه وخت(چه مثلادائې وئیلې وی چه خبره حقیت ده دا صحیح ده،څه ددې نه واپس کیږم نه)نکاح کالعدم شوه اوائنده دپاره نکاح حرامه ده.

وفی الهندیة: الرضاع یظهر باحد الامرین احدهما الاقرار والثانی البینة ولا یقبل فی الرضاع الاشهادة رجلین او رجل وامرأتین (١: ٣٧٠) وفیها ایضا ولو تزوج امرأة ثم قال بعد النکاح هی اختی من الرضاعة او ما اشبهه ثم قال اوهمت لیس الامر کما قلت لا یفرق بینهما استحسانا ولو ثبت علی هٰذا المنطق وقال هو حق کما قلت فرق بینهما.ولو جحد بعد ذلک لا ینفعه جحوده﴿١﴾ وفی ردالمحتار بمعناه (٢: ٥٦٦)﴿٢﴾. وهو الموفق

﴿١﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ١: ٣٤٧ کتاب الرضاع)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی: والرضاع حجته حجة المال وهی شهادة عدلین او عدل وعدلتین، وقال العلامة ابن عابدین: وکذا لو شهد غیر عدول او امرأتان او رجل وامرأة وان صدقها الرجل و کذبتها فسد النکاح...... وان بالعکس لا یفسد ولها ان تحلفه ویفرق اذا نکل.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ٢: ٣٤٨ قبیل کتاب الطلاق)



## د حرمت رضاعت دوجه نه د نکاح، متارکت، مهر، او اولاد وغیره مسائل

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسائل ذیل باره کښې چه هندې دخپلې لور جمیلې سره خپل وراره زیدته پئ ورکړی دی او(١) دجمیلې ددویمې خور رضي سره دزیدنکاح جائزده یانه؟(٢)که چرته جائزنه وی اودغفلت دوجهې نه نکاح شوې وی اودرې ځلوربچی هم پیداشوې وی نواوس تفریق واجب دې یانه؟(٣)که چرته تفریق واجب وی نودې ښځې(رضې) ته مهرورکول واجب دی یانه؟(٤)که چرته دتفریق نه پس رضیه غواړی چه دخپلوبچوسره یوځائ د زیدپه کوراوسیږم نودشریعت په رڼاکښې څنگه ده؟ دمهرنه بغیرهغه سونا چاندی کالی وغیره چه زیدرضې ته ورکړی دی هغه واپس اخستلې شی؟(٦) د بچو نه چه کوم ژوندی دی په دوې باندې دمورحق دې یاپلارددوی حقدار دې؟(٧) ایا په دې بچوباندې دولدالزنااطلاق جائزدې یانه؟

**تفصیل:** هندې دزیددرضاعت متعلق پخپله اقرارکړې دې چه زیدمایوځل دپئ ورکولوپه غرض باندې غیږ کښې کښېنولولیکن ماته دایادنه دی چه ده پئ څکلی دی یانه،دزیدمنکوحه رضیه هم اقرارکوی چه تاته څلوروپئ درکړې دی ماددې نه اوریدلی دی دزیدمورهم اقرارکوی چه څماپه سینه کښې دپیودنشت والی دوجه نه دوه درې ځل هندې زیدته پئ ورکړی دی ددې نه علاوه دژیدپلارهم وائی چه څماترورېوځل هندې ته وئیلی ووچه تا خو زیدته پئ ورکړی دی،ایادیوبل سره رشته داری نشی کولې؟ بینوا توجروا

المستفتی:قاری نورالله دارالعلوم عربیه اسلامیه رستم مردان، یکم فروری ١٩٨٤ء

**جواب:**(١) بشرط ثبوت رضاع،زیدباندې دمرضعې(هنده) ټولې لوریانې حرامې دی﴿١﴾

﴿١﴾ وفی الهندیة: یحرم علی الرضیع ابواه من الرضاع واصولهما وفروعهما من النسب والرضاع جمیعا.

(فتاویٰ عالمگیریة ١: ٣٤٣ کتاب الرضاع)

(۲) بشرط ثبوت رضاع متارکت اومفارقت واجب اوضروري دي. (۳) د دخول دوجه نه مهرورکول ضروري دی﴿۱﴾- (۴) په جداکمره کښې اوسیدلې شی، (۵) عاریت واپس کیدلې شی نه تملیک (۶) ددواړوحق اولادباندې موجوددې، (۷) دشبه عقددوجه نه داحلالی دې حرامی نه دې﴿۲﴾

**نوټ:** کومه پورې چه پئ ځکل یقینی نه وی نوحرمت رضاعت ثابت کیدلې نشی (اشباه والنظائر)﴿۳﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: تزوج امرأة فقالت امرأة ارضعتكما فهو على اربعة اوجه ان صدقاها فسد النكاح ولا مهر ان لم يدخل وان كذباها وهى عدلة فالتنزه المفارقة والافضل له اعطاء نصف المهر لو لم يدخل والافضل لها ان لا تأخذ شيئا ولو دخل فالافضل دفع كماله والنفقة والسكنى والافضل لها اخذ الاقل من مهر المثل والمسمى لا النفقة والسكنى ويسعه المقام معها وكذا لو شهد غير عدول او امرأتان او رجل وامرأة وان صدقها الرجل وكذبتها فسد النكاح والمهر بحاله وان بالعكس لا يفسد ولها ان تحلفه ويفرق اذا نكل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۴۸ تنبيه، قبيل كتاب الطلاق)

﴿۲﴾ وفى الهندية: رجل مسلم تزوج بمحارمه فجئن باولاد يثبت نسب الاولاد منه عند ابى حنيفة رحمه الله.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۴۰ الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجيم المصرى: لو ادخلت المرأة حلمة ثديها فى فم الرضيع ولا يدرى ادخل اللبن فى حلقه ام لا لا يحرم النكاح لان فى المانع شكا كذا فى الولولجية.

(الاشباه والنظائر ۶۶ القاعدة الثالثة اليقين لا يزول بالشك)

....



# باب حرمة المصاهرة

**مصاهرت کښې حرمت همیشه د پاره دې تجدید د نکاح نه څه نه جوړیږي**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی د خپلې ښځې د مورسره مس بالشهوت اوشو آیا داښځه خاوندباندې بغیرد تفریق دقاضی یا د بعد المتارکت یا بعدانقضاء العدت نه تجدیدد نکاح سره ددې خاوند دوباره ښځه جوړیدلې شی یانه؟ ځکه چه ددې جزئیاتونه معلومیږی چه تجدید د نکاح سره صحت کیدلې شی عبارت دادې، الحرمة المصاهرة لايرتفع النكاح حتى لايحل لهاالتزوج بآخرالا بعد المتاركة وانقضاء العدة والوطى بهالايكون زنا (شامى ۲:۲۸۳) بينوا توجروا

المستفتی: مولانامحمد شریف بیسک ګدون صوابی....یکم محرم۱۳۹۷ھ

**جواب:** کوم سړی چه دخپلې خواښې سره جماع وغیره اوکړی نوپه ده باندې خپله ښځه همیشه دپاره حرامیږی، کمافی شرح التنویر: قبل ام امراة حرمت عليه امراة مالم يظهراخ﴿۱﴾ فقهاءکرام باب المحرمات کښې چه کوم محرمات ذکرکوی چه کوم همیشه دپاره حرام وی اوکوم عبارت چه تاسونقل کړې دې په دې کښې مسطوردې چه نکاح مرتفع کیږی نه ځنګه چه ظهار او لعان سره مرتفع کیږی نه دامرادنه دې چه تجدیدد نکاح سره به کارجوړ شی، وهوالموفق

**د حرمت مصاهرت د اثبات د پاره د ګواهانو نصاب**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ایادحرمت مصاهرت د

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۰۶ فصل فى المحرمات)

اثبات دپاره دزناپه شان څلورګواهان ضروری دی یادوه ګواهان کافی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی:سیدرحیم خان هنګو

**الجواب:** دزنانه علاوه دنورودعاوی اثبات دددووسړو یاد یو سړی اود دوو ښځو ګواهی سره کافی ده پس دحرمت مصاهرت داثبات دپاره هم د دوو سړو یا د یو سړی او دوو ښځو ګواهی کیدلې شی.

**وفی الدرالمختار: ولغیرها من الحقوق سواء کان الحق مالا او غیره کنکاح وطلاق ووکالة...... رجلان او رجل وامرأتان (۴:۵۱۴)﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په حرمت مصاهرت کښې دشهادت نه کیدلوپه صورت کښې دارو مدار د خاوند په تسلیم او تصدیق باندې دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی ښځه اوساس دواړه په یوکټ باندې اوده ؤواوس ساس لره ښځې ګنړلوسره ښکل کړله اوپه خپو ئې زور ورکړو،اوس ساس په ثبوت اوخاوندپه انکاراوعدمې ثبوت باندې قسم خوری اوس به داچاقول معتبروی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمداسلم ساهیوال......۲۹\ذی قعده۱۳۹۷ه

**جواب:** په ذکرشوې صورت کښې دباقاعده شهادت نه موجودکیدلوپه وجه د حرمت دارومدار د خاوندپه تسلیم اوتصدیق باندې به وی.

**کمافی ردالمحتار ۲:۳۸۵ وعلی هذا ینبغی ان یقال فی مسه ایاها لا تحرم علی ابیه وابنه الا ان یصدقاه او یغلب علی ظنهما صدقه﴿۲﴾ وبمعناه فی الهندیة﴿۳﴾ فلیراجع. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴:۴۱۳ کتاب الشهادات)**

**﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۴ فصل فی المحرمات)**

**﴿۳﴾وفی الهندیة: رجل قبل امرأة ابیه بشهوة او قبل الاب......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**



## په خوب خیالاتو او غلط تصوراتو سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه په فقه کښې لیکلې شوې دی چه زناسره حرمت مصاهرت ثابت کیږی یادواعی زناسره هم،که چرته داڅیزونه په خوب یاخیالاتو یاتصوراتو کښې اوشی نوحرمت به ثابت وی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: جلال احمد مردان......۲۹\جون۱۹۷۵ء

**جواب:** داافعال یاتعلقات چه کله په خوب کښې یاپه خیال کښې یاپه تصور کښې وی﴿۱﴾ نودیوامام په نزدموجب حرمت نشته دې چاهم دې لره په محرماتو کښې شمارکړی نه دی.وهوالموفق

## احتراماً د یوې ښځې سره په لاس میلاوهلو باندې حرمت مصاهرت نه راځی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمونږ او د ماما کور والو په مینځ کښې ډیروخت نه داروایت رارروان دې چه کله څه یا ځما رور د ماما کورته لاړشی نودماماد ښځې مامی اوتروروغیره چه ځمونږنه په عمر کښې زیاتې دی نوموږ احتراماً اوتعظیماً څنګه چه سړی په خپلو کښې په یولاس سره مصافحه کوی موږ هم دوی ته لاس ورمخکښې کړواوهغوی ځمونږ لاس ښکل کړی،اوس ځماکوژدنه دماماد لورسره کیدلووالاده نوما

---

**(بقیه حاشیه) امرأة ابنه بشهوة وهی مکرهة وانکر الزوج ان یکون بشهوة فالقول قول الزوج وان صدقه الزوج وقعت الفرقة.**

**(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۷۶ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)**

**﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ ان الله تجاوز عن امتی ما وسوست به صدورها ما لم تعمل به او تتکلم، متفق علیه.**

**(مشکواة المصابیح ۱:۱۹ باب فی الوسوسة الفصل الاول)**

اوریدلی دی چه دغیرمحرم لاس خپې وغیره خکلول قائم مقام دزنادې چه کله دې کښې شهوت وی حالانکه څه ددې نه مبرایم نوایاځمادانکاح صحیح ده؟نیز امورد قائم مقام زنادارتکاب خواکه هغه عمداوی یاپه خولې سره وی یا دهوکې سره وی یامجبورې سره دغم په حالت کښې وی یاپه نشه کښې ددې ټولوڅه حکم دې؟اودقائم مقام زناوضاحت اوکړئ؟بینوا توجروا

المستفتی: ایچ اې طورومردان......۱۹۷۵ء۱۰۱۱۲۵

**جواب:** واضحه دې وی چه ستاسودپاره ددې ماماڵورسره په نکاح کولو کښې ممانعت موجودنه دې ځکه چه محرم هغه چوپول اوخکلول دی چه هغه په طوردشهوت وی،اوستاسوپه معامله کښې داامورداحترام متحقق دی شهوت نه مسلم دې اونه مبرهن دې،نه متیقن دې اونه مظنون دې،په شک اووهم سره حرمت نه ثابت کیږی اودمطلوبه امروضاحت دادې چه مس کول اوخکلول کله چه شهوت سره وی اوپه دې دوران کښې انزال هم اوشی نودابه قائم مقام دجماع نه وی اوموجب حرمت نه کیږی.﴿۱﴾وهوالموفق

## د سخر ښځه او لور په یو نکاح کښې جمع کول جائزدی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دسخردویمه ښځه چه هغه دخپلې ښځې حقیقی مورنه وی بلکه ناسکه موروی دسخردوفات نه پس ددې منکوحې په موجودګئ کښې ددې ناسکه مورسره نکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی:حافظ محمدنوازسرکی جیکب آبادسندھ......۱۹۷۶ء۱۰۱۱۲۰

**جواب:** داجمع کول جائزدی، کمافی شرح التنویر :فجازالجمع بین امراة وبنت

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی: قبل ام امرأته حرمت علیه امرأته مالم یظهر عدم الشهوة ولو علی الفم کما فهمه فی الذخیرة وفی المس لا تحرم مالم تعلم الشهوة لان الاصل فی التقبیل الشهوة بخلاف المس.

الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۳۰۶،۳۰۷فصل فی المحرمات)



زوجها﴿۱﴾وبمعناه فی الهدایه والبحروالفتح وغیره ذلک﴿۲﴾.وهوالموفق

## د شهوت نه کیدلوپه صورت کښې د مس اومعانقه سره د مصاهرت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دوه غیرمحرمې ښځې په خپلوکښې خوله وهلوباندې راغلې څه هلته موجودوم تماشه مې کوله په دې وخت کښې په ماشهوت غالب شو،څه وخت پس داووه ښځې په خپلو کښې په وهلوباندې شروع شوې،په دې وخت کښې زه اوددې دووښځونه د یوې زوئ دخلاصی دپاره ورغلوپه دې وخت کښې ځماپه ذهن کښې څه رانغلل البته ځماپتون دداړوښځوسره لګیدلې وو،چه ماپه مینځ کښې صلح کوله اوماته داهم معلومه نه ده چه په دغه وخت کښې ځماشهوت وو یانه،دویمه واقعه داده چه ځماپه کورکښې څوک وفات شول،په دې دوؤ ښځوکښې یوه ځماکورته راغله اوپه اظهارغم کښې ئې ماسره غاړه ملاؤ کړه،یعنی په خپلوکښې مومعانقه اوکړه چونکه دادغم موقع وه،ددې وجه نه څه دشهوت نه لرې ووم،اوداماته معلومه نه ده،چه په دغه وخت کښې داپه شهوت کښې وه یانه،اوس ددې نه یوه جینئ ده اوداړوښځودیته پئ هم ورکړې دی ددې سره ځمانکاح کیدلې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګ،ر،م،کوهاټ.......۱۹۲۹ء۱۷۱۱۲

**جواب:** چونکه داسړې چه ده مس اومعانقه کړې ده دتحقق شهوت اقرارنه دې کړې،اوپه ظاهره دعدمې شهوت علامات موجوددی،لهذاداسړې ددې جینئ سره نکاح کولې شی چونکه معامله داالله تعالی سره ده.لهٰذا دپوره اطمینان نه پس دې نکاح اوکړی. فی الدر المختار: قبل ام امراته...

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۳۰۹ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ویجوز بین امرأة وبنت زوجها فان المرأة لو فرضت ذکراً حلت له تلک البنت بخلاف العکس الخ.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱ :۲۷۷ القسم الرابع المحرمات بالجمع)

حرمت علیه امرأته ما لم یظهر عدم الشهوة......... او المعانقة کالتقبیل، وقال الشامی: وفی الفتح والحاصل انه اذا اقر بالنظر وانکر الشهوة صدق بلا خلاف وفی المباشرة لا یصدق بلاخلاف فیما اعلم وفی التقبیل اختلف فیه قیل لا یصدق لانه لا یکون الا عن شهوة غالباً فلا یقبل الا ان یظهر خلافه بالانتشار ونحوه وقیل یقبل وقیل بالتفصیل بین کونه علی الرأس والجبهة والخد فیصدق او علی الفم فلا والارجح هذا، الا ان الخد یتراءی الحاقه بالفم انتهیٰ باختصار یسیر ﴿۱﴾، وقلت: قد علمت ان المعانقة کالتقبیل فافهم. وهو الموفق

## په مس اومعانقه کښې د انزال په صورت کښې حرمت مصاهرت واقع کیږی نه

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځه دماماسره اوسیږم او مامی ځماسره دخپلوبچوپه شان محبت کوی، یوه ورځ مابشام ځماددې سره جګړه اوشوه ځه ناراض کیدلوسره کمرې ته لاړم اوده شوم، څه وخت پس دا راغله ځه ئې اوچت کړم اوپه تندی اومخ باندې ئې خکل کړم، مادموږپه شان ددې په ګردن کښې لاس ورکړواومامی ځه دخپلې سینې سره اولګولم، ما د محبت دوجه نه ددې سینه خکل کړه چه په دې سره ځماانزال اوشوځه بې حده پریشانه شوم کومه غلطه اراده نه وه، په دویمه ورځ دماماپه موجودګئ کښې مې مامی اووئیل چه زوئ پرون ځمانه خفه شوې وو، اوبیائې ځماتندې خکل کړو اوغاړه ئې راکړه چه ته خوځمازوئ ئی، په دې دوران کښې بیا ځما انزال اوشو، په دویمه ورځ ماما می ته اووئیل چه ته ماسره مینه مه کوه څکه چه معامله داسې ده، هغه ډیره پریشانه شوه اوس ماماغواړی چه ځه دده

﴿۱﴾ (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۶،۳۰۷،۳۰۸ فصل فی المحرمات)



دجینئ سره واده کوم مادیومولوی صاحب نه پوښتنه اوکړه نوهغه اووئیل چه دانکاح نشی کیدلې بل مولوی صاحب اووئیل چه کیدلې شی، په مهربانې سره جواب راکړئ چه ددې سره حرمت مصاهرت واقع کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......... ۱۵صفر المظفر ۱۴۰۳ه

**جواب:** که چرته ددې مس اومعانقې په وخت ستاانزال شوې وی نوحرمت مصاهرت نه واقع کیږی. په دې شرط چه هغه مامی په شهوت کښې مبتلاشوې نه وی، کمافی شرح التنویرعلی هامش الشامیه ۲: ۳۸۶ فلوانزل مع مس اونظر فلاحرمة به یفتی ابن کمال وغیره ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د خاوند د نیکه په آله تناسل باندې د نظر پریوتلو او خپو زور کولو سره د مصاهرت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمابنځې ماته اووئیل چه ځه دکوټې په چت اوختلم چه ستانیکه رفع حاجت کولو، ځمانظراچانک دهغه په عضوتناسل باندې پریوتلوډیرې شرمندګئ سره ئې دا اظهار اوکړو چه ګویا ځما خیال دې طرفته نه وو، ځماداستفسارنه معلومیږی چه آله تناسل په انتشارکښې نه وو، یعنی شهوت نه وو، بهرحال ځمادبنځې شهوت یا ځما دنیکه دشهوت سره متعلق ځه هیڅ تپوس نشم کولې، اوپه شرعی طور باندې دتپوس څه طریقه ده؟ که څه طریقه نه وی نوبیائې تپوس نه کوم، البته ځمادنیکه عمرتقریباً اتیاکاله دې ددې نه علاوه ځماپه ذهن کښې دا خبره ده، چه ځمابنځه ددې بوډانیکه بعض وخت په خپو هم زورکوی ایامنع کول پکار دی؟ اوپه صورت مسئوله کښې دحرمت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.....وزارت تجارت اسلام آباد..... ۲۴،۱۱،۱۰،۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکه دنظراودخپوزورکولوپه صورت کښې شهوت نه مسلم دې او نه

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۴ فصل فی المحرمات)

مبرهن دي نه متيقن دي او نه مظنون دي، البته موهوم دي او مشکوک دي لهذا په صورت مسئوله کښې د حرمت مصاهرت څه خطره نشته ﴿۱﴾ او د شهوت متعلق تفتيش کول نه ممنوع دی او مطلوب دی، لهذا تا سو تفتيش سره دوسوسو دروازه مه کهلاوئ او داخپې زور کول حرام دی آئنده د پاره ئې پرې بند کړئ ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د ښکلولو په وخت انزال نه وی شوې نو حرمت مصاهرت ثابت دي

**سوال:** څه فرمائی علمائې دين دي مسئلې باره کښې چه يو سړی يوه ښځه په غير کښې اونيوله او ښکل ئې کړه او شپږ مياشتې تيريدلو نه پس مذکوره سړی د دغې ښځې لور سره نکاح اوکړله، آيا دا نکاح جائزده؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالودود متعلم دار العلوم حقانيه ۱۱\۱۱ ذی الحجة ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که د ښکلونکی او د دې ښځې دواړو انزال نه وی شوې تو په دې سړی

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله والعبرة للشهوة عند المس والنظر) قال فی الفتح وقوله بشهوة فی موضع الحال فيفيد اشتراط الشهوة حال المس فلو مس بغير شهوة ثم اشتهیٰ عن ذلک المس لا تحرم عليه وكذلک فی النظر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۴ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ وفی الهندية: وما حل النظر اليه حل مسه ونظره وغمزه من غير حائل ولكن انما يباح النظر اذا كان يأمن على نفسه الشهوة فاما اذا كان يخاف على نفسه الشهوة فلا يحل له النظر وكذلک المس انما يباح له اذا امن على نفسه وعليها الشهوة واما اذا خاف على نفسه او عليها الشهوة فلا يحل المس له ولا يحل ان ينظر الى بطنها او الى ظهرها ولا الى جنبها ولا يمس شيئا من ذلک كذا فی المحيط.

(فتاویٰ عالمگيريه ۵: ۳۲۷ الباب الثامن فيما يحل للرجل الخ)



باندې د دغې ښځې ټوله لونړه حرام دی ﴿۱﴾ وهو الموفق

## لمس سره، نوکارې لګولو او ښکلولو سره، غاړه ورکولو وغيره سره د حرمت مصاهرت او د غير مذهب د اختيارولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين مسائل ذيل باره کښې چه:

(۱) غير محرمې ته لاس لګولو سره حرمت مصاهرت لازم کيږی؟

(۲) د لمس بالشهوة څه تعريف دې دا موجب حرمت دې؟

(۳) مطلق مس سره حرمت کيږی يا څه قيد بغير د شهوت شته دې لکه نوکارې لګول، غاړه ورکول يا ښکلول؟

(۴) که چرته مصافحه د شهوت سره وی نو موجب حرمت ده؟

(۵) که چرته ښځه په نوکونو سره او ګروې نو بيا هم حرمت راځی؟

(۶) که چرته يو حنفی مسلک صرف په دې يو مسئله کښې په مذهب شافعی باندې عمل اوکړی نو آيا دا صحيح دې يا که د ګناه مرتکب به وی؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا فضل قادر مدرسه حبيبه ترنګزئ چارسده ۲۲\۱۱ ذی قعده ۱۳۸۹ھ

**جواب:** (۱) لازم کيږی کله چه شهوت سره وی (۲) د مس نه مراد ده بلا حائل لاس لګول دی او د داسې حائل سره چه هغه د حرارت د وجدان نه مانع نه وی او د شهوت نه مراد دادې چه آله حرکت شروع کړی يا حرکت کښې زياتوالې راشی او دغسې د ښځې زړه حرکت شروع کړی يا حرکت زيات شی (۳) مس کله چه شهوت سره وی موجب حرمت دې اګر چه نوکارې لګول

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: واصل ممسوسته بشهوة...... هذا اذا لم ينزل فلو انزل مع مس اونظر فلا حرمة به يفتیٰ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۴ فصل فی المحرمات)

اوغاړه ورکول او ښکلول نه وی شوې (۴) لازم به وی (۵) که چرته شهوت سره وی«۱»-(۲)اتباع هوی ده اوحرام دې اودخادثې دراتلونه مخکښې دا مذهب اختیاروُل اهل دپاره حرام نه دی لیکن اهل چرته دې«۲» وهوالموفق

## فرج داخل ته شهوت سره کتل موجب حرمت دې نه چه مطلق نظر د شهوت

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دخپلې ښځې مورته غلط نظرسره اوکتل، ایاپه دې سړی باندې به خپله ښځه حرامه وی؟ بعض خلقونه مې اوریدلی دی چه فرج داخل ته کتلوسره حرمت واقع کیږی آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حمدالله...... ۱۹۸۲ء۱۸/۳

**الجواب:** فرج داخل ته دشهوت په نظرسره کتل موجب حرمت مصاهرت دې نه چه مطلق نظرشهوت، کمافی الهندیه ۲۹۱:۱ والمعتبرالنظرالی الفرج الداخل هکذا فی الهدایه«۳» وهوالموفق

---

«۱»قال العلامة الحصکفی: واصل ممسوستة بشهوة ولو لشعر علی الرأس بحائل لا بمنع الحرارة......والعبرة للشهوة عند المس والنظر لا بعدهما وحدها فیهما تحرک آلته او زیادته به یفتی وفی امرأة ونحو شیخ کبیر تحرک قلبه او زیادته الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۰۴ فصل فی المحرمات)

«۲»قال العلامة ابن عابدین: العالم الذی یعرف معنیاالنصوص والاخبار وهو من اهل الدرایة یجوز له ان یعمل علیها وان کان مخالفا لمذهبه، قلت: لکن هذا فی غیر موضع الضرورة..... لو افتیٰ مفت بشیٴ من هذه الاقوال فی مواضع الضرورة طلبا للتیسیر کان حسناً.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۵۵ مقدمه)

«۳» (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۷۴ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)



## د سړی سړی لره په شهوت سره مَس کول یا لواطت. د حرمت مصاهرت موجب نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړې بل سړې په حالت شهوت کښې مَس کړی یاددې نه هم مخکښې لاړشی ددې نه پس دا سړې ماس ددې دویم سړی دخواهرسره نکاح اوکړی، ایادانکاح به جائز وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمودالحسن انصاری شالدره کوئټه...... ۱۹۹۱ء۱۵/۲

**الجواب:** چون مردې مرددیگررامس کندیاباولواطت کندموجب حرمت مصاهرت نیست، واین ماس ولواطت کنندبه دختروهمشیره ممسوس و موطوء نکاح کرده مې شود، کمافی ردالمحتار ۳۸۷:۲ باب المحرمات عن الولواجیة رجل اتی رجلاله ان یتزوج ابنته«۱» وهوالموفق

## د نابالغ هلک سره زنا کول د حرمت مصاهرت موجب نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوښځې دسخت خواهش په وجه باندې دیونابالغ هلک سره زنااوکړه، اوس داښځه دخپلې لور نکاح ددې هلک سره کول غواړی ایادحرمت مصاهرت دوجه نه دانکاح ناجائزنه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: م،ش،خ بټاله هزاره...... ۱۹۷۴ء۱۵/۱۱

**جواب:** که چرته داهلک نابالغ وی اومراهق نه وی نو بشرط صدق وثبوت ددې دواړونکاح جائزده، کمافی الدرالمختار ۳۸۹:۲ فلوجامع غیرمراهق زوجة ابیه لم تحرم«۲» وهوالموفق

---

«۱» (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۵ فصل فی المحرمات)

«۲» (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۰۶ فصل فی المحرمات)

## په غلطئ کښې د خواښې څېو سره لاس لګولو سره د ښځې د حرمت او د عدم حرمت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مثلاً زید د شپې پاسیدو، چه خپله ښځه خپل ځان ته راولی چه د خپلې مور سره په یو کټ باندې په دې کمره کښې اوده وه. لیکن په ځائ د ښځې دده لاس د خواښې د څېو سره اولګیدو. خواښې پوهه شوه او خپلې خپې ئې راغونډې کړې. بیا زید په لنګه باندې لاس وهلو. خواښې مجبوره شوه او خپله لورئې دده سره اولیګله. د دې واقعې تذکره خواښې خپل خاوند ته اوکړه. تقریباً دوه نیم کاله وخت تیرید ولو والادې، چه مور پلار خپله لور کورته راوسته د خاوند کورته ئې د هغه سره نه پریږدی حالانکه خاوند هغه کورته د بوتلو د اصرار کوی، او په هغه شپه چه څه شوې دی د هغې نه انکار کوی، اوس شرعی حکم د دې څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد شفیع ضلع ساهیوال...... ۱۹۷۷ء ۲۱۸۱

**الجواب:** ترڅو پورې چه شهوت عندالمس (د آله تناسل حرکت کول یا په حرکت کښې زیات والې راتلل) مسلّم یا مبرهن نه وی نو تر هغه وخته پورې د حرمت مصاهرت حکم او فتوی نشی ورکولې، کمافی شرح التنویر: وحدها فیهما تحرک آلته وزیادته به یفتی، وفیه ایضا: وفی المس لاتحرم مالم تعلم الشهوة (باب المحرمات)﴿۱﴾ وهوالموفق

## د مزنیې د خورځې سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید څه وخت کښې د هندې سره زنا بالجماع کړې وه. اوس دده د پاره د هندې خورځې سره عقد نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا یعقوب جنډ ډی آی خان...... ۱۴۰۱۸۱۲۲ه

﴿۱﴾ (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۴، ۳۰۷ فصل فی المحرمات)



**الجواب:** چونکه داخورځه د اصولو او فروع نه نه ده. لهذا دې سره د دې زانی نکاح جائزده. د حرمت مصاهرت نه حرمات اربعه مراد دی دې سره د مسئول عنها (خورځه) خارج ده. کمافی ردالمحتار ۳: ۲۳ (طبع مصطفی البابی) اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع.... وتقیده بالحرمات الاربع مخرج لماعداها﴿۱﴾ او هرکله چه د مزنیې د خور سره نکاح جائزده نو د خورځې سره به ئې ضرور جائز وی. صرح به فی الدرالمختار: وطی اخت امرآة لاتحرم علیه امرأته﴿۲﴾ وهوالموفق

## د پلار د زوئ د ښځې سره د زنا په صورت کښې ښځه په زوئ باندې حرامیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د خپلې اینګور سره زنا اوکړه. لیکن دا اینګور د دې ذکرشوې سړی وریره هم ده. اوس سوال دادې چه دې سره د دې سړی ښځه حرامه کیږی یا نه؟ او دا اینګور دې هلک د پاره جائز به وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ا.د. ایبټ آباد هزاره......

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت تحریربالا په دې زانی باندې خپله ښځه حرامه نه ده. لانه غیرالمحرمات الاربع کمافی ردالمحتار ۲: ۳۸۴﴿۱﴾ البته د دې زانی په زوئ باندې دده دا ښځه حرامه ده. وهوالموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۳ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۵ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال فی البحر اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی وفروعه نسبا ورضاعاً وحرمة اصولها وفروعها علی الزانی نسبا ورضاعا کما فی الوطء الحلال ویحل لاصول الزانی وفروعه اصول المزنی بها وفروعها.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۳ فصل فی المحرمات)

## د ښځې د وريرې سره زنا کول د حرمت مصاهرت موجب نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې ښځې د وریرې سره زنااوکړه،ایادې سره حرمت مصاهرت ثابت کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: لقمان شاه آفریدی

**الجواب:** حرمت مصاهرت په اصول اوفروع کښې ساری شوې دی نه په ماوراء کښې، کماصرحوابه ونظیره مافی شرح التنویر: وفی الخلاصه وطی اخت امراة لاتحرم علیه امراة (هامش ردالمحتار ۲:۳۸۶)﴿۱﴾ وهو الموفق

## خوابښې سره د زنا کولو د اقرار نه پس انکار قبول نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دلته دواقعه مخکښې راغلې ده چه یو سړی دخپلې ښځې دمورسره زنااوکړه،بیادکلی دجرګې په مخامخ ئې اقراراوکړوچه آومادخپلې خوابښې سره زناکړې ده،لیکن یوڅو ورځې پس دې منکرشوایاپه دې سړی باندې خپله ښځه په دې صورت کښې حلال کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اراکین جرګه مرزا اټک......۲۰۱۳۱ء۱۹۷۹

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت یومرتبه اقرارکولوسره (دجرګې په مخکښې) اوس دده انکارقابل قبول نه دې په ده باندې ښځه حرامه شوې ده،جرګه دې دده دانکارتصدیق نه کوی.فی الدرالمختار ۲:۳۹۰ وفی الخلاصه:قیل له مافعلت بام امراتک فقال جامعتها تثبت الحرمة ولایصدق انه کذب ولو هازلاً﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۰۵ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۰۸ فصل فی المحرمات)



## د خاوند د زوئ سره ناجائز تعلقات موجب د حرمتِ مصاهرت دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمابښځه انتهائ ذلیل حرکات کوی ماته دخپل حیض دوینې سره لیکلی شوی تعویذات جادوکړې شوې راکوی دیوسړی اودهغه دزوئ سره ئې دشپږوکالونه ناجائزتعلقات قائم کړې دی،اوس ئې ځمادمشرزوئ سره هم ناجائزتعلقات قائم کړی دی، دکلی ټول خلق هم ددې خبرونه هم ښه خبر دی، ایادابښځه په مابانديې حرامه ده؟ بینواوجروا

المستفتی: م،ر،اسلام آبادراولپنډی

**الجواب:** بشرط صدق مستفتی دابښځه خاوندباندې همیشه دپاره حرامه ده،لان حرمة المصاهره تثبت بالزنایضا﴿۱﴾ حکومت وخت باندې ضروری دی چه دتحقیق نه پس دې ته سزاورکړی ګنی عام مسلمانانوباندې ضروری ده چه ددې ښځې سره هرقسمه تعلقات ختم کړی﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وحرم ایضا بالصهریة اصل مزنیته، قال فی البحر اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی وفروعه نسبا ورضاعا وحرمة اصولها وفروعها علی الزانی نسبا ورضاعا کما فی الوطء الحلال ویحل لاصول الزانی وفروعه اصول المزنی بها وفروعها الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۳ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: اجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته ما یفسد علیه دینه او یدخل مضرة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده ورب صرم جمیل خیر من مخالطة تؤذیه ...... ان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مر الاوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع الی الحق.

(مرقاة المفاتیح ۸:۷۵۹ بابماینهی عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

## د مور او لور سره د زنا کولو والا زانی د دغه لورسره نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمایودوست ته دا مسئله مخې ته راغله چه دده دیوښځې سره ناجائزتعلقات وو.بیائې دده ښځې دلورسره هم تعلقات قائم کړه،روستودې ښځې خاوندته پته اولګیده نورخلق هم خبرشو.ښځې ددنیاوی شرم دپټولورپاره دخپلې لورنکاح دده سړی سره اوکړه.ایادانکاح جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدنظیف ملاکنډ ایجنسی

**الجواب:** داجینئ په دې سړی باندې حرامه ده.فی الدرالمختار:وحرم ایضا بالصهریة اصل مزنیة وفروعهن مختصرا﴿۱﴾وبمعناه فی جمیع کتب الفروع﴿۲﴾ وهوالموفق

## د خوابنې سره په جماع کولو باندې حرمت مصاهرت ثابت کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دخپلې ښځې دمورسره یعنی دخوابنې سره جماع اوکړه په قصد سره یاخطاسره.ایاپه دې سړی باندې خپله ښځه حرامه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل اکبرچترالی حقانی........ ۱۹۷۰ء۱۴۱\۲۹

**الجواب:** صورت مسئوله کښې په دې زانی خپله ښځه حرامه شوې ده،لیکن نکاح پخپل حال باندې باقی ده لهذادې سړی باندې ضروری ده چه دا ښځه متروکه کړی.

**فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۸۴: وحرم ایضا بالصهریة اصل مزنیته (الی ان قال) وفروعهن (وقال....**

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۳ فصل فی المحرمات)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیة: فمن زنی بامرأة حرمت علیه امها وان علت وابنتها وان سفلت وکذا تحرم المزنی بها علی آباء الزانی واجداده وان علوا وابناء ه وان سفلوا کذا فی فتح القدیر.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۴ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)**



**بعد اسطر) وبحرمة المصاهرة لا یرتفع النکاح حتی لا یحل لها التزوج بآخر الابعد المتارکة وانقضاء العدة،**

بلکه تقبیل سره هم داحرمت راځی،قال فی الدرالمختار:قبل ام امراة حرمت علیه امراة(مختصرا)﴿۱﴾وهوالموفق

## کله چه خاوند د پلارسره د زنا تصدیق اونه کړی نو حرمت نشته

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوشل کلنه جینئ ده دې پخپل اویاکلن سخرباندې دزناتهمت اولګولو،چه دهغې څه ثبوت او شهادت نشته دې،نیزمعلومه شوې ده چه دخپلې ځانی معاملې دوجه نه دا بهتان لګولې شوې دې،دکوشش باوجودڅه شهادت لاس ته رانغلوجرګې والو دخسرنه پوښتنه اوکړه هغه حلفیه بیان ورکولوسره اووئیل چه په ما باندې ددروغوبهتان لګولې شوې دې.دزوئ ښځه خودخپلې لورپشان وی حالانکه خاوندهم اووئیل چه ځماپلارګنهګارنه دې.هغه اویاکالوته نزدې دې داځنګه کیدلې شی،اوس دشریعت څه فیصله ده؟بینوا توجروا

المستفتی: محمدعزیزخان کوه مری........ ۱۹۷۰ء۱۴۱\۱۱

**الجواب:** چونکه خاوند تصدیق نه دې کړې،لهذاخاوندباندې ښځه نه حرامیږی، لمافی الردالمختار۲: ۳۸۵ وعلی هذاینبغی ان یقال فی مسه ایاها لاتحرم علی ابیه وابنه الاان یصدقاه اویغلب علی ظنهماصدقه﴿۲﴾وهوالموفق

## د ښځې په خپل سخر باندې د زنا دعوی او د خاوند انکار

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دحسیب ښځه چه د

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۳، ۳۰۶، ۳۰۷ فصل فی المحرمات)**

**﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۴ قوله واصل ماسة فصل فی المحرمات)**

حسیب دپلاردزمان ګل وریره هم ده، یوه ورځ زمان ګل اوداجینۍ د لرګو د کټکولو دپاره غره ته لاړل، دمازیګرپه وخت واپس راغلل اولرګی هم ځان سره راوړل، دماښام په وخت دحسیب ښځه دناراضګۍ په صورت کښې مور کره لاړه، دري ورځې پس ئې مورته اووئیل چه ځه دده کورته نځم ځکه چه زمان ګل ماسره زناکړې ده، حالانکه دخاوند حسیب خبره داده چه دي ماته دومره اووئیل چه ستاپلارماسره داسې حرکات شروع کړی دی ددې نه ظاهره شوه چه دده اراده ښه نه وه، نیزپه آخره کښې ئې خپل خاوندته یومرتبه داهم وئیلی دی چه ستاپلارماسره برائی یعنی زناکړې ده، اوس سوال دادې چه ایادیوښځې محض الزام سره دذکرشوی خاوندنکاح بغیردطلاق ورکولو نه فسخ کیدلې شی، دذکرشوی خاوندحسیب د طلاق ورکولونه بغیرداجینۍ بل سړی سره واده کولې شی؟ نیززمان ګل چه په چاباندې الزام دې قسم اوچتولودپاره هم تیاردې اوخاوندحسیب ته هم دخپل پلاردبې ګناهې اعتراف دې، په دې حالاتوکښې محض دې الزام عائدکولوسره نکاح فسخ کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی:ح،ب،خ، c|o مولاناموسٰی خان فاضل دیوبندشکردره کوهاټ

**جواب:** کله چه خاونددې ښځې تصدیق اونه کړی نوده دپاره ددې سره همبستری جائزده، اوکه چرته بالفرض تصدیق هم اوکړی، نونکاح فسخ کیدلې نشی تاوقتیکه متارکت اونه کړی یاحاکم(مسلمان) فسخه د نکاح اوکړی.

**یدل علیه ما فی الهندیة ۱: ۲۹۴ رجل تزوج امرأة علی انها عزراء فلما اراد وقاعها وجدها قد افتقت فقال لها من افتضک فقالت ابوک ان صدقها الزوج بانت منه ولا مهر لها وان کذبها فهی امرأته کذا فی الظهیریة...... رجل قبل امرأة ابیه او قبل الاب امرأة ابنه بشهوة وهی مکرهة وانکر الزوج ان یکون بشهوة فالقول قول الزوج انتهٰی ما فی الهندیة﴿۱﴾ قلت وجه الدلالة ظاهر لان حرمة المصاهرة لا فرق فیها بین الباکرة**

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷٦ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)



**والثیبة وبین الزنا والتقبیل، وفی الدرالمختار: وبحرمة المصاهرة لا یرتفع النکاح حتی لا یحل لها التزوج بآخر الابعد المتارکة وانقضاء العدة، وفی ردالمحتار ۲: ۳۸۹ وعبارة الحاوی الابعد تفریق القاضی او بعد المتارکة﴿۱﴾. وهوالموفق**

## د غائب خاوند د ښځې د خپل سخرسره د تعلقاتو په صورت کښې دحرمت مصاهرت دوجه نه د دویمې نکاح د کولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوښځې خاونددرې کالوراهسې بې درکه دې اودخاونددغائب کیدلونه درې کاله پس ذکرشوې ښځه حامله شوه، کله چه ددې نه دې باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نوهغه ددې ګناه مرتکب خپل سخر(والدالزوج) اوګرزؤلو، اوس دریافت طلب دادې چه ایادښځې ددې اقرارنه ددې نکاح دخپل بې درکه خاوندسره باقی ده یانه؟ که چرته نه وی نوایاداښځه دبې درکه خاونددراتلونه بغیردویم ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: طالب حسین...... ۱۶مئی ۱۹۷۵ء

**جواب:** دخاونددراتلونه پس کله چه خاونددې ګناه تصدیق اوکړی او متارکت اختیارکړی نودعدت تیریدلونه پس(وخت دمتارکت نه) به دویم ځائې کښې نکاح جائزشی، ماخوذ ازعالمګیریه﴿۲﴾شامی،﴿۳﴾وهوالموفق

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۷، فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: رجل قبل امرأة ابیه بشهوة او قبل الاب امرأة ابنه بشهوة وهی مکرهة وانکر الزوج ان یکون بشهوة فالقول قول الزوج وان صدقه الزوج وقعت الفرقة الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷٦ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وبحرمة المصاهرة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## مشکوک ولد الزنا سره د زانی د لور د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه فرمان په يوزمانه کښې دجانان په موجودګئ دجانان دښځې سره ناجائزتعلقات پيداکړي وو، تقريبا درې څلورکاله پس دجانان دښځې نه يوهلک پيداشوچه هغه غالبادجانان دنطفې نه پيداشوي وو، اودفرمان دخپلې ښځې سره دفرمان دنطفې نه يوه جينئ پيداشوه اوس ددې هلک اوددې جينئ نکاح جائزده؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوی نوروز بحرين سوات......۱۹۱۳۱،۱۹۷۵

**جواب:** ددې هلک په ولدزنا کيدلو کښې شک دې لهذادې نکاح مسئوله نه حرامه نشی وئيلې کيدې.

يدل عليه مافی ردالمحتار ۲: ۳۸۱: قوله ولو من زنا: ای بان يزنی الزانی ببکر ويمسکها حتی تلد بنتا بحر عن الفتح ﴿۱﴾ قلت وقوله عليه الصلاة والسلام: الولد للفراش وللعاهر الحجر ﴿۲﴾، يدل على مانع آخر، فافهم ﴿۳﴾. وهوالموفق

## د خپلې لور سره د زنا په صورت کښې
## حرمت مصاهرت واقع او ددې سزا رجم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يوسړي اته مياشتې

---

(بقيه حاشيه) لا يرتفع النكاح حتى لا يحل لها التزوج بآخر الابعد المتاركة وانقضاء العدة،
وقال ابن عابدين: وعبارة الحاوی الا بعد تفريق القاضی او بعد المتاركة.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۷ فصل فی المحرمات)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۱ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ عن ابی هريرة يرفعه قال: الولد للفراش وللعاهر الحجر، رواه الستة واحمد فی المسند والبيهقی. (سنن دارمی ۲: ۲۰۳ باب الولد للفراش)

﴿۳﴾ نيز د زانی او مزنيه د فروع په مينځ کښې نکاح جائزده، شامی. (سيف الله حقانی)



مخکښې دخپلې ديارلس کلنې لورسره دزنا مرتکب شوی. بيا په دې اتو مياشتو کښې دښځې سره دنکاح دختم کيدلو شک دوجه نه وي ښځې سره ئې مباشرت نه دې کړې چه دادويمه ګناه سرزد نشي، ايادخپلې ښځې سره دوباره نکاح کيدلې شي؟ اوايا داجينئ اوس دده لور ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيدعثمان هشتنګری ګيټ پشاور......۷۱۲۱،۱۹۸۸

**الجواب:** دخپلې لورسره دزناکولو نه پس په ده باندې خپله ښځه هميشه دپاره حرامه شوې ده، اودباقاعده ثبوت نه پس حکومت باندې فرض دی چه په دې سړي باندې حدرجم جاری کړی ﴿۲﴾ بياهم داجينئ ددې زانی باقاعده لورده. البته داسړې به دمجوسيانو اوسکهانو پشان دخپلو محارمو ته په تنهائی کښې د تلو راتلو نه بندولې شی. وهوالموفق

## د نابالغې لور مس بالشهوت موجب د حرمت نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه بهشتی زيورکښې

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة على اصول الزانی وفروعه نسبا ورضاعا وحرمة اصولها وفروعها على الزانی نسبا ورضاعا كما فی الوطء الحلال. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۳ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانی: واما شرائط جواز اقامتها فمنها ما يعم الحدود كلها ومنها ما يخص البعض دون البعض اما الذی يعم الحدود كلهافهو الامامة وهو ان يكون المقيم للحد هو الامام او من ولاه الامام وهذا عندنا...... وبيان ذلک ان ولاية اقامة الحد انما ثبت للامام لمصلحة العباد وهی صيانة انفسهم واموالهم واعراضهم لان القضاة يمتنعون من التعرض خوفا من اقامة الحد عليهم والمولى لا يساوی الامام فی هذا المعنى لان ذلک يقف على الامامة والامام قادر على الاقامة لشوكته ومنعته وانقياد الرعية له قهراً وجبراً الخ.

(بدائع الصنائع ۷: ۵۷)

لیکلي شوې دی که چرته دیوسړی لاس دځواني دجذبې نه پخپلې لور یا خوابنې باندې پریوزی نوپه ده باندې ښځه همیشه دپاره حرامه شی اوس ماته داواقعه مخې ته راغلې ده چه مایوه شپه دخپلې ښځې سره خواهش پوره کول اوغوښتل،لیکن هغه تیاره نه وه هغه په خپل کټ کښې پریوته ددې اوځماکټ لګیدلی وو،ددې سره ځماخپله لورچه دهغې عمریوکال دوه کاله دې دالورځماد کټ طرفته وه اوښځه بل طرفته،مادخپلې ښځې د راوستلودپاره لاس په هغې واچولو،ځمالاس په لورباندې پریوتو،دالاس مابښځې ګڼړلوسره وهلوځماښځې ځمالاس اونیولواوښکته ئې کړو،په دې باره کښې دشریعت څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی:م،ا،رپشاور.....۱۲۵جولائی۱۹۷۹ھ

**الجواب:** چونکه ستالورمشتهباة نه وه،دنهوکالونه وه بلکه دیوکال دوؤ کالو وه،لهذاددې سره مس بالشهوة ضرررسان اوحرام کونکې نه دې.

کما فی شرح التنویر: هذا اذا کانت حیة مشتهاة ولو ماضیا اما غیرها یعنی المیتة وصغیرة لم تشته فلا تثبت الحرمة بها اصلاً، وفی ردالمحتار ۲: ۳۴ طبع حلبی سیأتی تعریفها بانها بنت تسع فاکثر﴿۱﴾. وهوالموفق

## د زوئ د ښځې سره مجامعت موجب حرمت اومتارکت دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دخپل زوئ د ښځې سره مجامعت اوکړو،ایاددې زوئ اوده دښځې په مینځ کښې جدائ واقع شوې ده یانه؟ که چرته واقع شوې وی نوپه دې صورت کښې به داطلاق بائن وی یارجعی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ......... نامعلوم

**الجواب:** دثبوت شرعی نه پس دا ښځه په خپل خاوندباندې به همیشه دپاره

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۵ فصل فی المحرمات)



حرامه وی اودثبوت نه پس خاوندباندې ضروری ده چه دا ښځه پریګدی ګنی دا ښځه دمسلمان حاکم په ذریعې سره طلاق حاصل کولې شی.

فی الهندیة ۱: ۱۱۹: فمن زنی بامرأة حرمت علیه امها وان علت وابنتها وان سفلت، وکذا تحرم المزنی بها علی اباء الزانی واجداده وان علوا وابناءه وان سفلوا کذا فی فتح القدیر﴿۱﴾ وفی الدرالمختار: وبحرمة المصاهرة لا یرتفع النکاح حتی لا یحل لها التزوج بآخر الابعد المتارکة وانقضاء العدة، وقال العلامة الشامی فی ردالمحتار ۲: ۳۸۹: وعبارة الحاوی الابعد تفریق القاضی او بعد المتارکة، وقد علمت ان النکاح لا یرتفع بل یفسد، وقد صرحوا فی النکاح الفاسد بان المتارکة لا تتحقق الا بالقول ان کانت مدخولا بها...... واما غیر المدخول بها فقیل تکون بالقول وبالترک علی قصد عدم العود الیها، انتهیٰ مختصراً﴿۲﴾

اودا متارکت طلاق نه دې صرح به العلامة الشامی ۲: ۴۸۴ فلیراجع﴿۳﴾ وهوالموفق

## د زوئ د منکوحې سره د پلار نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپل زوئ ته

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۴ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۷ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدین: وفرق فی النهر بان المتارکة فی معنی الطلاق فیختص به الزوج اما الفسخ فرفع العقد فلا یختص به وان کان فی معنی المتارکة ورده الخیر الرملی بان الطلاق لا یتحقق فی الفاسد فکیف یقال ان المتارکة فی معنی الطلاق فالحق عدم الفرق ولذا جزم به المقدسی فی شرح نظم الکنز.

((ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۸۲ قبیل مطلب التصرفات الفاسدة)

واده او کړو لیکن زوئ په جماع کولو باندې قدرت نه لري، او جدائ او شوه، اوس که چرته دهلک پلار ددې جینئ سره نکاح کول اوغواړی نو آیا دا جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالقدوس مانکیال شریف

**جواب:** هر کله چه نکاح صحیحه شوې وی اګرکه جماع نه وی شوې نو هغه ښځه همیشه دپاره دهلک په پلارپاندې حرامیږی، وحلائل ابناء کم الذین من اصلابکم الایة﴿۱﴾وهکذافی جمیع کتب الفروع﴿۲﴾وهوالموفق

## د ښځې د رضاعی یا نسبی خور یا د نسبی یا رضاعی لورسره د زنا مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې کله چه دکوم سړی د ښځې رضاعی خوریارضاعی لور وی، او دا سړې ددې رضاعی خوریارضاعی لور سره په خراب نیت سره بې کاره حرکتونه اوکړی نو ددې بې کاره حرکاتودوجه نه په ده باندې خپله ښځه حرامه کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام محمد ملاکنډ ایجنسی.....۱۲رمضان المبارک۱۴۰۳ھ

**جواب:** دښځې دخورخواه نسبی وی یارضاعی سره زناکولو سره ښځه نه حرامه کیږی (شامی ۳:۳۴)، او دښځې لورخواه نسبی یارضاعی سره زناکولو سره ښځه حرامه کیږی.

---

﴿۱﴾(سورة النساء آیت: ۲۳، رکوع: ۱، پاره: ۴)

﴿۲﴾وفی الهندیة: والثالثة حلیلة الابن وابن الابن وابن البنت وان سفلوا دخل بها الابن ام لا.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۲۷۴ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)

﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی: وفی الخلاصة وطئ اخت امرأته لاتحرم علیه امرأته.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۵ فصل فی المحرمات)



(شامی ۳:۳۲)﴿۱﴾ وهوالموفق

## د نهو کالو نه کمې جینئ سره دست درازی د حرمت مصاهرت موجب نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید دباقرې سره کله چه هغه پوره بالغه هم نه وه په اوودودست درازئ کوشش اوکړواوپرتوغانې کهلاوهلو نه پس د مجامعت په نیت سره خپل عضومخصوص ئې ددې مخصوص ځائ سره لګولې وویانزدې کړې وو، چه هغه ویخه شوه په دې حرکت باندې هغه ډیرشرمنده شواوپاتې ترینه راغلو، څه وخت پس دزید د لور کویژدنه نیادباقرې سره اوکړه اوس هغه بالغه ده اوزیددلیت اولعل نه کار اخلی، شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عزیزکتوزئ

**جواب:** که چرته دارادې خرابې په وخت کښې ددې جینئ عمردنهو کالونه کم وی نوداخباثت به دحرمت مصاهرت موجب نه وی، کمافی الدرالمختار: هٰذا اذا کانت حیة مشتهاة، وفیه ایضاوبنت سنهادون تسع لیست بمشتهاة به یفتی، نیز دنهوکالوکیدلوپه تقدیرباندې که چرته داندام لګولوپه وخت انزال شوې وی نوبیابه هم دغه حکم وی، کمافی الدرالمختار: فلوانزل مع مس اونظرفلاحرمة به یفتی﴿۲﴾ وهوالموفق

## د خینې سره زنا کولو سره حرمت مصاهرت نه راځی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړې دخپل سالی سره

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی وفروعه نسباً ورضاعاً وحرمة اصولها وفروعها علی الزانی نسبا ورضاعا کما فی الوطء الحلال. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۳ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۲، ۳۰۵، ۳۰۷ فصل فی المحرمات)

ناجائز تعلقات لری او د زنا هم مرتکب دې او س دبعضې خلقو خیال دې بلکه هغوئ په ضد دې چه دواړه یعنی د خور خاوند او خینې دخپلې خپلې نکاح طلاق واقع کیږی دخور خاوند باندې خپله ښځه او په خینې باندې دده خاوند حرام شوې دې، دمسئلې حقیقت څه دې؟ بینوا تجروا

المستفتی: ډاکټر فیاض حسین جهلم........۱۹۱۹۱ء۱۹۷۷

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې دواړو باندې دې باقاعده رجم جاری کړې شی لیکن دحرمت مصاهرت حکم او فتویٰ ورکول غلط دی، کمافی شرح التنویر: وفی الخلاصة: وطی اخت امرآة لاتحرم علیه امرأته، (هامش ردالمحتار ۱:۳۸۶)﴿۱﴾ وهوالموفق

## د خینې سره زنا حرام قطعی ده لیکن د ښځې په نکاح باندې څه اثر نه پریوزی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو نوې پیغله جینئ د ناجائز تعلقاتو په بنیاد باندې حامله شوه، پینځه شپږ میاشتې پس ددې حاملې نه تپوس او کړې شو چه داحمل دچا نه دې جواباً ئې او وئیل چه دا زما دخور دخاوند دې، حالانکه هغه د اتو میاشتو نه په کراچئ کښې دې چشم دید ګواه نشته، وارثانو ئې داحمل دعلاج په ذریعه او غورځولو، دجینئ په بیان ددې موردویمه لور بال بچه داره خپل کورته راوسته ددې نه ئې پوښتنه او کړه چه تاځه وکړل، وې وئیل چه په یو کور کښې دوه غواګانې نشی پاتې کیدې، ملزم موجود نه دې معلومه نه ده هغه څه بیان ورکوی په دې صورت کښې شرعاً خاوند او ښځه کښې جدائی کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عزیزالرحمٰن کوهاله مری.......۱۵۱۱۱۱ء۱۹۷۲

**الجواب:** دښځې خور سره زنا حرام قطعی ده لیکن په دې سره دښځې په نکاح څه اثر نه پریوزی، فی عمدالرعایه: فلوزنی بامراة لاتحرم علیه اخته ولوزنا باخت زوجته

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۵ فصل فی المحرمات)



لاتحرم علیه زوجته، (هامش شرح الوقایه ۲: ۱۲)﴿۱﴾ وهوالموفق

## د حرمت مصاهرت د وجه نه د حنفی المسلک د پاره ښځه پریخودل ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د کومې ښځې سره زنا او کړه، ددې احکامې شرعیه نه ناواقفه سړی ددې ښځې دلور سره نکاح او کړه، دې ته علم نه وو چه دا نکاح نه کیږی، او س ددې دخیتې نه درې بچی پیدا شوی دی، تراوسه احکام دین باندې پابند ل کیدلو سره مخکښنی بد عملونه پیش نظر ساتلو سره خائف شو، دځلورو امامانو د مسلک نه مو خبر کړئ چه آیا دا سړې دې نکاح لره برقرار ساتلې شی؟ او کوم امام دجائز کیدلو فتویٰ ورکړې ده یا د ځلورو واړو په نزد باندې دا نکاح باطله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: شهاب الدین چشتیان بهاؤلنګر

**الجواب:** دشوافعو په نزد دا نکاح صحیح ده او د احنافو په نزد دا نکاح صحیح نه ده.

**قال فی الهدایة: من زنا بامرأة حرمت علیه امها وبنتها وقال الشافعی الزنا لا یوجب حرمة المصاهرة ۲: ۲۸۹ ﴿۲﴾ وفی البدائع ۲: ۲۶۰: وعند الشافعی لا تثبت الحرمة بالزنا فاولیٰ ان لا تثبت بالمس والنظر بدون الملک الخ﴿۳﴾**

لهذا دې سړی د پاره که چرته حنفی وی ددې ښځې پریخودل ضروری دی، وقال العینی فی شرح الهدایه ۲: ۴۰ وبه قال احمد فی قول، وهوالموفق

## د ضرورت په وخت مذهب غیر باندې فتویٰ صحیح ده لیکن امتیاز مشکل دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دیو ښځې سره

﴿۱﴾ (عمدة الرعایة علی هامش شرح الوقایة ۲: ۱۲ بیان المحرمات من النساء)

﴿۲﴾ (هدایة ۲: ۳۲۹ فصل فی بیان المحرمات)

نکاح اوکړه بیائې ددې ښځې دمورسره زنااوکړه،فیحرم علیه امرآة لاجل الحرمة المصاهرة عندناولایحرم علیه عندالشافعی لان الحرمته المصاهرة لایثبت بالزنی کماقاله فی موضعه،اوس زه په دې طریقې سره دفتوی اخستلوطالب یم چه ایامونږدې سرې ته مذهب غیرباندې فتوی ورکولې شوځکه چه تفریق مفضی الی النزاع اوباعث فساداوفتنه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فدامحمد......۱۹۷۴ء۱۲۱۱۷

**جواب**:دضرورت په وخت مذهب غیرباندې فتوی ورکول صحیح دی. کما صرح به فی موضعه﴿۱﴾ لیکن ضرورت دغیرضرورت نه ممتازکول مشکل دی،وهوالموفق

## په حرمت مصاهرت کښې دضرورت دوجه نه دانتقال عن المذهب حکم

**سوال**:څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه هغه سړی څه حکم دې

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: ان الاجماع علی منع اطلاق التخییر بان یختار ویتشهی مهما اراد من الاقوال فی ای وقت اراد اما لو عمل بالضعیف فی بعض الاوقات لضرورة اقتضت ذلک فلا یمنع منه وعلیه یحمل ما تقدم عن الشرنبلالی من ان مذهب الحنفیة المنع بدلیل انهم اجازوا للمسافر والضیف الذی خاف الریبة ان یأخذ بقول ابی یوسف بعدم وجوب الغسل علی المحتلم الذی امسک ذکره عند ما احسن بالاحتلام...... مع ان قوله هذا خلاف الراجح فی المذهب لکن اجازوا الاخذ به للضرورة...... وقد ذکر صاحب البحر فی الحیض فی بحث الوان الدماء اقوالا ضعیفة ثم قال وفی المعراج عن فخر الائمة لو افتی مفت بشئ من هذه الاقوال فی مواضع الضرورة طلبا لتیسیر کان حسنا انتهیٰ، وبه علم ان المضطر له العمل بذلک لنفسه کما قلنا وان المفتی له الافتاء به للمضطر فما مر من انه لیس له العمل بالضعیف ولا الافتاء به محمول علی غیر موضع الضرورة کما علمته من مجموع ما قررناه والله تعالیٰ اعلم.

(شرح عقود رسم المفتی ۱۰۱ ولا یجوز بالضعیف العمل)



چه هغه په مسائل جزئیه کښې یامسائل کلیه کښې دیوم مذهب نه بل مذهب ته منتقل کیږی اوپه څلورومذهبونوکښې ددې مسئلې څه حکم دې،چه یوسړی دیوې یتیمې جینۍ سره نکاح اوکړه چه دهغې پلارنشته جینۍ تقریبادا توکالوده چه قابل دخول نه ده اودجینۍ مورهم په دې کورکښې اوسیږی دې خاونددې جینۍ دمورسره څوکرته مباشرت فاحشه کړې دې اوحالانکه ددې جینۍ په طلاق باندې قادرنه دې ځکه چه رشته داران په دې واقعاتوباندې خبرنه دی اوپه خبرکیدلوباندې به ئې قتل کړی.نوددې مسئلې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:حاجی محمدشاه فیصل مسجدامدادالعلوم پشاورصدر۱۹۸۲ء۱۱۱۱۵

**جواب**: (۱) الانتقال من مذهب الی مذهب حرام اذا کان اتباعا للهویٰ واتباعاً للرخص کما فی مقدمة ردالمحتار﴿۱﴾ نعم جاز الافتاء بمذهب الغیر عند الضرورة کما صرح به العلامة الشامی وغیره﴿۲﴾.

(۲) لو انزلا عند هذه المباشرة فی کل مرة فلا تحرم علیه بنت هذه المرأة

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله ان الحکم الملفق باطل بالاجماع وان الرجوع عن التقلید بعد العمل باطل اتفاقا) المراد بالحکم (الملفق) الحکم الوضعی کالصحة مثاله متوضئ سال من بدنه دم ولمس امرأة ثم صلی فان صحة هذه الصلاة ملفقة من مذهب الشافعی والحنفی والتلفیق باطل فصحته منتفیة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۵۵ مطلب فی حکم التقلید والرجوع عنه مقدمة)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامی: العالم الذی یعرف معنی النصوص والاخبار وهو من اهل الدرایة یجوز له ان یعمل علیها وان کان مخالفا لمذهبه، قلت لکن هذا فی غیر موضع الضرورة...... لو افتی مفت بشئ من هذه الاقوال فی مواضع الضرورة طلبا للتیسیر کان حسنا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۵۵ مقدمه)

کما فی محرمات ردالمحتار وغیره﴿۱﴾. والا فحرمت علیه منکوحته والمخلص من القتل ان یطلق هذه المنکوحة المحرمة احتیالاً، ومن تیقن القتل والمقاتلة عند التطلیق ایضا فجاز له العمل بمذهب الامام الشافعی من ان حرمة المصاهرة لا تحصل بالحرام، وبالجملة ان فرق الضرورة من غیر الضرورة امر لا یعلمه الا الله ثم من ابتلیٰ به﴿۲﴾. وهو الموفق

## د حرمت مصاهرت اوښځه پښان د باورچی ساتلو وغیره مسئلې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید په شهوت سره دخپلې بالغې لور سره څوځله بوس او کنار او کړو ،ددې دوجه نه دده ښځه دحرمت مصاهرت دوجه نه په ده باندې حرامه شوه.اوس دشرعې مطابق زید له څه کول پکاردی.که چرته طلاق ورکړی نوهغه بې چاره بې قصوره ده جرم زید کړې دې دې وجه نه ددې سزا زید ته ورکول پکاردی ښځې ته نه؟

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: هذا اذا لم ینزل فلو انزل مع مس او نظر فلا حرمة به یفتی، قال ابن عابدین: لانه بالانزال تبین انه غیر مفض الی الوطء هدایه الخ. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۴ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾قال شیخنا محمد فرید مدظله: لا یجوز الحکم والافتاء بالقول المرجوح وبمذهب سائر الائمة الا فی ثلاثة مواضع الاول عند الضرورة دون التشهی والتلهی فانه حرام کما حرم الحکم الملفق الخارج للاجماع فی عمل واحد کالحکم بصحة وضوء من ترک الترتیب ومسح دون ربع الرأس...... المنع عن المرجوح حتی لنفسه لکون المرجوح صار منسوخاً نعم قید البیری بالعامی وذکر عن خزانة الروایات ان العالم الذی یعرف معنی النصوص والاخبار وهو من اهل الدرایة یجوز له ان یعمل علیها وان کان مخالفا لمذهبه وقال العلامة الشامی فی مقدمة ردالمحتار: هذا فی غیر موضع الضرورة وبمعناه فی شرح عقود رسم المفتی. (البشری لارباب الفتویٰ ۳۳ الفصل السادس)



(۱)که چرته ښځه دکور نه اوباسی نوددې زندګی به څنګه تیریږی په دې کښې دشریعت څه رهنمائی ده؟ (۲) زید داخروی سزانه دبچ کیدلو دپاره څه اوکړی ډیرژاړی اوشرمنده دې لیکن دګناه اظهارکولو سره ذلیل کیدل هم نه غواړی، نیزشریعت هم دګناه دپټولو حکم ورکړې دې اوخاص خبره داده چه هغه په ټول ژوند کښې دچا سره دزناکولو مرتکب شوې نه دې،صرف دې ځل ئې بدقسمتۍ سره بوس او کنار او کړو اوس توبه کوی؟ (۳) زید په داسې مرض کښې مبتلا کیدلو سره عنین شوي چه دهغې علاج ناممکن دې اطباء وائی چه اوس دصحت دتلاش کولو په ځائ دده دپاره دقبرتیاری پکارده په داسې حالت کښې ایازید په دې خپل آخری عمر کښې دې ښځې لره دیواجنبیې باورچی په حیثیت سره ساتلې شی چه ددې په نفقې سره مدداوکړی اود ښځې اودخاوند خصوصی تعلقات خودرکنار دیوبل نه پرده هم اوکړی ایاپه دې طریقه دې دواړولره په یوکورکښې دژوندتیرولو اجازت شته؟ (۴) د ځوانۍ نه دښځې حالت دادې چه ددې کله جنسی رغبت نه دې شوې دنکاح نه پس چه زید څومره هم وقاع کړې ده په زورئې کړې ده او اوس خو هغه بوډا شوې دې اوس صرف دبدنامۍ نه بچ کیدو نیزپه دې بوډاوالی کښې ددویم خاوند ښځې جوړیدلو نه بطور داجنبیې باورچې جوړیدلو سره په شرعی پرده کښې دزید په کورکښې دژوندباقی ورځې پوره کول غواړی آیا په دې طریقې سره به صحیح وی؟بینوا توجروا

المستفتی: عبادالله سکهر سنده

**جواب:** (۱) په ده باندې ضروری ده چه ددې ښځې سره متارکت اوکړی اود متارکت نه پس کله چه عدت ختم شی نو په بل ځائ کښې نکاح کولې شی که چرته داسړې جدا کوریاجدا کمره دې ښځې ته ورکړی نو جائزده (درمختار وردالمحتار)﴿۱﴾ (۲) دالله تعالی نه دې مغفرت اوغواړی اوصحیح توبه دې اوباسی.

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: قبل السکران بنته تحرم الام وبحرمة المصاهرة لا یرتفع النکاح حتی لا یحل لها التزوج بآخر الا بعد المتارکة وانقضاء العدة، قال العلامة ابن عابدین: (قوله الا بعد المتارکة) ای وان مضی علیها سنون کما فی البزازیة وعبارة الحاوی الا بعد تفریق القاضی او بعد المتارکة ...... بان......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

(۳) خبیث سړی باندې څه اعتماد نشته او په ذکرشوې صورت کښې د نظر او د مس بالشهوت خطره موجوده ده لهذا کم از کم که جدا کمره ورکړې شي نو خطره به کمه شي (۴) دا ښځه په دې سړي باندې حرامه شوې ده لیکن مطلقه نه ده د متارکت نه پس (یعنی دده دوئیلو نه پس چه ځما ستا سره څه تعلق نشته یا ما ته پریځودې) عدت تیریدلو نه پس بل ځائ کښې نکاح کولې شي او که چرته با پرده او بلاخلوت په دې کور کښې سکونت او کړي نو جائز ده لیکن د سابقه بې اعتمادۍ د وجه نه بهتره دا ده چه په کور کښې یوه کمره دې دپاره منتخب کړي چه د فتني خوف پاتې نشي اګر که دواړه بوډاګان دی او اګر که دا ښځه د محارمو نه شمار شوې ده، (دا ټولې مسئلې درمختار او ردالمحتار نه ماخوذ دي (۱). وهو الموفق

## صرف متهم کیدلو سره حرمت مصاهرت نه ثابت کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په پلار باندې الزام دې چه هغه د خپلې حقیقي لور سره (هغه چه نا واده کړې وه) زنا کړې ده یو کس هم مخامخ ګواه نشته کله چه جینۍ حامله شوه نو دې پلار له مجرم او ښودلو او د دوؤ دریو ښځو په مخامخ ئې او وئیل چه دا ځما پلار په ما باندې ظلم کړې دې مور هم د لور د خبرې تصدیق کړې دې چه دا جرم هم د پلار کیدلې شی، (مورئې حقیقي ده) کله چه د پلار نه پوښتنه او کړې شوه نو هغه خاموشی اختیار کړه او وې وئیل چه دا څه تاسو وایئ څه به ددې څه جواب درکړم (۱) ایا دې د کلی نه

(بقیه حاشیه) المتارکة لا تتحق الا بالقول الخ.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۰۷ فصل فی المحرمات)

(۱) قال العلامة الحصکفی: وسئل شیخ الاسلام عن زوجین افترقا ولکل منهما ستون سنة وبینهما اولاد تتعذر علیهما مفارقتهم فیسکنان فی بیتهم ولا یجتمعان فی فراش ولا یلتقیان التقاء الازواج هل لهما ذلک قال نعم واقره المصنف.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۷۵ قبیل فصل فی ثبوت النسب)



بهر کړې شي؟ (۲) ایا دده نکاح ختمه شوې ده؟ (۳) ایا دده د بچو د پرورش او مالی بد حالئ ته کتلو سره دې په کلی کښې ایسارول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد اکرم حمیده واه کینټ ....۱۳ شعبان ۱۳۹۶ھ

**جواب:** السلام علیکم نه پس دې واضحه وي چه په استفتاء کښې د ذکرشوي سړي معصیت نه مسلم دې او نه مبرهن دې پس صرف د متهم کیدلو د وجه نه ورته څه تعزیر وز کول بې قاعدې کار دې البته په کلي واله باندې فرض دی چه ددې سړي سره دده لوریانې او خوریانې په یو کور کښې او سیدلو ته پرینګدی. وهو الموفق

## د خوم اود خواښې تعلقاتو سره سخر باندې ښځه نه حرامه کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه څه معذوره سړې یم او د کوم سړی سره چه ما د خپلې لور نکاح کړې ده هغه ځما د ښځې یعنی د خپلې خواښې سره ناجائز تعلقات قائم کړی دی ایا په دې صورت کښې ځما د لور او ددې د خاوند او هم د غسې ځما او ځما د ښځې په مینځ کښې نکاح قائمه پاتې کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عطاء ګل پشاور

**الجواب:** بشرط صدق ستالو په خپل خاوند باندې حرامه شوې ده (۱) او په تا باندې خپله ښځه نه ده حرامه شوې البته بهتره دا ده چه استبراء او کړې یعنې د یو حیض را تللو پورې جماع نه منع شی، کذا فی الدر مع الرد ۲: ۸۵۶ (۲) وهو الموفق

(۱) قال العلامة ابن نجیم: واراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی وفروعه نسبا ورضاعا وحرمة اصولها وفروعها علی الزانی نسبا ورضاعا کما فی الوطء الحلال. (البحر الرائق ۳: ۱۰۱ فصل فی المحرمات)

(۲) قال العلامة الحصکفی: وفی شرح الوهبانیة ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

(بقیه حاشیه)لو زنت المرأة لا يقربها زوجها حتى تحيض لاحتمال علوقها من الزنا فلا يسقى ماؤه زرع غيره فليحفظ لغرابته. قال العلامة ابن عابدين: امر بحفظه لا ليعتمد بل ليجتنب بقرينة قوله لغرابته فان المشهور فى المذهب ان ماء الزنا لا حرمة له لقوله صلى الله عليه وسلم للذى شكا اليه امرأته انها لا تدفع يد لامس طلقها فقال انى احبها وهى جميلة فقال صلى الله عليه وسلم استمتع بها واما قوله فلا يسقى ماؤه زرع غيره فهو وان كان وارداً عنه صلى الله عليه وسلم لكن المراد به وطء الحبلىٰ لانه قبل الحبل لا يكون زرعا بل ماء مسفوحا و لهذا قالوا لو تزوج حبلى من زنا لا يقربها حتى تضع لئلا يسقى زرع غيره لان به يزداد سمع الولد وبصره حدة فقد ظهر بما قررناه الفرق بين جواز وطء الزوجة اذا رآها تزنى وبين عدم جواز وطء التى تزوجها وهى حبلى من زنا.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۶۷ قبيل فروع باب العدة)

.........



# باب الحضانة

## حق د حضانت او د بچو د نفقې مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیدوفات شویورریوه ښځه دوه لوریانې اویوزوئ ئې پریخودل.یوه جینئ داووکالودویمه د پینځو کالواوزوئ ئې ددووکالودې اوس که چرته دا ښځه دبچودغیرمحرم سره واده اوکړی نوددې بچونفقه په موربانديږ ده یاپه تره بانديږ ،حالانکه دبچوڅه خپل مال اوجائدادنشته.نیزحق حضانت دموردپاره دې یا د نانی دپاره دې یادتره دپاره دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:علی محمدنوشهره صدر....... ۱۹۹۰ء۱۰۱\۱۷

**جواب:** (۱)که چرته ددې بچودپاره خپل مال نه وی نوددوی نفقه به په مور او تره باندې واجبه وی په موربانديږ دریمه اوپه تره باندې دریو کښې دوه حصې (هندیه ۱:۵۸۵)﴿۱﴾

(۲) صورت مسئوله حق حضانت دنانی دپاره دې اوکه چرته نانی نه وی نود

---

﴿۱﴾ وفى الهندية: والنفقة لكل ذى رحم محرم اذا كان صغيرا فقيرا...... ويجب ذلک على قدر الميراث ويجبر عليه كذا فى الهداية وتعتبر اهلية الارث لا حقيقته كذا فى النقاية.

(فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۵۶۶ الفصل الخامس فى نفقة ذوى الارحام)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله والمعتبر فيه القرب والجزئية لا الارث)...... وان كان كل من الصنفين اعنى الاصول والحواشى وارثا اعتبر الارث ففى ام واخ عصبى او ابن اخ كذلک او عم كذلک على الام الثلث وعلى العصبة الثلثان بدائع.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷۳۸ مطلب ضابط فى حصر احكام نفقة الاصول)

دادی دپاره دي (هندیه ۱:۵۲۲)﴿۱﴾ او که چرته دبچو خیرخواهی دمورپه حضانت کښې وی او دناسکه پلار (زوج الام) په دې باندې راضی وی نو داحق به مورلره وی. (ردالمحتار ۲:۸۸۰)﴿۲﴾ وهوالموفق

## د پلار مورته د خرچې او نفقې نه ورکولو په شرط باندې د زوئ د حواله کولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی ښځه بدزبانه یعنی زبان دِرازه او دبچونه بې پرواه وه. دپوهه کولو باوجودهم نه پوهه کیدله هرکار کښې ئې دخاوند مقابله کوله. آخر کښې ئې جادو کول هم شروع کړل، کله چه په خط کښې دجادو دتعویذونو ذکرخاوندا وکتلو نوښځې ته ئې دریم طلاق هم ورکولو سره جدا کړه. اوس دخاوند سره دمطلقې نه درې بچی پاتې شوې دی ددوی عمرونه دهلک شپږ کاله، دجینئ څلور کاله دبل هلک درې

﴿۱﴾وفی الهندیة: وان لم یکن له ام تستحق الحضانة بان کانت غیر اهل للحضانة او متزوجة بغیر محرم او ماتت فام الام اولیٰ من کل واحدة وان علت فان لم یکن للام ام فام الاب اولیٰ ممن سواها وان علت، کذا فی فتح القدیر. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۵۴۱ الباب السادس عشر فی الحضانة)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدین: قلت الاصوب التفصیل وهو ان الحاضنة اذا کانت تأکل وحدها وابنها معها فلها حق لان الاجنبی لا سبیل له علیها ولا علی ولدها بخلاف ما اذا کانت فی عیال ذلک الاجنبی او کانت زوجة له وانت علمت ان سقوط الحضانة بذلک لدفع الضرر عن الصغیر فینبغی للمفتی ان یکون ذا بصیرة لیراعی الاصلح للولد فانه قد یکون له قریب مبغض له یتمنی موته ویکون زوج امه مشفقا علیه یعز علیه فراقه فیرید قریبه اخذه منها لیؤذیه ویؤذیها اولیاء کل من نفقته او نحو ذلک وقد یکون له زوجة تؤذیه اضعاف ما یؤذیه زوج امه الاجنبی وقد یکون له اولاد یخشی علی البنت منهم الفتنة لسکناها معهم فاذا علم المفتی او القاضی شیئا من ذلک لا یحل له نزعه من امه لان مدار امر الحضانة علی نفع الولد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۴ باب الحضانة)



کاله دي، دپلار سره ډیر آرام او راحت سره اوسیږی اوس مطلقه دبچو مطالبه کوی دبچو پلار انکاری دې ځکه چه داښځه بداخلاقه او بې پرواه ده اوس هغې دعدالت په ذریعه دبچو داخستلو دهمکی ورکړې ده. پلار ئې ویریدلو سره او وئیل که چرته په زبردستې سره بچی بوتلل غواړې نو څه به همیشه دپاره او لیکم او خرچه وغیره به هم نه درکوم، مطلقې ښځې دا قبوله کړه، اوس سوال دادې ایا په دې لیکلو سره به پلار مجرم وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد حسین راولپنډی شهر......۱۹۸۸ء۱۱۱۱۲۱

**جواب:** دابچی خواه موافق ثابت وی یا مخالف ستابچیان دی او حق حضانت بهرحال ددې مطلقې دپاره دې ترڅو پورې چه ته ددې مطلقې نااهلیت ثابت نه کړې﴿۱﴾ او دبچو نفقه تاحین بلوغ په تا باندې واجب ده﴿۲﴾ او ددې مطلقې (حاضنې) نفقه هم ته تا باندې واجب ده البته دادویم قابل اسقاط دې په خلاف داول﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: (الحضانة) تثبت للام النسبیة ولو...... بعد الفرقة الا ان تکون مرتدة...... او فاجرة فجورا یضیع الولد به کزنا وغناء وسرقة ونیاحة کما فی البحر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۶۸۸ باب الحضانة)

﴿۲﴾قال العلامة المرغینانی: ونفقة اولاد الصغار علی الاب لایشارکه فیها احد کما لا یشارکه فی نفقة الزوجة لقوله تعالیٰ: وعلی المولود له رزقهن والمولود له هو الاب. (هدایة ۲:۴۴۷ فصل فی نفقة الاولاد الصغار)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله اذا لم تکن منکوحة ولا معتدة لابیه) هذا قید فیما اذا کانت الحاضنة اما فلو کانت غیرها فالظاهر استحقاقها اجرة الحضانة بالاولیٰ وقوله لابیه احتراز عما لو کانت فی نکاح او عدة رجل غیر الاب فانها تستحق الاجرة علیها لکن اذا کان الناکح محرماً للصغیر والا فلا حضانة لها کما مر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۱ باب الحضانة)

## د بچی تربیت ناسکه پلارکړې دې، آیا وارثان دواپسې حق لرلې شی؟

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دګوندې ښځې سره نکاح اوکړه دې ښځې سره دسابقه خاوندنه یوه وړه لور (ددرې څلورو میاشتو) هم وه، ورسره راغله حالانکه دنکاح په وخت ددې تذکره نه ده شوې نه دنفقې څه تذکره وارثانو اوکړه، اوس جینۍ چه کله دشپږو کالو شوه نود جینۍ وارثان جینۍ واپس غواړی اووادویم خاوند دجینۍ نفقه اوخرچه غواړی ایاهغوی داجینۍ واپس اخستلې شی؟ که چرته اخستلې شی نو هغوئ ته به خرچه ورکول هم پریوزی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی غلام قادرملهو ګیدړ پور هزاره...... ۱۹۲۹ء ۲۰۱۸۱

**جواب**: (۱) که چرته داوارثان مفت تربیت کول غواړی اومورد لور په ترکې سره تربیت کوی نووارثان دې جینۍ لره واپس اخستلې شی، اوکه چرته مور دخپل خاوند (زوج ثانی) په مال سره دهغه په خوشحالې سره دبچی تربیت کوی نوواپس ئې نشی اخستلې.

**یدل علیه مفهوم ما فی الدرالمختار وفی الحاوی تزوجت باجنبی وطلبت تربیته بنفقة والتزمه ابن عمه مجانا ولا حاضنة له فله ذلک انتهی ﴿۱﴾ والمفهوم معتبر ههنا عندنا ایضاً.**

(۲) چونکه موروغیره تبرع کړې دې بغیردڅه مجبورۍ نه لهذا خرچه نشی اخستلې ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ : ۶۹۰ باب الحضانة)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی المنیة تزوجت ام صغیر توفی ابوه وارادت تربیته بلا نفقة مقدرة واراد وصیه تربیته بها دفع الیها لا الیه، قال ابن عابدین: بلا نفقة ای من مال الصغیر الموروث له من ابیه فتح وظاهره ان المراد نفقة الصبی والظاهر ان اجرة الحضانة کذلک.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲ : ۶۸۹، ۶۹۰ باب الحضانة)**



## د مظلومې مطلقې د خرچې اود بچی د اجرت حضانت مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوښځې دنکاح کولونه یوکال پس لورپیداشوه، سخرګنۍ سره دلورنه دکورنه بهرکړله، پینځه میاشتې دمورپلارکره اوسیدله اوبیائې مورپلارته اووئیل چه ما باربار د خاوند کورته مه لیږئ، ځماخاوندبې وقوف دې باربارمې دکورنه اوباسی ښځه مجبورادمورپلارسره لاړله، ددوو کالونه پس ورته طلاق ملاؤسو ایا دا ښځه ددوو کالو مخکښې دطلاق نه خپله خرچه اونفقه اودلورخرچه اونفقه اخستلې شی؟ اودطلاق نه پس دلورخرچه څومره وخته پورې اوڅومره اخستلې شی اوڅومره وخته پورې به لوردمورنه جدا کولې نشی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدانورشاکرتوبه ضلع اټک ۱۱۴ رمضان المبارک ۱۴۰۲ء

**الجواب**: ددې ښځې خاوندباندې ددوو کالو خرچه (دښځې اودلوردواړو) واجب ده دا ښځه ناشزه نه ده مظلومه ده ﴿۱﴾ نیزدې خاوندباندې طلاق ورکولونه پس د عدت خرچه واجب ده اوعدت تیریدلونه پس دلورخرچه او اجرت حضانت هم په دې خاوندباندې واجب الاداده ﴿۲﴾ (شامی باب الحضانة والنفقات) وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: فتجب للزوجة علی زوجها...... ولو هی فی بیت ابیها اذا لم یطالبها الزوج بالنقلة به یفتی وکذا اذا طالبها ولم تمتنع. (الدرالمختار ۲ : ۷۰۱ باب النفقة)**

**قال العلامة ابن عابدین: فالحاصل ان الفرقة اما من قبله او من قبلها فلو من قبله فلها النفقة مطلقا سواء کانت بمعصیة اولا طلاقا او فسخا وان کانت من قبلها فان کانت بمعصیة فلا نفقة لها ولها السکنی فی جمیع الصور.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ : ۷۲۲ قبیل مطلب الصغیر والمکتسب نفقة الخ)**

**﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین الشامی: کان من جملتها الانفاق علی حاضنته التی حبست نفسها لاجله عن التزوج ومثلها اجرة ارضاعه فلم تکن......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

## د مور د غیرمحرم سره نکاح کولو سره حق د حضانت ساقط کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دخاوند او ښځې په مینځ کښې جدائی راغله او ددوی دوه بچیان دی، مطلقې روستو په غیرخاندان کښې نکاح اوکړه په دې صورت کښې دبچو دپرورش حق چاته دې؟ حالانکه دپلارنه علاوه دبچو دصحیح پرورش کولو الاځوک نشته؟ شرعی طوربانديې په پلاریامطلقه کښې څوک ددې بچو دپرورش حق لری؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورمحمد

**الجواب:** دغیرمحرم سره نکاح کولو سره حق حضانت ساقط کیږی، لمافی الدر المختار: اومتزوجه بغیرمحرم الصغیر ﴿۱﴾ وبمعناه فی جمیع کتب الفتاویٰ ﴿۲﴾، لهذا دا بچیان به نیکه یاترور وغیره ته حواله کولې شی، اوکه چرته په ښځو کښې څوک ملاؤنشی نو د پلار په حواله کولې به شی، لمافی الهندیه: واذاوجب الانتزاع من النساء اولم یکن للصبی امراة من اهله یدفع الی العصبه فیقدم الاب الخ ﴿۳﴾

---

(بقیه حاشیه) اجرة خالصة من کل وجه حتی ینافیها الوجوب بل لها شبه الاجرة وشبه النفقة فاذا کانت منکوحة او معتدة لابیه لم تستحق اجرة لا علی الحضانة ولا علی الارضاع لوجوبها علیها دیانة ولان النفقة ثابتة لها بدونها بخلاف ما بعد انقضاء العدة فانها تستحقها عملا بشبه الاجرة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۱ قبیل مطلب فی لزوم اجرة مسکن الحضانة)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸۹ باب الحضانة)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: اذا وقعت الفرقة بین الزوجین فالام احق بالولد...... فقال علیه السلام انت احق به مالم تتزوجی. (هدایه ۲: ۴۳۸ باب حضانة الولد ومن احق به)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۵۴۲ الباب السادس عشر فی الحضانة)



**نوټ:** ......واضحه دې وی که چرته شرعی مستحق په دې باندې راضی وی چه بچیان دې دمورسره او سیږی نو داځه ګناه نه ده ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د پلاراو د مور په مینځ کښې د تفریق نه پس د بچی د حضانت او د ثبوت نسب مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه څمادبی اې پاس دلور واده دوریږي دزوئ سره اوکړې شو. لیکن ځماوریره اودهغې زوئ ځما د لور تنګول شروع کړل بالاخرپه څلورم نومبر ۱۹۸۸ء ماخپله لور د سخر والو کورنه راوستله ددې نه پس معلومه شوه چه د جینئ دامیددې چنانچه ماپه فیملی کورټ کښې دنکاح تنسیخ کولو دعوی اوکړه اوددې سره مې ددې د حمل ذکرهم اوکړو، دمقدمې په دوران کښې معتبراونیکو خلقو دصلح د صفائی دپاره هم کوشش اوکړو هغه ددې خلقو دبې انصافو دوجه نه څه نتیجه راونځکله. په دې دوران کښې هلک ته اوویلې شوچه دښځې حمل دې مګر هغه اوئیل چه حمل ځمادنطفې نه نه ده اوځه لسوبچولره هم په موربانديې قربان کولې شم اوقربان کوم، (ددې خبرې ګواه هم موجوددې) په اوویشتم جولائی ۱۹۸۹ء هلک پیداشواوجنوری ۱۹۹۰ء کښې اچانک دهلک دخپل کولو دپاره ئې نوټس ورکړواوپه پینځم مارچ په عدالت کښې ئې دعوی هم دائره کړه اوس هم روانه ده اوس سوال دادې چه ایا فریق ثانی ته شرعاداماشوم ملاویدې شی؟ نیزداماشوم به دکوم فریق سره وی ځکه چه تنسیخ نکاح مخکښې شویده؟ بینوا توجروا

المستفتی: م، د، ج، راجه اسلام آباد...... ۱۹۹۰ء/۵/۱۵

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: عن المفتی ابی السعود مسئلة فی رجل طلق زوجته ولها ولد صغیر منه واسقطت حقها من الحضانة وحکم بذلک حاکم فهل لها الرجوع یأخذ الولد الجواب نعم لها ذلک فان اقوی الحقین فی الحضانة للصغیر ولئن اسقطت الزوجة حقها فلا تقدر علی اسقاط حقه ابدًا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۰ باب الحضانة)

## د مور د غیرمحرم سره نکاح کولو سره حق د حضانت ساقط کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دخاوند اوښځې په مینځ کښې جدائی راغله اوددوی دوه بچیان دی،مطلقې روستوپه غیرخاندان کښې نکاح اوکړه په دې صورت کښې دبچودپرورش حق چاته دې؟ حالانکه دپلارنه علاوه دبچودصحیح پرورش کولووالاڅوک نشته؟ شرعی طورباندې په پلاریامطلقه کښې څوک ددې بچودپرورش حق لری؟بینوا توجروا .

المستفتی: نورمحمد

**الجواب:** دغیرمحرم سره نکاح کولوسره حق حضانت ساقط کیږی،لمافی الـــدر المختار: اومتزوجه بغیرمحرم الصغیر﴿۱﴾ وبمعناه فی جمیع کتب الفتاوٰی﴿۲﴾، لهذا دا بچیان به نیکه یاتروروغیره ته حواله کولې شی، اوکه چرته په ښځوکښې څوک ملاؤنشی نودپلارپه حواله کولې به شی،لمافی الهندیه:واذاوجب الانتزاع من النساء اولم یکن للصبی امراة من اهله یدفع الی العصبه فیقدم الاب الخ﴿۳﴾

---

(بقیه حاشیه) اجرة خالصة من کل وجه حتی ینافیها الوجوب بل لها شبه الاجرة وشبه النفقة فاذا کانت منکوحة او معتدة لابیه لم تستحق اجرة لا علی الحضانة ولا علی الارضاع لوجوبها علیها دیانة ولان النفقة ثابتة لها بدونها بخلاف ما بعد انقضاء العدة فانها تستحقها عملا بشبه الاجرة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۱ قبیل مطلب فی لزوم اجرة مسکن الحضانة)

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸۹ باب الحضانة)

﴿۲﴾قال العلامة المرغینانی: اذا وقعت الفرقة بین الزوجین فالام احق بالولد...... فقال علیه السلام انت احق به مالم تتزوجی. (هدایه ۲: ۴۳۸ باب حضانة الولد ومن احق به)

﴿۳﴾ (فتاوٰی عالمگیریه ۱: ۵۴۲ الباب السادس عشر فی الحضانة)



**نوټ:**......واضحه دې وی که چرته شرعی مستحق په دې باندې راضی وی چه بچیان دې دمورسره اوسیږی نوداڅه ګناه نه ده﴿۱﴾.وهوالموفق

## د پلاراو د مور په مینځ کښې د تفریق نه پس د بچی د حضانت او د ثبوت نسب مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمادبی اې پاس دلور واده دوریږې دزوئ سره اوکړې شو.لیکن ځماوریره اودهغې زوئ ځما دلور تنګول شروع کړل بالاخرپه څلورم نومبر۱۹۸۸ءماخپله لور د سخر والو د کورنه راوستله ددې نه پس معلومه شوه چه د جینئ دامیددې چنانچه ماپه فیملی کورټ کښې دنکاح تنسیخ کولودعوی اوکړه اوددې سره مې ددې د حمل ذکرهم اوکړو،دمقدمې په دوران کښې معتبراونیکوخلقودصلح د صفائی دپاره هم کوشش اوکړوهغه ددې خلقودبې انصافودجه نه څه نتیجه راونخکله.په دې دوران کښې هلک ته اووئیلې شوچه دښځې حمل دې مګر هغه اوئیل چه حمل ځمادنطفې نه نه ده اوځه لسوبچولره هم په موربانډې قربان کولې شم اوقربان کوم،(ددې خبرې ګواه هم موجوددې) په اوویشتم جولائی ۱۹۸۹ء هلک پیداشواوجنورئ ۱۹۹۰ءکښې اچانک دهلک دخپل کولو دپاره ئې نوټس ورکړواوپه پینځم مارچ په عدالت کښې ئې دعوی هم دائره کړه اوس هم روانه ده اوس سوال دادې چه ایافریق ثانی ته شرعاداماشوم ملاویدې شی؟ نیزداماشوم به دکوم فریق سره وی ځکه چه تنسیخ نکاح مخکښې شویده؟ بینوا توجروا

المستفتی:م،د،ج،راجه اسلام آباد...... ۱۹۹۰ء۱۵/۵/۱

---

﴿۱﴾قال ابن عابدین: عن المفتی ابی السعود مسئلة فی رجل طلق زوجته ولها ولد صغیر منه واسقطت حقها من الحضانة وحکم بذلک حاکم فهل لها الرجوع یأخذ الولد الجواب نعم لها ذلک فان اقوی الحقین فی الحضانة للصغیر ولئن اسقطت الزوجة حقها فلا تقدر علی اسقاط حقه ابدًا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹۰ باب الحضانة)

**الجواب:** مسئله شرعیه داده چه داهلک ددغه پلارنه ثابت النسب دي لحدیث: الولد للفراش﴿۱﴾ولتصریح الفقهاءبه﴿۲﴾ البته داهلک به داوؤه کالو کیدلو پورې مورسره اوسیږي او روستو به اشفق ته حواله کولې شي (ردالمحتار باب الحضانة﴿۳﴾وهو الموفق

### د خلع په صورت کښې د اوؤهٔ کالو کیدلو پورې بچې به د مورسره اوسیږي

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه ښځه خاوندپه خلع باندې راضی شول مګراوس دبچومعامله ده چه هغه به دمورسره اوسیږي یا د پلارسره، په دې باره کښې شرعی حکم څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: حامدشاه مسجد دلاورخان پشاور

**الجواب:** مورددې بچوپرورش مستحقه ده تردې چه دابچی داووکالوشی ددې نه پس به دابچی پلارته حواله کولې شی،ددې پلاراومورد مرضې نه بغیر دا

---

﴿۱﴾عن ابی هریرة رضی الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ الولد للفراش وللعاهر الحجر. (سنن ترمذی ۱:۳۴۹ باب ماجاء ان الولد للفراش)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: قال اصحابنا لثبوت النسب ثلاث مراتب الاولیٰ النکاح الصحیح وماهو فی معناه من النکاح الفاسد والحکم فیه انه یثبت النسب من غیر دعوة ولا ینتفی بمجرد النفی.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۵۳۶ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله والحاضنة احق بالغلام) حتی یستغنی عن النساء بان یاکل ویشرب ...... وقدر بسبع وهو قریب من الاول بل عینه...... وبعد صفحة...... فیتعین الافتاء بولایة ضمه لکل من یؤتمن علیه من اقاربه ویقدر علی حفظه الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۹۵،۶۹۷ باب الحضانة)



حق ددوی نه څوک نشی اخستلې (ماخوذازشرح التنویرعلی هامش ردالمحتار ۲:۸۸۱)﴿۱﴾وهو الموفق

### د غیرمحرم سره د وادهٔ په صورت کښې د مورحق حضانت ساقطیږي

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دي مسئلې باره کښې چه یوسړی واده اوکړو دهغه نه دوه هلکان اویوه جینۍ پیداشول اوهغه وفات شوه.روستوده دویم وادهٔ اوکړوددویمې ښځې نه هم دوه هلکان اویوه جینۍ پیداشوه روستو داسړې وفات شواوترکه وغیره تقسیم شول ښځې اتمې حصې وصول کولونه پس بل ځائې کښې واده اوکړو،اوس ناسکه زورخورچه غټې دی اصرارکوی چه ددې نابالغې خور زورپرورش مونږکووحالانکه سکه مورئې وائې چه ددوی تربیت اوپرورش به شرعاځماحق دې بلوغ پورې.داحق شرعاچاته حاصل دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی غلام رسول...... ۳۰/۱/۱۹۷۸ء

**جواب:** دغیرمحرم سره دواده کولوپه صورت کښې دمورحق حضانت ساقط کیږي، کمافی شرح التنویر:اومتزوجه بغیرمحرم الصغیر،(هامش ردالمحتار ۲:۸۷۳)﴿۲﴾ پس دابچیان به نیاوغیره ښځوته حواله کولې شی اوکه

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: والحاضنة اما او غیرها احق بالغلام حتی یستغنی عن النساء وقدر بسبع وبه یفتیٰ لانه الغالب ولو اختلفا فی سنه فان اکل وشرب ولبس واستنجی وحده دفع الیه ولو جبرا والا لا والام والجدة احق بها حتی تحیض...... وغیرهما احق بها حتی تشتهی وقدر بتسع وبه یفتی، وقال ابن عابدین: ولا یملک احدهما ابطال حق الولد من کونه عند امه قبل السبع وعند ابیه بعدها.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹۵ باب الحضانة)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۸۹ باب الحضانة)

چرته باقاعده ښځې پیدانه شوې نو دغه علاتی رورته به حواله کولې شي، کمافی شرح التنویر: ثم العصبات بترتیب الارث الخ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د نیکه او مور د پاره د حق حضانت او د ولایت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه فاطمه د مولانا عبدالغنی خورزه او د رحمت الله مرحوم لورده. اوس د نیکه او د مور په دې باندې جهګړه ده هر یو د حضانت دعوی کوی چه اوس دا جینۍ څماده د جینۍ عمر یولس کاله دې شرعی حکم څه دې. جواب په فارسی یا پشتو کښې راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نعمت الله افغانستان...... ۱۹۸۵ء۱۹۱۲۹

**الجواب:** اګر عداوت و بدخواهی مولوی عبدالغنی بای دختر پسر مسماة فاطمه نه تسلیم شده باشد و نه به بینه عادله ثابت شده باشد، پس حق ولایت برائ ای جد مسمی مولوی عبدالغنی باشد نه برائے مادر، زیرانچه حق حضانت مادر برقول مفتی به ختم شده است﴿۲﴾ وهو الموفق

## د نا بالغې لور حضانت نیا د پاره دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوه ښځه وفات شوې ده یو اوو کلن زوئ او شپږ کلنه لورئې پاتې شوې دی د دې بچو نیا زوئ پریخودلو او لورئې په زبردستې سره پخپله قبضه کښې واخستله. حالانکه د بچو پلار

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۹۳، مطلب لو کانت الاخوة او الاعمام غیر مأمونین)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: والام والجدة احق بالجاریة حتی تحیض وفی نوادر هشام عن محمد رحمه الله تعالیٰ اذا بلغت حد الشهوة فالاب احق وهذا صحیح...... وبعد ما استغنی الغلام وبلغت الجاریة فالعصبة اولی یقدم الاقرب فالاقرب کذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱: ۵۴۲ الباب السادس عشر فی الحضانة)



ژوندې دې، آیا د پلار او د ترور یانو (د پلار د خور) په موجودګۍ کښې نیا ته د دې نابالغې د تربیت حق حاصل کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی شبیر احمد احمد پور شرقیه...... ۱۲/ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د مفتیٰ به قول په بنیاد باندې د دې نمسۍ حق حضانت نهو کالو پورې نیا ته حاصل دې دې نه پس به باقاعده پلار ته حواله کولې شی﴿۱﴾ وهو الموفق

## حق حضانت، نفقه، اجرة الرضاع وغیره

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړی او ښځې نکاح مئ ۱۹۶۸ء کښې اوشوه دوو کالو پورې د ښځې خاوند په حیثیت سره اوسیدل لیکن خوابښې اوندې وغیره ښځه نه خوښوی. مخکښې هم یو مرتبه هغوئ د مور پلار کور ته اولیږله لیکن روستو بیا راوسته. بیا کله چه هغه حامله شوه نو اووه میاشتې پس بیا د وی مور پلار کره روانه کړه. چه ته هلته لاړه شه اوسیږه که چرته هلک پیدا شو نو مونږ به دې راولو او حصاره به دې کړو او که چرته جینۍ پیدا شوه نو مونږ دې نه حصاروو. دوه میاشتې پس ۱۹۷۰ء کښې مور کره جینۍ پیدا شوه. او په فروری ۱۹۷۱ء کښې دوی بغیر د څه وجه نه دیونین کونسل په معرفت رجسټری کولو سره طلاق اولیږلو، چه درې میاشتې پس وصول شو، د حق مهر کالی (پینځه سوه) روپې هم هغوئ واخستل، او جهیز (زر روپئ ئې) هم ورنه کړي، مطلقې شپږ میاشتې پس د جینۍ د خرچې دعوی اوکړه، په جولائ ۱۹۷۳ء کښې عدالت دیرش روپئ

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والام والجدة...... احق بها بالصغیرة حتی تحیض...... وغیرهما احق بها حتی تشتهی وقدر بتسع وبه یفتیٰ، قال ابن عابدین: وبلوغها اما بالحیض او الانزال او السن، قال فی البحر لانها بعد الاستغناء تحتاج الی معرفة آداب النساء والمرأة علی ذلک اقدر وبعد البلوغ تحتاج الی التحصین والحفظ والاب فیه اقویٰ واهدیٰ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۹۵ باب الحضانة)

دمياشتي خرچه مقررکړه، چه دجولائ ۱۹۷۳ء نه ملاويږي اوس هغه سړي يعنې دجينئ پلاردجينئ مطالبه کوی چه جينئ ماته راکړئ. حالانکه هغه دويم واده هم کړي دي دښځي کوروالادجينئ موروغيره جينئ ورکول نه غواړی ځکه چه دجينئ پلارنيکه، نيا، ترور، وغيره نه کله چه دجينئ مور ښه نه لګی، نيزدجينئ دکيدلودوجه نه ددي مورته ئې طلاق ورکړو، نودوی به جينئ څرنګه مينې اومحبت سره اوساتي اوپرورش به اوکړی خصوصاً د ناسکه موربه ددي سره څه مينه وی ځکه چه پلارتمامه ورځ بهرکارباندي وی اوجينئ به دناسکه موړ په رحم اوکرم باندي، خلاصه داچه داجينئ ددوی نه غواړی چه دمياشتي خرچې نه بچ شو، اوس سوال دادي چه:

(۱) مورکومه پورې جينئ دخپل ځان سره ساتلی شی کله چه نکاح ثانی نه کوی.

(۲) که چرته دجينئ موردغيرسره نکاح اوکړی نوايابياهم جينئ دځان سره ساتلې شی که چرته ساتلې شی نوکومه پورې؟

(۳) که چرته نکاح دکوم رشته دارمثلادماما، دترور، دتره وغيره سره اوکړي شی نوبيائې ترکومه پورې دخپل ځان سره ساتلې شی؟

(۴) اياجينئ نيا، ترور، مامادخپل ځان سره ساتلې شی؟

(۵) کله چه مورجينئ دخپل ځان سره ساتلې وی اوځان سره ئې ساتل غواړی اوپلاردجينئ مطالبه کوی (قانون کښې خوئې نشی اخستلې) نواياپه دي صورت کښې دجينئ دپلارنه دعدالت مقررکړې شوې خرچه اخستل جائزدی يانه؟ که چرته جائزوی نوترکومه پورې اخستل جائزدی؟

(۶) که چرته خرچه اخستل بندکړې شی نوايابياهم دجينئ پلارجينئ لره اخستلې شی؟

(۷) عدالتی قانون کښې خوجينئ بالغه کيدلوپورې دمورسره اوسيدلې شی پلارئې نشی اخستلې، ليکن دشريعت څه حکم دي؟ بينوا توجروا

المستفتی: راجه غلام احمد......۲۳/۱۲/۱۹۷۵ء



**جواب:** (۱) دمفتٰی به قول په بنيادباندي نهوکالوپورې حق حضانت اوپرورش دي، ردالمحتار ۳:۸۸۲ ﴿۱﴾

(۲) د وادهٔ په وجه به داحق نياته منتقل کيږی نيزدعرف اوتجربې نه معلومه ده چه دناسکه مورسره اوسيدل ضررمحض دي لهذادپلاردامطالبه دشريعت خلاف ده (باب الحضانة ۲:۸۸۰) ﴿۲﴾

(۳) که چرته واده ددي لوردمحرم سره شوې وی نوحق حضانت به په خپل حال باقی وی ﴿۳﴾

(۴) نيا او ترورساتلې شی ﴿۴﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: والام...... احق بها بالصغيرة حتی تحيض...... وغيرهما احق بها حتی تشتهی وقدر بتسع وبه يفتیٰ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹۵ باب الحضانة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: ثم ای بعد الام بان ماتت اولم تقبل او اسقطت حقها او تزوجت باجنبی ام الام وان علت عند عدم اهلية القربیٰ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹۲ باب الحضانة)

﴿۳﴾ وفی الهندية: وانما يبطل حق الحضانة لهؤلاء النسوة بالتزوج اذا تزوجن باجنبی فان تزوجن بذی رحم محرم من الصغير كالجدة اذا كان زوجها جد الصغير او الام اذا تزوجت بعم الصغير لا يبطل حقها كذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگيريه ۱:۵۴۱ الباب السادس عشر فی الحضانة)

﴿۴﴾ قال العلامة المرغينانی: فان لم تكن له ام فام الام اولیٰ من ام الاب...... وفی رواية الخالة اولیٰ من الاخت لاب لقوله عليه السلام الخالة والدة...... ثم الخالات اولیٰ من العمات الخ.

(هداية ۲:۴۳۹ باب حضانة الولد ومن احق به)

(۵) دجینئ موردې قسمه خرچه اخستلې شی نهو کالو پورې نفقة الولد.

أجرت الرضاعة والحضانة(شامی ۲:۸۷۲)(۱)

(۶) نشی اخستلې(۲)

(۷) په ظاهرروایت کښې داحق بلوغ پورې دې لیکن په مفتی به قول کښې نهو کالو پورې دې(شامی ۲:۸۸۲)(۳) وهو الموفق

## د ولد الزنا پرورش د مور ذمه واری ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه کومه لوردحرام حمل یعنی د زنانه پیداشوې وی دهغې دپرورش ذمه وارزانی دې که مزنیه؟بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالواحدچغرمتی...... ۲۵\۳\۱۹۷۳ء

**الجواب:** دغیرثابت النسب (ولدحرام) بچی نسبت دمورطرفته کیږی. کمافی الهندیه ۴:۱۲۷ اذازنی رجل بامراة فجائت بولدفادعاه الزانی لم یثبت نسبه منه و اما المرأة فیثبت نسبه منها(۴) پس ددې بچی حضانت دمورذمه داری ده. کمافی الدرالمختار الحضانة تثبت للام النسبیه ۲:۶۸۸)(۵) وهو الموفق

(۱) قال العلامة ابن عابدين: قال فى البحر فعلى هذا يجب على الاب ثلاثة اجرة الرضاع واجرة الحضانة ونفقة الولد ومثله فى الشرنبلالية.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۹۲ مطلب فى لزوم اجرة مسكن الحضانة)

(۲) قال العلامة الحصكفى: تزوجت ام صغير توفى ابوه وارادت تربيته بلا نفقة مقدرة واراد وصيه تربيته بها دفع اليها لا اليه ابقاء لماله.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۹۰ باب الحضانة)

(۳) (مر حوالته فى شق الاول من هذا الجواب)

(۴) (فتاوىٰ عالمگيريه ۴:۱۲۷ كتاب الدعوىٰ الفصل الثامن فى دعوة الولد من الزنا وما فى حكمه)

(۵) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۸۶ باب الحضانة)



# باب الولیمة

## ولیمه مسنون ده واجب نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ددعوت ولیمه حیثیت د واجب دی یاسنت؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی اکبرخان واړی دیر...... ۳\۴\۱۹۷۹ء

**جواب:** ولیمه زمونږ په نزد مسنون ده.

**کما فی الهندیة ۵:۳۴۳ وولیمة العرس سنة وفیها مثوبة عظیمة انتهی(۱) واما فی الحدیث اولم ولو بشاة، فهذا الامر للوجوب عند بعض اصحاب الشافعی لظاهر الامر، وهو للاستحباب عند الجمهور والمعتبر ذوق المجتهد(۲). وهو الموفق**

(۱) (فتاوىٰ عالمگيرية ۵:۳۴۳ الباب الثانى عشر فى الهدايا والضيافات)

(۲) قال العلامة النووى: واما وليمة العرس فقد اختلف اصحابنا فمنهم من قال هى واجبة...... ومنهم من قال هى مستحبة.

(المجموع شرح المهذب ۱۵:۵۴۸ باب الوليمة والنثر)

وقال فى شرح مسلم: واختلف العلماء فى وليمة العرس هل هى واجبة ام مستحبة والاصح عند اصحابنا انها سنة مستحبة ويحملون هذا الامر فى هذا الحديث على الندب وبه قال مالك وغيره واوجبها داؤد وغيره.

(نووى على مسلم ۱:۴۵۸ باب فضيلة اعتاق امة ثم يتزوجها)

وقال الشيخ محمد زكريا: قال الموفق لا خلاف...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

......

## د وادهٔ نه مخکښې د ولیمې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه بعض خلق وائی چه صحبت نه مخکښې ولیمه جائزنه ده ددې شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مشتاق احمدپاک فضائیه رسالپور.......۱۹۷۲ء۱\۹\۲۶

**جواب:** ولیمه دنکاح یا واده دصحبت نه پس مسنون ده﴿۱﴾اوکوم طعام چه ددې نه مخکښې خوړلې شوې وی هغه ولیمه نه ده البته دعوت دې هغه جائزدې ځنګه چه د زوال نه پس نوافل کول صحیح دی لیکن اشراق نه دې لیکن د نوافلو نه خارج نه دې﴿۲﴾وهو الموفق

(بقیه حاشیه) بین اهل العلم ان الولیمة سنة فی العرس...... ولیست واجبة فی قول اکثر اهل العلم. (اوجز المسالک ۹: ۴۳۵ باب ماجاء فی الولیمة)

.قال الملا علی قاری: اولم ولو بشاة ای اتخذ ولیمة، قال ابن الملک: تمسک بظاهره من ذهب الی ایجابها والاکثر علی ان الامر للندب.

(مرقاة المفاتیح ۶: ۳۶۶ باب الولیمة)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: قیل انها تکون بعد الدخول وقیل عند العقد وقیل عندهما واستحب اصحاب مالک ان تکون سبعة ایام والمختار انه علی قدر حال الزوج.

(مرقاة المفاتیح ۶: ۳۶۶ باب الولیمة الفصل الاول)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: والولیمة قیل تکون بعد البناء وقیل تکون عند العقد کما فی المرقاة وغیره فما یطعم قبل العقد او البناء لا تکون ولیمة وسنة وعبادة بل یکون طعاما محضاً ونظیره ما رواه البخاری ان النبی ﷺ جعل ذبیحة من ضحی قبل الصلاة لحما لا بدعة وحراما، وبالجملة ان بفوات الوقت فی العبادات الموقتة یفوت معنی العبادة دون الحل، کیف وقال رسول الله ﷺ اذا دعا احدکم اخاه فلیجبه عرسا کان او غیر عرس رواه ابوداؤد. (منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۲۵۰ باب ماجاء فی الولیمة)



## د جینئ اوهلک والو د طرف نه د ولیمی وغیره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې دجینئ والودطرف نه په واده کښې د روټې ورکولو څه حقیقت دې اودهلک هم دنکاح نه مخکښې روټې ورکوی داځنګه ده؟ اودغیرمحارم دپاره ناوې په ډولې کښې د بوتللو څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحکیم ګندف صوابی........۱۲۲رمضان ۱۴۰۵ھ

**جواب:** دجینئ والودطرف نه چه کومه روټې ورکولې شی هغه دثواب او د ولیمې په اراده سره نه ورکولې کیږی لهذاروټې ورکول بدعت شرعی نه دې صرف یورواج دې.لکه ځنګه چه دقرآن ترجمه په نوروژبو کښې کولې شی اوهم دغه رنګ چه کومه روټې اوطعام دهلک والودطرف نه دواده اودبیاه نه مخکښې ورکولې شی دارسم دې عبادت اوولیمه نه ده ځکه چه دوولیمه د قربانئ پشان عبادت موقته دې اوکوم څاروئ چه د اختر د مونځ نه مخکښې ذبحه کړې شی هغه عبادت نه دې.البته دهغې خوراک جائزدې هم دغه شان داهم،اوکوم روټې چه د واده بیاه نه پس ورکړئ شی هغه عبادت دې ځنګه چه ختنه سنت اوعبادت دې،نعم بقی فی عصرناالرسم ورفعت الحقیقة﴿۱﴾

**تنبیه:**......لم یکن الذین یحملون هودج امهات المؤمنین من محارمهم وزفت عائشه بالنهارضحی،وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی المنهاج: الولیمة اسم للطعام فی العرس خاصة کما روی عن ثعلب وغیره وقال بعض الفقهاء انها تقع علی کل طعام لسرور حادث الا ان استعمالها فی طعام العرس اکثر، والولیمة قیل تکون بعد البناء وقیل تکون عند العقد کما فی المرقاة وغیره فما یطعم قبل العقد اوالبناء لا تکون ولیمة وسنة وعبادة بل یکون طعاما محضا، ونظیره ما رواه البخاری ان النبی ﷺ جعل ذبیحة من ضحی قبل الصلاة لحما لا بدعة وحراما، وبالجملة ان بفوات الوقت فی العبادات الموقتة یفوت معنی العبادة ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د دعوت ولیمې نه مخکښې د ګانو او ډهول وغیره په صورت کښې د ولیمې د خوړلوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ دارواج دې کله چه ناوې دزلمی کورته راوستلې شی نوتماشګیر ډول غږوی ډول غږولو کښې ځوانان خلق بهنګړا اچوی اوګډیږی اوسندرې وائی اوهم دغه شان ښځې جداځائ کښې ګډیږی اوسندرې وائی دمعامله دناوې دراوستلوپورې کوی ددې نه پس اچانک ډول اوتماشې ختمې شی بیادولیمې په تیارئ کښې ځناوروغیره ذبحه کړئ شی اوپه خوراک اوطعام کښې دعوت عام اوکړئ شی نوددې دعوت دخوړلوڅه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمیدایس وی لدهاجنوبی وزیرستان......۱۹۷۵ء۱۱۹۱

**الجواب:** چونکه دالهواولعب وغیره مقام دعوت کښې نه وی لهذاددې خوراک به مکروه نه وی، کمایشیرالیه کلامهم دعی الی ولیمة وثمة لعب اوغناء الخ (ردالمحتارکتاب الکراهیه)《۱》.وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه)دون الحل کیف وقال رسول الله ﷺ اذا دعا احدکم اخاه فلیجبه عرسا کان اوغیر عرس رواه ابوداؤد. ثم هی سنة واجابتها واجب کالسلام، واما اجابة دعوة الختان فلا بأس به عندنا کما فی الخلاصة لاینبغی التخلف عن الدعوة العامة کدعوة العرس والختان، وهوقول مالک والشافعی وقد دعی احمد الی ختان فاجاب واکل کما فی المغنی الخ.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۲۵۰،۲۵۱ باب ماجاء فی الولیمة)

《۱》قال العلامة الحصکفی: دعی الی ولیمة وثمة لعب او غناء قعد واکل لو المنکر فی المنزل فلو علی المائدة لا ینبغی ان یقعد بل یخرج معرضا لقوله تعالیٰ: فلا تقعدبعد الذکری مع القوم الظالمین.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵: ۲۴۵ کتاب الحظر والاباحة)



## بغیر د ځودنې او ریاء نه څو ورځو پورې ولیمه کول ممنوع نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه بعض خلق څو ورځو پورې دعوت ولیمه کوی ایادیوورځې نه زیاته هم ولیمه کول جائزدی؟بینوا توجروا

المستفتی: احمدمحمود لاهور

**جواب:** جائزده په دې کښې ممانعت نشته، کمافی البیهقی وعبدالرزاق وابن ابی شیبة《۱》عن السلف انهم اولموا الی سبعة ایام وثمانیة،لکن هذااذاکان مامون عن السمعة والریاء《۲》وهوالموفق

## اعلان د نکاح او وادهٔ د پاره هوائی فائرنګ کول

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دکوژدنې اوواده په

---

《۱》حدثنا ابو اسامة عن هشام عن حفصه قالت: لما تزوج ابی سیرین دعا اصحاب رسول الله ﷺ سبعة ایام فلما کان یوم الانصار دعاهم ودعا ابی ابن کعب وزید بن ثابت.

(مصنف ابن ابی شیبة ۲،۴: ۳۱۳ من کان یقول یطعم فی العرس والختان)

وهکذا فی (سنن کبریٰ للبیهقی ۷: ۲۶۱ باب ایام الولیمة) والتفصیل فی اعلاء السنن ۱۱: ۱۳ باب جواز الولیمة الی ایام ان لم یکن فخرا.

《۲》وفی المنهاج: عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ طعام اول یوم حق وطعام یوم الثانی سنة وطعام یوم الثالث سمعة ومن سمع سمع الله به (ترمذی) قوله ویوم الثالث سمعة یشیر الحدیث الی کراهة ما یکون فیه سمعة، فما رواه ابن ابی شیبة والبیهقی وعبد الرزاق عن السلف انهم اولموا الی سبعة ایام وثمانیة فمحمول علی الامن من السمعة والریاء وحدیث الباب محمول علی الغالب.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۲۵۲ باب ماجاء فی الولیمة)

دوران کښې دټوپک اوتمانچې چلولوسره دفائرنګ کولوڅه حکم دې؟ایاپه دې طریقې باندې اعلان نکاح جائزده؟بینوا توجروا

المستفتی: عطاءالله متعلم حقانیه......۱۹۸۳ء۱۲۱۱۲۴

**جواب:** که چرته داګولۍ الـه دحرب وی اوسامان جنګ وی نود حدیث، واستبقوا نبلکم، په بنیادبه داروپه ممنوع وی.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ۲: ۳٦۱ باب فی الصفوف کتاب الجهاد)

......



# باب حقوق الزوجین

## د ښځې خاوند په یو بل باندې حقوق او د کور د اختلافاتو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسائیلو باره کښې (۱) دښځې خاوندپه مزاج کښې حد درجه فرق، اختلافات دفکراونظراوجهګړودمسلک دوجه نه ښځه دومره پریشانه اوبیزاره ده چه اوس دصلحې ګنجائش نه لری اوپه جدایئ باندې سخته په ضد ده، که اوس چرته هغه ازدواجی بندهن کښې وی نو د خاوند دحقوق داداکولونه به قاصرهٔ وی ددې وجه نه هم چه هرځل دصلحې نه پس بیاهم دغه شان شی نتیجتاسخت ذهنی اواعصابی تکلیف وی ایاښځه د جدا کیدلومطالبه کولې شی؟ (۲) ایا خاوندښځې لره ددې دمرضې نه بغیر دملک نه بهرعارضی یامستقل اوسیدلوباندې مجبوره کولې شی حالانکه دنکاح په وخت داسې څه شرط نه وی کیښودلې شوې؟(۳)ایاښځه دخاوندنه روټۍ اوکپړواخستلونه علاوه دنوروضروریاتودپاره دجیب دخرچې په طور باندې دخه نغدې اخستلوشرعی حقداره ده؟(۴)عملی زندګئ کښې دیوفریق کیدلوپه حیثیت سره ښځه دخاوندد ګټې په معاملاتو کښې مداخلت کولې شی اوڅومره حده پورې؟(۵) شرعاد کورکوم کارماردښځې په فرائضوکښې داخل دې؟(٦) د خاوندحقوق دښځې دمورپلارپه حقوق باندې مقدم کیدل خو معلوم دی لیکن دسخرګنې په حق کښې هم داحدیث وئیلې شی چه دواده پس ښځې دپاره دخواښې اوسخرحقوق په دې باندې دخپل پلاراومورپه حقوقوباندې مقدم دی ایاداصحیح ده؟(۷)که چرته خاونددښځې په پریخودلو باندې راضی نه وی لیکن دښځې بیزاری دحدنه ډیره وی چه دا پخپله دمورپلارخواه ته ځی دخاوندسره داوسیدلونه انکاراوکړی ددې څه حکم دې؟(۸)که چرته دمورپلارپه مینځ کښې داسې خفګان وی چه دهغې په

نتیجه کښې مورطلاق اخستلوسره یادطلاق اخستلونه بغیرځانله اوسیږي نو پلار شرعًا اولادمورته دتللونه یاحسن سلوک کولونه منع کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: منشی عبدالغفورشبقدرفورټ.......۲۱/۱۲/۱۹۷۲ء/۱۸

**جواب:**(۱)واضحه دې وی که چرته داسړې (خاوند) دضروریات دین نه منکر وی مثلادپیغمبرعلیه سلام دبشریت نه منکروی یاغیرالله دپاره علم کلی یا تسلط غیبی (من حیث العلم والقدرة) مَنی نوداسړې کافراومرتددې.﴿۱﴾دده ښځه آزاده ده. قال الله تعالی: لاهن حل لهم ولاهم یحلون لهنّ﴿۲﴾اوکه چرته دا سړې دکفردرجې ته نه وی رسیدلې نودعدم موافقت دوجهې نه د جدا کیدلو مطالبه به ممنوع نه وی، کمافی حدیث حبیبة بنت سهل لاانا ولاثابت بن قیس لزوجها(رواه ابوداود ۱:۳۰۳)﴿۳﴾.(۲) موجوده پرفتن دورکښې خاوندته داحق حاصل نه دې چه ښځه دخپلې مرضې نه بغیرسفرباندې بوزی، کمافی الهندیه ۱:۵۶۶ اما فی زماننا فلایملک الزوج ان یسافر بهاوان اوفی صداقها کذا

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفي: والکفر شرعا تکذیبه صلی الله علیه وسلم فی شیئ مما جاء به من الدین ضرورة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۱۱ باب المرتد)

﴿۲﴾(سورة الممتحنة پاره:۲۸ رکوع:۲ آیت: ۱۰)

﴿۳﴾عن حبیبة بنت سهل الانصاریة انها کانت تحت ثابت بن قیس بن شماس وان رسول الله صلی الله علیه وسلم خرج الی الصبح فوجد حبیبة بنت سهل عند بابه فی الغلس فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم من هذه قالت انا حبیبة بن سهل قال ما شانک قالت لا انا ولا ثابت بن قیس لزوجها فلما جاء ثابت بن قیس قال له رسول الله صلی الله علیه وسلم هذه حبیبة بنت سهل فذکرت ما شاء الله ان تذکرو قالت حبیبة یا رسول الله کل ما اعطانی عندی فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم لثابت بن قیس خذ منها فاخذ منها وجلست فی اهلها.

(سنن ابی داؤد ۱:۳۰۳ باب فی الخلع کتاب الطلاق)



پنجم جلد 15

فی المحیط﴿۱﴾.(۳) په خاوندباندې داضروری نه ده چه ښځې ته تفکه اوتلذذ دپاره دجیب خرچه ورکړی، کمافی الردالمحتار ۲:۸۹۳ فکل من الدواء والتفکه لایلزم﴿۲﴾وفی الهندیه ۱:۵۶۹ واما ما یقصدبه التلذذ والاستمتاع فلایلزم بل هوعلی اختیاره ان شاء هیأه لها وان شاء ترکه(بحذف یسیر)﴿۳﴾.(۴) ښځې ته داحق حاصل نه دې چه دخاوندپه معاملاتواواموالوکښې آمرانه مداخلت اوکړی البته مشیرانه مداخلت نه ممنوع نه ده(۵)دکورد داخلی امورو سرانجام کول دښځې حق اوذمه واری ده(ماخوذازردالمحتار ۲:۸۹۳)﴿۴﴾.(۶)په ښځې باندې دخواښې اوسخراحترام ضروری دې باقی دامسئله چه ددوی حق والدینو باندې مقدم دې نه دې صحیح، مزیدتفصیل دپاره بهشتی زیورلره مراجعت کړئ﴿۵﴾.(۷) بغیرداذن شرعی ښځې دپاره دمورپلارپه کورکښې اوسیدل ناجائزدی البته دهلاکت اوناقابل برداشت وهلوټکولونه اود ناجائزجماع وغیره امورو دوجهې نه تختیدل جائزدی.(۸) دپلاردپاره داحق نشته چه اولاد لره خپلې مورته دتللونه اودحسن سلوک نه منع کړی. وهوالموفق

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۴۵ الباب السابع عشر فی النفقات الفصل الاول)

﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷۰۵ قبیل مطلب فی اخذ المرأة کفیلا بالنفقة)

﴿۳﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۴۹ الباب السابع عشر فی النفقات الفصل الاول)

﴿۴﴾قال العلامة الحصكفي: ولا یجوز لها اخذ الاجرة علی ذلک لوجوبه علیها دیانة ولو شریفة لانه علیه الصلاة والسلام قسم الاعمال بین علی وفاطمة فجعل اعمال الخارج علی علی رضی الله عنه والداخل علی فاطمة رضی الله عنها مع انها سیدة نساء العالمین بحر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷۰۴ باب النفقة)

﴿۵﴾قال الشاه اشرف علی التهانوی: علاقه د مصاهرة یعنی د سخرګنئ رشته په قرآن کښې الله تعالی په نسب کښې ذکرکړې ده، ددې نه معلومه شوه چه دخواښې اوسخر اود اوخی اود خور دخاوند او اینګور اود ښځې دمخکنی اولاد او دغسې د خاوند د ړومبی اولاد هم څه حق وی په دې وجه دې نسبتونو کښې هم رعایت، احسان او اخلاق د نورونه زیات ساتل پکاردی.(بهشتی زیور ۳۲۶ څلورمه حصه دحقوقو بیان)

## د دوؤ ښځو اود دوی په اولاد کښې د حقوق د تقسیم او د میراث مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه(۱)دیو سړی دوه ښځې دی خاوندباندې ددوی څه حقوق کیدلې شی کم یازیات یامساوی؟(۲)آیا د مهر دعوض نه بغیردې ته دخاوندپه جائیدادمنقوله کښې اوپه غیرمنقوله کښې څه حصه به میلاویږی یانه؟(۳)دهریوښځې نه دوه دوه ځامن اویوه لور موجودده ددوی په مینځ به جائیدادپه کومه طریقه تقسیم کیږی؟(۴)په رڼا د شریعت کښې دیوې ښځې اولادته زیات اوبلې ښځې اولادته کم ورکول پکار دی یامساوی تقسیمول پکاردی؟ بینوا توجروا

المستفتی:میرمحمدخان c/o کفایت الله دکانداربازارچترال ۱۹۷۵ء/۵/۱۳

**جواب:**(۱)اموراختیاریه مثلانغد.لباس. قسم(نوبت)کښې مساوات ضروری دی(شامی)﴿۱﴾.(۲)دخاونددمرګ نه پس په دې ښځوباندې به ټوله دمیراث اتمه حصه تقسیم کیږی﴿۲﴾. اواولادباندې به للذکرمثل حظ الانثیین تقسیم ضروری وی﴿۳﴾.(۳)په ژوندګئ(حین حیات) کښې دتقسیم په وخت سړی او

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفى: يجب ان يعدل فيه اى فى القسم بالتسوية فى البيتوتة وفى الملبوس والمأكول والصحبة لا فى المجامعة كالهبة، قال العلامة ابن عابدين: ففى الخانية ومما يجب على الازواج للنساء العدل والتسوية بينهن فيما يملكه والبيتوتة عندهما للصحبة والمؤانسة لا فيما لا يملكه وهو الحب والجماع.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۳۲ باب القسم)

﴿۲﴾وفى الهندية: واما الثمن ففرض الزوجة او الزوجات اذا كان للميت ولد او ولد ابن.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۶: ۴۵۰ الفروض المقدرة فى كتاب الله تعالىٰ ستة)

﴿۳﴾وفى الهندية: واذا اختلط البنون والبنات عصب البنون البنات فيكون للابن مثل حظ الانثيين كذا فى التبيين.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۶: ۴۴۸ الباب الثانى فى ذوى الفروض)



ښځې ته به یوشان حصه ورکولې شی(هندیة)﴿۱﴾.(۴)په ژوندګئ کښې د اولاد په رضامندئ سره فرق کول صحیح دې کله چه هغوی بالغ وی.نیز دحاجت او تدین اودعیالدارئ دوجه نه هم فرق جائزدې(هندیه)﴿۲﴾وهوالموفق

## ښځه د مستقل ځان ته کورمطالبه کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه هندې واده اوکړو خو لیکن دهندې سکنی.نان.اونفقه بسراوقات په داسې نامناسب ماحول کښې دې چه هلته دزیدرورسره دعیال اواطفال په یومشترکه صحن والاکورکښې اوسیږی خوړل څکل ټول مشترکه دی دزیدښځې ته دزیددروراوبال بچ نه څه داسې دل خراشه تکلیفونه مخې ته راځی چه هغه دبرداشت قابل نه دی اوس هندې دځان دپاره دجداکورمطالبه کړې ده ایادهندې دامطالبه شرعاصحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی:قاضی غلام اصفیاءقریشی سرائے صالح هری پور ۱۹۷۴ء/۸/۲۳

﴿۲،۱﴾وفى الهندية: ولو وهب رجل شيئا لاولاده فى الصحة واراد تفضيل البعض على البعض فى ذلك لا رواية لهذا فى الاصل عن اصحابنا وروى عن ابى حنيفة رحمه الله تعالىٰ انه لا بأس به اذا كان التفضيل لزيادة فضل له فى الدين وان كانا سواء يكره وروى المعلى عن ابى يوسف رحمه الله تعالىٰ انه لا بأس به اذا لم يقصد به الاضرار وان قصد به الاضرار سوى بينهم يعطى الابنة مثل ما يعطى للابن وعليه الفتوىٰ هكذا فى فتاوىٰ قاضى خان وهو المختار كذا فى الظهيرية. رجل وهب فى صحته كل المال للولد جاز فى القضاء ويكون آثما فيما صنع كذا فى فتاوىٰ قاضى خان وان كان فى ولده فاسق لا ينبغى ان يعطيه اكثر من قوته كيلا يصير معينا له فى المعصية...... ولو كان الولد مشتغلا بالعلم لا بالكسب فلا بأس بان يفضله على غيره.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۴: ۳۹۱ الباب السادس فى الهبة للصغير)

**جواب:** په خاوند باندې فرض دی چه ښځې ته مستقله حجره (کور) بغیر د شرکت غیرنه ورکړی ګنی ګنهګار به وی.

کما فی الدر المختار: و کذا تجب لها السکنی فی بیت خال عن اهله وبیت منفرد من دار له غلق کفاها وفی البحر عن الخانیة یشترط ان لا یکون فی الدار احد من احماء الزوج یوذیها بحذف یسیر هامش ردالمحتار ۲: ۹۱۲ اقره ردالمحتار ﴿۱﴾ وهکذا فی نفقة الهندیة المشهورة بالعالمگیریة ۱: ۵۷۶ ﴿۲﴾. وهو الموفق

## په ښځوکښې د مساوات نه کولو والا او بالغه لور په نکاح کښې نه ورکولو والا په ظلم کښې مبتلا دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړی دوه ښځې دی د یو ښځې سره ئې تعلقات خوشګواردی او د دویمې سره نه او تلل راتلل هم ډیر مشکل سره کوی نیزددې سړی لور د شپږ کالو راهسې بالغه ده ددې ئې هم څه ناطه وغیره تراوسه پورې نه ده کړې او نه څه اراده لری ددې سړی څه حکم دې او دده دامامت څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام محمدنئ آبادی راولپنډی...... ۱۹۷۵ء۱۱۱۹

**جواب:** په ښځو کښې عدل او مساوات ضروری دې ﴿۳﴾ او بالغه لور په یو مناسب

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۱۹، ۷۲۰ مطلب فی مسکن الزوجة)

﴿۲﴾ قال العلامة النظام: تجب السکنیٰ لها علیه فی بیت خال عن اهله و اهلها الا ان تختار ذلک کذا فی العینی شرح الکنز...... و امرأة ابت ان تسکن مع ضرتها او مع احمائها کأمه وغیرها فان کان فی الدار بیوت وفرغ لها بیتا وجعل لبیتها غلقا علی حدة لیس لها ان تطلب من الزوج بیتا آخر فان لم یکن فیها الا بیت واحد فلها ذلک الخ.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۵۵۶ الفصل الثانی فی السکنیٰ، النفقات)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ومما یجب علی الازواج للنساء العدل و التسویة بینهن فیما یملکه والبیتوتة عندها للصحبة و المؤانسة لا فیما لا یملک......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



ځائی کښې په نکاح کښې ورکول یو اهم امر دې ﴿۱﴾ پس که چرته دا سړې په دې ظلم او عضل کښې مبتلا وی په ده پسې صالحینو اقتداء مکروه ده ﴿۲﴾.
وهو الموفق

## د نومسلمې ښځې د پاره د مور پلار کورته تللو او د هغوی سره د خورد و نوش مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی په فوج کښې د ملازمت په دوران کښې یوه عیسائنړه ښځه مسلمانه کړه او دهغې سره ئې نکاح او کړه، د واده تقریبا څلور کاله شوی دی په دې دوران کښې دا نومسلمه ښځه تقریبا څلور مرتبه د خپل مور پلار او نور و رشته دارانو سره تقریبا اته میاشتې سکونت اختیار کړو. ایا شرعا یوه مسلمانه ښځه د سابقه رشته دارانو سره، هغه چه عیسائی مذهب والاوی، خورد و نوش کولې شی او مونږ مسلمانانو خلقو ته داسې ښځې سره تعلق ساتل یعنی خوراک سکاک کول جائزدی؟ بینوا توجرو

المستفتی: راجه ګل مبارک کهوټه راولپنډی..... ۱۹۷۷ء۱۸۱۲۱

(بقیه حاشیه) وهو الحب و الجماع کذا فی فتاویٰ قاضی خان.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۴۰ الباب الحادی عشر فی القسم)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: (قال قال رسول الله ﷺ اذا خطب الیکم) ای طلب منکم ان تزوجوه امرأة من اولادکم واقاربکم (من ترضون) ای تستحسنون (دینه وخلقه فزوجوه) ای ایاها (ان لا تفعلوه تکن فتنه فی الارض وفساد عریض) ای ذو عرض ای کثیر لانکم ان لم تزوجوها الا من ذی مال اوجاه ربما یبقی اکثر نسائکم بلا ازواج واکثر رجالکم بلا نساء فیکثر الافتتان بالزناء وربما یلحق الاولیاء عار فتهیج الفتن والفساد ویترتب علیه قطع النسب وقلة الصلاح والعفة.
(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة المصابیح ۶: ۲۷۱ کتاب النکاح الفصل الثانی)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: فالحاصل انه یکره لهؤلاء التقدم ویکره الاقتداء بهم کراهة تنزیه...... وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة.
(البحر الرائق ۱: ۳۴۹ باب الامامة)

**جواب**: داسې نومسلمه ښځه دمورپلار کورته تللې شي《۱》البته خوردونوش کښې محرماتو شرعیه نه اجتناب ضروری دې. نیزددې نومسلمې ښځې سره تعلقات ساتل اوخور دنوش کول جائزدی. وهوالموفق

## د ښځې د اجازت نه بغیر څلور میاشتې یا د څلورو میاشتو نه زیات سفر اختیارولو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مونږ خلق په عربستان کښې دمحنت اومزدورۍ په سلسله کښې مقیم یو دمجبورۍ دوجه نه څلور کاله پس کورته راځو حالانکه څه شادی شده یم ددې شرعی حکم څه دې او د عدمې مجبورۍ په صورت کښې هم شرعی حکم واضح اوفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: بابرحسین ابوظهبی یواې ای..... ۱۴۰۱۱۷۱۲ھ

**الجواب**: دښځې په اجازت سره څلورمیاشتې یاددې نه زیات وخت بهراوسیدل ګناه نه ده. بغیرداجازت نه ګناه ده《۲》.......

---

《۱》قال العلامة الحصکفی: ولا یمنعها من الخروج الی الوالدین فی کل جمعة ان لم یقدرا علی اتیانها علی ما اختاره فی الاختیار ولو ابوها زمنا مثلا فاحتاجها فعلیها تعاهده ولو کافرا وان ابی الزوج الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۲۷ قبیل مطلب فی منع النساء من الحمام)

《۲》قال العلامة الحصکفی: ویجب دیانة احیانا ولا یبلغ مدة الا یلاء الا برضاها ویؤمر المتعبد بصحبتها احیانا، قال العلامة ابن عابدین: فی الفتح واعلم ان ترک جماعها مطلقا لا یحل له صرح اصحابنا بان جماعها احیانا واجب دیانة لکن لا یدخل تحت القضاء والالزام الا الوطأة الاولیٰ ولم یقدروا فیه مدة ویجب ان لا یبلغ به مدة الایلاء الا برضاها وطیب نفسها به...... ثم قوله وهو اربعة اشهر یفید ان المراد ایلاء الحرة ویؤید ذلک ان عمر رضی الله تعالیٰ عنه لما سمع فی اللیل امرأة تقول: فو الله ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



فرض عین ددې نه مستثنٰی دې.《۱》وهوالموفق

## په موجوده دورکښې ښځې لره په سفربانديې د بوتللومسئله

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه درې کاله مخکښې دیو هلک اوجینۍ په مینځ کښې نکاح اوکړې شوه. په افغانستان باندې د روسی قبضې نه پس دهغه ځائی دینداروخلقو هجرت اوکړواوپه پاکستان وغیره ملکونوکښې ئې زندګی تیروله. اوس داخاوندفی الحال په افغانستان کښې دې اوجینۍ اودجینۍ مورپلارپاکستان ته هجرت اوکړو. خاونددامطالبه کوی چه څه خپله ښځه افغانستان ته راولم حالانکه جینۍ سره دمورپلارددې وجه نه انکارکوی چه ډیرې ښځې روسیانوافغانستان نه بوتلې دې دپاره

---

(بقیه حاشیه)لو لا الله تخشیٰ عواقبه ☆ لزحزح من هذا السریر جوانبه، فسأل عنها فاذا زوجها فی الجهاد فسأل بنته حفصة کم تصبر المرأة عن الرجل فقالت اربعة اشهر فامر امراء الاجناد ان لا یتخلف المتزوج عن اهله اکثر منها، ولو لم یکن فی هذه المدة زیادة مضارة بها لما شرع الله تعالیٰ الفراق بالایلاء فیها.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۳۲ باب القسم کتاب النکاح)

《۱》وفی المنهاج: قال فقهاءنا فی باب القسم بان جماع الزوجة احیانا واجب دیانة ولم یقدروا فیه مدة ویجب ان لا یبلغ به مدة الایلاء الا برضاها وطیب نفسها به فلیراجع الی فتح القدیر وردالمحتار، وفیه عبرة لمن خرج لطلب العلم او للجهاد او للتبلیغ والاصلاح بغیر رضاء الزوجة لاربعة اشهر او اکثر منها، ولا یأتیها فی تلک المدة بما امر به شرعا، لا سیما اذا عد هذه الفعلة قربة ولا سیما اذا مر علی قریته وبیته والتزم ما لا یلزمه شرعا من عدم دخول بیته واتخذ ما یلزمه شرعا ظهریا فاعاذنا الله تعالیٰ من هذه الجریمة ومن سائر الالتزامات التی اذا ارتکبوها یعدونها قربات واذا فعلها غیرهم یجعلونها بدعات.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴: ۳۱۸ باب ماجاء فی اللعان)

مونږ واده درکوومګرپه دې شرط باندې چه داافغانستان ته نشې بوتللې ترهغه پورې چه روس دافغانستان نه اووځی اوس شرعی حکم څه دې آیا دا جینئ دخاوندسره دافغانستان سفراختیارولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمودااحاطه مدنیه جامعه حقانیه......۱۱\۵\۱۹۸۳ء

**جواب:** موجوده دور کښې خاوندخپله ښځه په مسافرت باندې نشی بوتللې.

**کما فی الهندیة ۱ :۵۶۶ قال الشیخ الامام ابو القاسم الصفار، هذا کان فی زمانهم اما فی زماننا فلا یملک الزوج ان یسافر بها وان او فی صداقها کذا فی المحیط﴿۱﴾. والله اعلم**

## د نافرمانې ښځې نه بطور تعزیر جدا بستره باندې اوده کیدل جائزدی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمادوه ښځې دی ددوی نه یوه بداخلاقه بدعادته اونافرمانه ده اوددویمې اخلاق اوعادت د فرمانبرداریٔ دی ایاځه دددې نافرمانه ښځې نه خواب ګاه جداکولې شم؟ بنیوا توجروا

المستفتی: شیرمناراکلې صوابې........۱۲رجب ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** تاسودې نافرمانې ښځې لره ددې دموقعې په ورځوکښې داتعزیر ورکولې شئ چه ددې نه په جدابستره باندې اوده شئ البته دویمې ښځې ته به ددې داموقعه نه ورکوې﴿۲﴾. وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱ :۵۴۵ الباب السابع عشر فی النفقات نفقة الزوجة)**

**﴿۲﴾ قال الملاجیون الجونفوری: فی قوله تعالیٰ: (واللاتی تخافون نشوزهن) ای اعراضهن (فعظوهن) ای انصحوهن للاطاعة فان لم ینفع النصح (فاهجروهن فی المضاجع) ای فی المراقد فلا تدخلوهن تحت اللحاف او لا تجامعوهن او ولوها ظهر کم فی المضجع اوالمضاجع المبایت ای لا تبایتوهن فی المبایت وقیل معناه اکرهو هن علی الجماع واربطوهن نص به فی الکشاف فان لم ینفع الهجران (فاضربوهن) الخ.**

**(التفسیرات الاحمدیة ۲۷۳ بیان آداب صحبة الرجل مع المرأة والعشرة معها)**



## د یوې ښځې سره زیات محبت کول د نورو ښځو په حق تلفیٔ کښې شامل نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړې دې دهغه درې ښځې دی دده دیوښځې سره قلبی میلان اومحبت زیات دې اود نورو ښځو سره دومره محبت نه ساتی. البته په نان نفقه اوخرچه وغیره کښې برابری کوی آیا داسړې په دې قلبی میلان اومحبت کښې دنوروښځوحق تلفی نه کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحیم ګل کوهاله مری......۲۵\۷\۱۹۷۴ء

**جواب:** که چرته داسړې په نوبت اونان نفقه کښې عادل وی نوپه دې اختیاری اموروکښې دعدل دوجه نه ماخوذنه دې اوپه غیراختیاری امورومثلاً په محبت اوجماع کښې کمی اوزیاتی سره هم ماخوذنه دې.

**وفی الهندیة ۱ :۳۴۰ ومما یجب علی الازواج للنساء العدل والتسویة بینهن فیما یملکه والبیتوتة عندها للصحبة والمؤانسة لا فیما لا یملک وهو الحب والجماع﴿۱﴾. وهوالموفق**

## د بد اخلاقې ناسکه مور او پلارسره د لا تعلقیٔ حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی څلورځامن او درې لوریانی دی مشرهلک کمائی والادې په دې دوران کښې د بچو مور وفات شوې ده اوپلارئې دویم واده کړې دې دنوې ښځې نه دسابقه خاوند څلورځامن اویوه لورده چه هغه ټول واړه دی ددې نوې ښځې نه د پلار نور پنځه هلکان پیداشول ددوی نان اونفقه هم دمخکښې څلوروذمه واری ده دا څلورهلکان ځوانان شول یوپه کښې واده اوکړواوخرچه هم مخکښې څلورو برداشت کړه داپینځه بچیان بې نمازه اوبداخلاقه دی ناسکه مورترننه پورې دمخکښې څلوروهلکانوانتهائی دَبې عزتیِ مظالمِ وغیره اوکړو. د زناکاریٔ

---

**﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱ :۳۴۰ الباب الحادی عشر فی القسم)**

الزامات ئې اولګول. پلارئې هم تائید کوی. پلار دي څلور ځامنو حج ته هم استولی دی داڅلور هلکان نمازی او حاجیان دی. دا ښځه څو مرتبه د کور نه تختیدلې ده او د طلاق مطالبه ئی هم څو مرتبې کړې ده ټول رونړه د پلار نه ناراضه دی د نور فسادنه بچ کیدلو د پاره څلورو هلکانو هم د پلار سره تعلق قطعه کړی دی مکرروپیۍ ورکوی. د داسې مور او پلار متعلق د دې لاتعلقې په شریعت کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد جلال ګجرانواله...... ۱۹۸۴ء/۵/۲۱

**جواب:** داسې ښځه ساتل خلاف مصلحت دې خلاف شریعت نه دې ﴿۱﴾ او په داسې صورت کښې اولاد د پلار وغیره سره لاتعلقی کول خلاف شریعت نه دې ﴿۲﴾. وهو الموفق

## خاوند د پاره خپلې ښځې ته غسل، کفن، دفن ورکول او په آخرت کښې د خاوند سره د کیدلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړی ښځه وفات شوه ایا د وفات کیدلو نه پس خاوند د پاره اجازت دې چه د میت کتې او چتول او هم د غه رنګ په قبر کښې ایخودل او کفن او غسل ورکول وغیره. بعض عالمان وائی چه قطعا اجازت نشته ځکه چه د خاوند او ښځې په مینځ کښې چه کوم نکاحی تعلق قائم وو هغه اوس ختم شوې دې او ښځه اجنبی ګرځیدلې ده. حالانکه بعض عالمان وائی چه دا خدمت حرام نه دې. فریق اول وائی چه په جنتونو کښې تفاوت دې او په اهل جنت کښې هم تفاوت دې،

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: وایقاع الطلاق مباح عند العامة...... وقیل قائله الکمال الاصح حظره ای منعه الا لحاجة کریبة وکبر والمذهب الاول کما فی البحر وقولهم الاصل فیه الحظر معناه ان الشارع ترک هذا الاصل فاباحه بل یستحب لو مؤذیة او تارکة صلاة غایة ومفاده ان لا اثم بمعاشرة من لا تصلی.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۰ کتاب الطلاق مقدمه)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: (قوله ولا تعق والدیک) ای لا تخالفهما او احدهما فیما لم یکن معصیة اذ لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق.

(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ۱: ۲۳۵ باب الکبائر الفصل الثالث)



لاجل تفاوت الاعمال لهذا د خپلې خپلې درجې په جنت کښې به اوسیږی، او فریق ثانی وائی چه چونکه د اهل جنت په مینځ کښې آمد و رفت دې او په دواړو کښې د ملاقات شرف هم دې او ښځه اجنبی هم نه ده په دې کښې کومه مسئله صحیح ده؟ (۲) که چرته خاوند مړ شو او ښځې دویمه نکاح اوکړه نو په آخرت کښې به دا ښځه د اول خاوند سره وی که د دویم خاوند سره؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالحلیم شکرزئ منصفی روډ کوئټه ۱۷ محرم ۱۳۹۲ھ

**جواب:** (۱) خاوند د ښځې د غسل او د مس نه منع کړې شوې دې البته د نظر کولو نه نه دې منع کړې شوې، نیز قبر ته د ختکته کولو په حق کښې د غیر محارم نه مقدم کړې شوې دې. فی الدرالمختار: ویمنع زوجها من غسلها ومسها لامن النظر الیها علی الاصح ﴿۱﴾ باقی ښځه خاوند کله چه دواړه مسلمانان وی نو په دې کښې کوم ښکته درجې والا وی دې به الله تعالی د اوچتې درجې والا رفیق جوړه وی (۲) ښځه به جنت کښې د آخری خاوند سره وی، وهو المرجع لان النبی صل الله علیه وسلم تزوج من مات ازواجهن، او بعض عالمان وائی چه دې ښځوته به اختیار ورکړې شی، والاختلاف مذکور فی مجموعة الفتاوٰی ۳: ۲۵۶ ﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۳ قبیل مطلب فی حدیث کل سبب ونسب باب صلاة الجنازة)

﴿۲﴾ قال العلامه عبدالحئ اللکهنوی: د بعضې روایاتو نه ثابتیږی چه د قیامت په ورځ به ښځې ته اختیار ورکولې شی چه خپلو هغه خاوندانو کښې کوم چه په دنیا کښې وو یو خاوند کوم سره چه مو په دنیا کښې زیات موافقت (محبت) وو اختیار کړه. په معجم طبرانی کښې د حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې:
قلت یا رسول الله صلی الله علیه وسلم المرأة تزوج الزوجین والثلثة والاربعة ثم تموت فتدخل الجنة ویدخلون معها من یکون زوجها منهم قال انها تخیر فتختار احسنهم خلقا فتقول یا رب ان هذا کان احسنهم خلقا فی دار الدنیا فزوجنیه یا ام سلمة ذهب حسن الخلق......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په ښځې باندې د خاوند او سخر خدمت لازم نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې که چرته یوه ښځه د خاوند د مور پلار نه تنګه راغلې وی او راضی نه وی نو که چرته دا خدمت نه کوی نو آیا شرعًا دا مجرمه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید انور معرفت حافظ محمد ایوب صاحب مانکی ۱۹۸۲ء/۷/۱۲

**جواب:** خاوندې اګرچه په مثل د مور ده لروایة وردت بذلک لیکن دې سره دا لازمه نه ده چه په دې باندې به د سخر یا د خاوندې خدمت ضروری وی، وهو الموفق

## د مباشرت جائز او ناجائز صورتونه

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د مباشرت صحیح طریقه څه ده؟ تحریری جواب سره د شکریه موقع راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټر........ګلوزئ پشاور...... ۱۹۸۴ء/۱۱/۲

**جواب:** د خولې او د دُبر نه اجتناب کوئ د حیض او نفاس په حالت کښې هم د نوم

---

(بقیه حاشیه) بخیرالدنیا والآخرة. او په معجم طبرانی او مسند بزار او مکارم اخلاق د خرائطی کښې د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې:

**ان ام حبیبة قالت یا رسول الله صلی الله علیه وسلم المرأة تکون لها الزوجان فی الدنیا تموت ویموتان منهما فیجتمعون فی الجنة لایهما تکون فقال لا حسنهم خلقا کان عندها فی الدنیا،**

او د بعضې روایاتو نه معلومیږی چه دغه ښځه به آخری خاوند ته ورکولې شی، په طبقات ابن سعد کښې د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه روایت دې: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول ان المراة لآخر ازواجها فی الآخرة. په ظاهر به دا صورت هغه وخت وی کله چه د دې ټول خاوندان په حسن خلق کښې برابر وی. والله اعلم

(مجموعة الفتاویٰ للکهنوی ۳:۲۵۶ کتاب المتفرقات)



نه تر پتونه پورې د اندامونو نه نفعه مه اخلئ ﴿۱﴾ باقی ټول کیفیات جائز دی ﴿۲﴾. وهو الموفق

## د حاملې ښځې سره صحبت بغیر د ضرر نه هر وخت جائز دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د حاملې ښځې سره څو مره وخته پورې صحبت کول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شمس الرحمٰن..... ۱۹۷۹ء/۸/۹

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویمنع...... قربان ما تحت ازار یعنی ما بین سرة ورکبة ولو بلا شهوة وحل ما عداه مطلقا...... ویکفر مستحله کما جزم به غیر واحد وکذا مستحل وطء الدبر عند الجمهور. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۲۱۴، ۲۱۸ باب الحیض)

﴿۲﴾ قال العلامة ملا جیون: (یسألونک عن المحیض) الآیة وان کانت تدل ظاهرا علی الاعتزال عن النساء وعدم القرب منهن مطلقا کما فعله الیهود ولکن معناها علی حسب ما قالوا ان الحیض او موضع الحیض اذی ای نفرة وکراهة فاعتزلوا النساء فی المحیض بحیث لا تستمتعوا بهن فالمحیض مصدر ویقال حاضت محیضا اوالمراد به موضع الحیض (قل هو اذی) ولم یقل انهن اذی اشارة الی ان الحیض لا ینجس بدنها ولکن کنی عن الحیض بالمحیض الذی هو محل الحیض...... (ولا تقربوهن حتی یطهرن) معناه لا تقربوهن مجامعین اولا تقربوا جماعهن حتی یطهرن عن العذر...... (من حیث امرکم الله) یعنی اتیانکم النساء واجب من مکان امرکم الله به وهو القبل الذی هو موضع الحرث فیحرم ضده...... (ان الله یحب التوابین) عن اتیانهن فی حالة الحیض وفی ادبارهن)...... نسائکم حرث لکم فاتوا حرثکم انی شئتم) وهو بیان وتوضیح لقوله تعالیٰ: (من حیث امرکم الله) ای نساء کم موضع الحرث لکم فجامعوهن فی موضع الحرث کیف شئتم وعلی ای حال شئتم بارکة او مستقبلة او مضطجعة او قائمة او قاعدة الخ.

(التفسیرات الاحمدیة ۱۰۸، ۱۰۹ بیان حرمة القربان فی حالة الحیض)

**جواب:** دحاملې ښځې سره جماع هروخت جائزده﴿۱﴾البته دضررپه صورت کښې ناجائزده

## په حالت حمل کښې جماع کول او د ښځې د سينې رودلوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه (۱)که چرته دچاښځه حامله شی نوترشپږومیاشتوپورې ددې سره مباشرت نقصان ده نه دې لیکن شپږمیاشتې پس کله چه حمل دروند شی په دې صورت کښې دمباشرت څه حکم دې؟ (۲) دښځې سره د زړه لګې کولووخت کښې سینه څکل. خله کښې نیولوسره څکل دشریعت په رڼاکښې څه حکم لری؟نکاح باندې ددې څه اثر پریوزی یانه؟بینوا توجروا

المستفتی: دلباغ محمد کوهاټ

**الجواب:** (۱) په حالت حمل کښې یو وخت هم جماع کول ممنوع نه ده﴿۳﴾البته

---

﴿۱﴾یدل علیه ما فی الهندیة: اذا اقر الزوج ان الحبل منه فالنکاح صحیح بالاتفاق وهو غیر ممنوع من وطئها فتستحق النفقة عند الکل کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۴۶ النفقات الفصل الاول فی نفقة الزوجة)

قال الملا علی قاری: (عن نافع عن ابن عمر قال نهی رسول الله ﷺ ان توطأ الحبالی) ای عن مجامعة الحوامل من الاساریٰ او غیرهن (حتی یضعن ما فی بطونهن) ای اولادهن فان الاستبراء والعدة لا تحصل الا بوضعهن واما ازواجهن فیجوز لهم جماعهن.

(شرح مسند ابی حنیفة ص ۱۹۰ حدیث وطء الحامل)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: ولو تضررت من کثرة جماعه لم تجز الزیادة علی قدر طاقتها، قال ابن عابدین: فعلم من هذا کله انه لا یحل له وطئها بما یؤدی الی اضرارها فیقتصر علی ما تطیق منه. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۳۲ باب القسم)

﴿۳﴾قال العلامة ابن نجیم: اما التزوج الزانی لها (للحاملة) فجائز اتفاقا وتستحق النفقة عند الکل ویحل وطؤها عند الکل کما فی النهایة. (البحر الرائق ۴:۱۰۶ باب النفقة)



تکلیف رسول ممنوع ده﴿۱﴾. (۲) دښځې سینه رودل ممنوع نه دی. البته ددوه نیمو کالو والانه زیات عمروالاخاوند دپاره دښځې وغیرها پئ څکل ممنوع دی او بهرحال نکاح باندې څه اثرنه پریوزی(شامی)﴿۲﴾. وهو الموفق

## حالت نفاس کښې جماع حرامه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی دخپلې ښځې سره په ورځودنفاس یعنی دبچی دپیدائش نه لس ورځې پس صحبت اوکړو ددې څه کفاره او څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولا داد سکهرسندهه...... ۱۹۷۰ء۱۱۱۵

**الجواب:** داصحبت حرام دې کله پورې چه وینه بنده شوې نه وی﴿۳﴾توبه کول ضروری دی اوصدقه کول مستحب ده﴿٤﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة زین الدین ابن نجیم: الذی یحرم علی الرجل وطء زوجته مع بقاء النکاح...... وفیما اذا کانت لا تحتمله لصغر او مرض او سمنة.

(الاشباه والنظائر ۳۲۹ احکام غیبوبة الحشفة)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: هو مص من ثدی آدمیة فی وقت مخصوص هو حولان ونصف عنده وحولان عندهما وهو الاصح وبه یفتی کما فی تصحیح القدوری لکن فی الجوهرة انه فی الحولین ونصف ولو بعد الفطام محرم وعلیه الفتویٰ، قال العلامة ابن عابدین: ان الکبیر لا یسمی رضیعا ذکره ردا علی من سوی فی التحریم بین الکبیر والصغیر، وقال العلامة الحصکفی: بعده ویثبت التحریم فی المدة فقط ولو بعد الفطام.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۳۷ باب الرضاع)

﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی: ویمنع...... وقربان ما تحت ازار یعنی ما بین سرة ورکبة ولو بلا شهوة قال ابن عابدین: قوله یمنع ای الحیض وکذا النفاس خزائن.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۲۱۴ باب الحیض)

﴿۴﴾قال العلامة ابن نجیم: احکام غیبوبة الحشفة...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د ښځې خاوند بغیر د مصلحت نه د یوبل خاص اندامونو ته نه کتل افضل دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دلته یو سړی تقریر کولو که چرته چا دخپلې ښځې یا دخاوند عورت اوکتلونودې به ضرور پخپله زندګئ کښې نابینا کیږی لکه څنګه چه دحضرت عائشه رضی الله عنها قول دې چه مادنبی علیه السلام عورت نه دې کتلې مهربانی اوکړئ په صحیح اقوالو سره مفصّل اومدلّل تشریح اوفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالقهار ابازئ چارسده......۱۲۲\شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ښځه اوخاوند دیوبل هر اندام ته کتلې شی البته بغیر د مصلحت نه اندام مخصوصه ته نه کتل افضل دی اودمصلحت شهوت راوړلو دپاره کتل قابل داعتراض نه دی فتاوٰی عالمګیریه ۵:۳۲۷﴿۱﴾.وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) یترتب علیها احکام...... والکفارة وجوبا او ندبا فی اول الحیض بدینار وفی آخره بنصف دینار. (الاشباه والنظائر ۳۲۶ احکام غیبوبة الحشفة

وفی المنهاج: اعلم انه لا تجب الکفارة علی من وطئ فی الحیض عمداً عند ابی حنیفة ومالک والشافعی واحمد فی روایة عنه ای لا تکفی الکفارة فیه بل لا بد من التوبة والاستغفار نعم تستحب الکفارة بالتفصیل المذکورة فی روایة عبد الکریم عندنا وعند الشافعی توسلا لا جابة التوبة واطفاء لغضب الرب وتادیبا للنفس الامارة.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۲۸۷ باب ماجاء فی الکفارة فی ذلک)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اما النظر الی زوجته ومملوکته فهو حلال من قرنها الی قدمها عن شهوة وغیر شهوة وهذا ظاهر الا ان الاولیٰ ان لا ینظر کل واحد منهما الی عورة صاحبه کذا فی الذخیرة...... وکان ابن عمر رضی الله عنهما یقول الاولیٰ ان ینظر الی فرج امرأته وقت [illegible]قاع لیکون ابلغ فی تحصیل معنی اللذة کذا فی التبیین، (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)





## د ښځې سره لواطت کول حرام اود شرم ځایونه خکلول نه ممنوع دی اونه مطلوب

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه په قرآن کښې دی چه ښځې ستاسو فصل دی چه په کومه غواړئ په دې کښې داخل شئ. څما اصل مطلب دادې چه څه خپله ښځه چه څما په نکاح کښې ده داځه د روستو طرف نه یعنی دکونې دطرف نه استعمالول غواړم ایادرښتیاده چه دکونې کولو سره نکاح ختمیږی؟ نیز څه دخپلې ښځې فرج خکلول غواړم اوخپل عضو تناسل دهغې په خوله ورکول غواړم ایاداجائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.....۱۹۷۸ء\۱۱\۱۹

**الجواب:** دخپلې ښځې سره لواطت کول حرام دی ځکه چه دامحل حرث نه دې اوالله تعالی په محل حرث کښې داتیان اجازت ورکړې دې﴿۱﴾

**قال الله تعالیٰ: نساء کم حرث لکم فأتوا حرثکم انیٰ شئتم (الآیة)﴿۱﴾ وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: ولا تأتوا النساء فی اعجازهن (رواه الترمذی)﴿۲﴾ وفی روایة من اتی امرأة فی دبرها فقد کفر بما انزل علی محمد﴿۳﴾**

---

(بقیه حاشیه) قال ابویوسف رحمه الله سألت ابا حنیفة رحمه الله تعالیٰ عن رجل یمس فرج امرأته وهی تمس فرجه لتحرک آلته هل تریٰ بذلک بأسا قال لا وارجو ان یعطی الاجر کذا فی الخلاصة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۲۷،۳۲۸ الباب الثامن من کتاب الحظر والاباحة)

﴿۱﴾(سورة البقر(آیت: ۲۲۳ پاره: ۲ رکوع: ۱۲)

﴿۲﴾ (رواه الترمذی ۱:۱۳۹ کراهیة اتیان النساء فی ادبارهن، واخرجه النسائی فی الکبریٰ: ۸۹۸۲ وابن ماجة: ۱۹۲۴، واحمد ۵:۲۱۵، وابن حبان: ۴۱۹۸، والبیهقی ۷:۱۹۷)

﴿۳﴾ (رواه الترمذی ۱:۱۹ باب کراهیة اتیان الحائض، وابوداؤد: ۳۹۰۴، وابن ماجة: ۶۳۹، والدارمی ۱:۲۵۹، واحمد ۲:۴۰۸ وغیرهم)

وقال رسول الله ﷺ: ملعون من اتی امرأته فی دبرها (رواه احمد وابو داؤد)﴿۱﴾ لیکن دې جرم سره نکاح نه ختمیږی دادچامذهب نه دې کله پورې چه حلال ګڼرونکې نه وی﴿۲﴾اوفرج اوذکرخکلول نه ممنوع دی اونه مطلوب دی کله چه دمنی او مذی وغیره نه خالی وی، البته مکروه دی. کالنظر الیها بلاضرورة﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (اخرجه ابوداؤد: ۲۱۶۲، والنسائی فی الکبریٰ: ۹۰۱۴، وابن ماجة: ۱۹۲۳، وصحیح ابن حبان: ۴۲۰۳، وابن عدی فی الکامل ۶: ۳۱۱ والطبرانی فی الاوسط: ۴۷۵۱، والبغوی فی التفسیر: ۲۴۶)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ووطؤها (ای الحائض) یکفر مستحله کما جزم به غیر واحد وکذا مستحل وطء الدبر عند الجمهور...... لانه حرام لغیره، قال العلامة ابن عابدین: ای حرمته لا لعینه بل لامر راجع الی شیئ خارج عنه وهو الایذاء قال فی البحر عن الخلاصة من اعتقد الحرام حلالا او علی القلب یکفر اذا کان حراما لعینه وثبتت حرمته بدلیل قطعی اما اذا کان حراما لغیره بدلیل قطعی او حراما لعینه باخبار الاحاد لا یکفر اذا اعتقده حلالا ومثله فی شرح العقائد النسفیة. (الدر المختار مع ردالمحتار ۱: ۲۱۸ قبیل مطلب فی حکم وطء المستحاضة ومن بذکره نجاسة)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: اما النظر الی زوجته ومملوکته فهو حلال من قرنها الی قدمها عن شهوة وغیر شهوة وهذا ظاهر الا ان الاولیٰ ان لا ینظر کل واحد منهما الی عورة صاحبه کذا فی الذخیرة...... وکان ابن عمر رضی الله عنهما یقول الاولیٰ ان ینظر الی فرج امرأته وقت الوقاع لیکون ابلغ فی تحصیل معنی اللذة کذا فی التبیین، قال ابویوسف رحمه الله سألت ابا حنیفة رحمه الله عن رجل یمس فرج امرأته وهی تمس فرجه لتحرک آلته هل تریٰ بذلک بأسا قال لا وارجوا ان یعطی الاجر کذا فی الخلاصة. (فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۲۷ الباب الثامن فیما یحل للرجل النظر الیه وما لا الخ)......(بقیه حاشیه په زاروانه صفحه)



## د جماع په وخت کښې بربنډ کیدل او بربنډول جائز دی البته بهتر نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دخپلې منکوحې سره د صُحبت په وخت کښې خپل ځان مکمل بربنډ کول اوښځه مکمل بربنډول جائز دی یانه؟ حالانکه دښځې خاوندشرم اوحیایووی؟بینوا توجروا

المستفتی:....نامعلوم......۱۹۹۰ء/۱۰/۱۵

**الجواب:** فقهاءکرامو بربنډیدلو او کولوته جائزوئیلی دی. البته دفرج او ذکر کتلوته ئې بهترنه دی وئیلی، اګرچه جائزدی، اودچاشهوت چه بغیرددې د کتلو نه نه راځی نودهغه دپاره اجازت دې﴿۱﴾.وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) وقال العلامة الشامی: ویجوز ان یستمنی بید زوجته وخادمته وسیذکر الشارح فی الحدود عن الجوهرة انه یکره ولعل المراد به کراهة التنزیه فلا ینافی قول المعراج یجوز تامل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۹ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

وفی الهندیة: وفی النوازل اذا ادخل الرجل ذکره فی فم امرأته قد قیل یکره وقد قیل بخلافه کذا فی الذخیرة. (فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۷۲ الباب الثلاثون فی المتفرقات)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: قال فی الهدایة: الاولی ان لا ینظر کل واحد منهما الی عورة صاحبه لقوله علیه السلام اذا اتی احدکم اهله فلیستتر ما استطاع ولا یتجرد ان تجرد العیر ولان ذلک یورث النسیان لورود الاثر وکان ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما یقول ان ینظر لیکون ابلغ فی تحصیل معنی اللذة، لکن فی شرحها للعینی ان هذا لم یثبت عن ابن عمر لا بسند صحیح ولا بسند ضعیف وعن ابی یوسف سألت اباحنیفة عن الرجل یمس فرج امرأته وهی تمس فرجه لیتحرک علیها هل تری بذلک بأسا قال لا وارجو ان یعظم الاجر ذخیرة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵: ۲۵۹ فصل فی النظر، کتاب الحظر)

## د ښځې په خوله کښې ذکر ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه د ښځې د ماهواری په ورځو کښې کله چه خاوند د ښځې سره هم بستری نشی کولې، نو خپل عضو تناسل دهغې په خوله کښې داخلولې شی یا نه؟ مونږ کافی استفسارات کړې دی مګر تشفی نه ده شوې؟ بینوا توجروا

المستفتی: م. الف. کلرکوټ کوهاټ.....۹۱۷۱ء۱۹۸۸

**الجواب:** د ښځې په خوله کښې ګندګی او بدبوا چول، «د منی انزال» ایزاء رسانی او ناجائز کار دې(۱) البته نوم کښې یا د خپو او بغل په مینځ کښې شهوت رانی کول د چشم پوشئ قابل دې(۲) بهرحال دا اول الذکر اقدام ناجائز دې اګرکه ذکر ته پوکنړئ واچوی. وهوالموفق

## د ضرورت په وخت کښې په ښځې باندې د استمناء بالید کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې که چرته ښځه د حیض یا نفاس په حالت کښې وی ښځه د جماع قابله نه وی حالانکه د خاوند په فعل حرام کښې د پریوتلو امکان وی یعنی ده ته د جماع ضرورت وی ایا په دې صورت کښې دې د خپلې ښځې په لاسونو سره استمناء کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل زمان طوره وړئ کوهاټ.......۲۹۱۹۱ء۱۹۸۳

---

(۱) وفی الهندیة: فی النوازل اذا ادخل الرجل ذکره فی فم امرأته قد قیل یکره وقد قیل بخلافه کذا فی الذخیرة

(فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۷۲ الباب الثلاثون فی المتفرقات).

(۲) وفی الهندیة: وله ان یقبلها ویضاجعها ویستمتع بجمیع بدنها ما خلا ما بین السرة والرکبة عند ابی حنیفة وابی یوسف هکذا فی السراج الوهاج.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۹ الفصل الرابع فی احکام الحیض والنفاس)



**جواب:** د دې عذرونو د وجه نه صورت مذکور جائز دې ګنې مکروه تنزیهی دې. والتفصیل فی ردالمحتار فلیراجع(۱). وهوالموفق

## د ښځې سره لواطت حرام دې او د استحلال په صورت کښې کفر دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه څه صاحب اولاده ښځه یم ځما خاوند د منصوبه بندئ یا د شیطان د اثر نه آیت: نساءکم حرث لکم الخ. په حوالې ورکولو سره لواطت ته مجبوره کړم ځما د فریاد او د آه او بکاه د وجه نه یو ځل خاوند په قرآن باندې لاس کېښودلو سره قسم اوکړو چه بیا به دا قبیح کار نه کوم مګر دا قسم ئې هم مات کړو، څه په مختلفو عوارضو کښې مبتلا شوې یم د خلاف فطرت کار نه کولو په وجه سره د نان و نفقهې سره ئې هم ځما تنګول شروع کړه څه د مور کور ته په تللو باندې مجبوره شوم یو کاله پورې د مور پلار په کور کښې اوسیدم، ماته ئې خرچه وغیره نه راکوله په شریعت کښې د دې کار د وجه نه ځما نکاح فسخه شوې ده یا نه؟ او څه طریقه اختیار کړم؟ بینوا توجروا

المستفتی: م.ن.د. لاهور.......۲۱۱۱۱ء۱۹۷۵

**الجواب:** د زراعت محل (حرث) مخکښې (فرج) دې نه چه دبر، داخو محل فرث دې لهذا په آیت سره د لواطت کولو د اجازت استدلال غلط دې بهرحال که چرته دې خاوند لواطت ته حلال ګنړلې او منلې وی نو د کافر کیدلو د وجه نه د ده نکاح ختمه شوې ده، کمافی البحر ۵: ۱۷ وعن الصفار یکفر مستحلها عندالجمهور کذا فی المجتبیٰ(۲) او که چرته حلال ئې نه وی ګنړلې نو تاسو د مسلمان

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ویجوز ان یستمنی بید زوجته وخادمته، وسیذکر الشارح فی الحدود عن الجوهرة انه یکره ولعل المراد به کراهة التنزیه فلا ینافی قول المعراج یجوز تامل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۹ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

(۲) (البحر الرائق ۵: ۱۷ باب الوطء الذی یوجب الحد والذی لا یوجبه)

حاکم په ذریعې سره طلاق (تنسیخ نکاح) حاصلولې شئ ﴿١﴾ فتوی داده باقي ثبوت دمستفتیه ذمه واری ده وهو الموفق

## خاوند ښځې لره په وطی فی الدبر باندې د مجبور کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو خاوند خپلې ښځې لره په وطی فی الدبر سلسله کښې مجبوره کوی دې صورت کښې ښځه څه اوکړی آیا دښځه موربلاردې جینئ لره په خپل کور کښې ساتلې شی. یعنی د خاوند د کورنه ئې بندولې شی؟بینوا توجروا

المستفتی: عالی محمدلکی مروت......یکم ربیع الاول ١٤٠٢ھ

**جواب:** شرعاپه دې ښځې اوددې په اولیاء باندې ضروری دی چه دې خاوندله په دې ارتکاب باندې قدرت ورنکړی دخاوند دکورنه دبندولونه علاوه نور اقدامات هم جائزدی﴿٢﴾ وهو الموفق

﴿١﴾ په فتاوی دارالعلوم دیوبند کښې دی په دې صورت کښې خاوند سخت ګنهګار اوفاسق شو. په حدیث شریف کښې داسې فعل (لواطت) کونکی باندې لعنت وارد شوې دې لیکن په دې وجه حاکم دوی کښې تفریق نه شی کولې، البته خاوند ته دې تنبیه اوکړې شی چه هغه ددې نه توبه اوکړی ګنی هغه دې مجبوره کړې شی چه طلاق ورکړی یا دې خلع اوکړی اوښځې له په مذکوره حالت کښې خاوند ته ورتلل نه دی پکار، بلکه یادې خاوند توبه اوباسی اوددې فعل نه دې منع شی یا دې طلاق ورکړی یادې خلع اوکړی (فتاوی دارالعلوم دیوبند ١٠: ٢٢٩ باب سیزدهم نامرد مجنون وغیره) فقهاؤ په داسې حالت چه هغه په وطی باندې قادر نه وی اود لواطت عادی وی دائې دعنین په حکم کښې ګرځولې دې.

**قال العبد الرحمن الجزیری: او امکنه ان یأتی زوجته فی دبرها لافی قبلها فمن وجدت فیه حالة من هذه الاحوال کان عنینا بالنسبة لزوجته وکان لها حق طلب الفسخ. (الفقه علی المذاهب الاربعة ٤: ١٦٥ العیوب التی یفسخ بها النکاح)......**

پس معلومه شوه چه دعنین نه دخلاصی کومه طریقه ده هغه دې دده سره هم اوکړې شی. چه د شرعی قاضی په ذریعه یا دمسلمان حاکم اوچرته چه دا نه وی نود مسلمان مشر په ذریعه نجات حاصلولې شی. تفصیل دپاره اوګوری! "الحیلة الناجزة للتهانوی،......(ازمرتب)

﴿٢﴾ قال الشیخ عزیزالرحمن الدیوبندی: په داسې حالت کښې دې د جینئ ...بقیه په راروانه صفحه)



## د شرعی وینزو سره مالک د پاره جماع جائزده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیدوائی چه مسلمان حاکم وخت دخپلو ټولو وینزوسره جماع کولې شی اوددوی سره دنکاح شوې ښځې پشان سلوک کولې شی حالانکه بکروائی چه دهرې ښځې سره بغیر د نکاح نه داسې کارناجائزدې. شرعی حکم څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: نثاراحمد الخمس لیبیا........١٢٠شوال ١٤٠٣ھ

**جواب:** شرعی وینزې سره مالک خواه که حاکم وی یاغیرحاکم وی جماع کولې شی په شرط ددې چه داوینزه مسلمانه یااهل کتاب وی.

**لقوله تعالی: الا علی ازواجهم او ما ملکت ایمانهم ﴿١﴾. لان النکاح بها یدخلها فی الازواج فلا فائدة فی العطف ولان الاستیجار یتحقق فی ملک الغیر دون ملک نفسه.**

**وهوالموفق**

(بقیه حاشیه)... موربلار خپله لور دخاوند کور ته نه لیږی اوپه نه لیږلو سره به دوی نه ګنهګاریږی بلکه ځنګه چه کیدې شی دخاوند نه دې طلاق واخلی.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند ١٠: ٢٥٠ کتاب الطلاق)**

**﴿١﴾ (سورة المؤمنون پاره: ١٨ رکوع: ١ آیت: ٦)**

........

# کتاب الطلاق

## باب شرائط الطلاق

**د طلاق اضافت ښځې طرف ته شرط دې نه چه د نکاح طرف ته**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې که چرته ناواده کړې سړې دا اووائی چه نکاح ته طلاق یادنکاح نوم هم وانخلی صرف دنکاح طرفته اشاره اوکړی اووائی نودې سره طلاق واقع کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدهاشم ټانک ډی آی خان...... ۱۵رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** صحت طلاق دپاره اضافت الی المنکوحۃ شرط دې، وهو مفقود هٰهنا، اوعلی تقدیرالاضافت یوطلاق واقع کیږی، چه په هغې کښې تجدید دنکاح کافی ده.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: لو قالْ ان خرجت یقع الطلاق اولا تخرجی الا باذنی فانی حلفت بالطلاق فخرجت لم یقع لترکه الاضافة الیها. قال العلامة ابن عابدین: (قوله لترکه الاضافة) ای المعنویة فانها الشرط والخطاب من الاضافة المعنویة وکذا الاشارة نحو هذه طالق وکذا نحو امرأتی طالق وزینب طالق...... والمفهوم من تعلیل الشارح تبعا للبحر عدم الوقوع اصلا لفقد شرط الاضافة مع انه لو اراد طلاقها تکون الاضافة موجودة ویکون المعنی فانی حلفت بالطلاق منک او بطلاقک ولا یلزم کون الاضافة صریحة فی کلامه لما فی البحر لو قال طالق فقیل له من عنیت فقال امرأتی طلقت امرأته...... ویؤیده ما فی البحر لو قال امرأة طالق او قال طالق اوقال طلقت امرأة ثلاثا وقال لم اعن امرأتی یصدق الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۶۶ مطلب من الصریح الالفاظ المصحفة)



**د طلاق دارومدار په تلفظ باندې دې نه چه شهادت قائم کولو یا لیکلو باندې**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه څمونږ په علاقه کښې په طلاق کښې چه ګواه اوتاریخ اونه لیکلې شی او. کانړی وانچولې شی د ګواهانو په مخامخ داطلاق نشی ګنړلې ایاپه طلاق ورکولو کښې ګواه لیکل او کانړی اچول ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل زمان...... ۲۵\۱۱\۱۹۷۵ء

**جواب:** په طلاق باندې شهادت قائمول اولیکل ضروری امور نه دی دطلاق دارومدار صرف په تلفظ باندې دې ﴿۱﴾ اودامرچه ګواه اوفارغ خطی اونه لیکلې شی نوطلاق به نه وی غلط اوخلاف شریعت امردې. لوجود رکن الطلاق، نیز کانړی اچول یولغوه څیزدې چه په دې باندې دطلاق دارومدارنه دې، لان رکن الطلاق وهو اللفظ ومایقوم مقامه کمافی الدرالمختاروغیره فلیراجع﴿۲﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: هو رفع قید النکاح فی الحال او المآل بلفظ مخصوص هو ما اشتمل علی الطلاق، قال العلامة ابن عابدین: ای علی مادة ط ل ق صریحا مثل انت طالق او کنایة کمطلقة بالتخفیف وکانت ط،ل،ق وغیرهما الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۵۰ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة فخرج الفسوخ علی ما مر واراد للفظ ولو حکما لیدخل الکتابة المستبینة واشارة الاخرس والاشارة الی العدد بالاصابع فی قوله انت طالق هکذا کما سیأتی وبه ظهر ان من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لا صریحا ولا کنایة لا یقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

## په طلاق ورکولوکښې د ښځې موجودګی شرط نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمالورته خپل خاوند ددې دموجودګۍ نه بغیرپه دانګلینډعدالت کښې دڅلوروکسانوسره یوځائ فیصله دائره کړه اوطلاق نامه ئې دانګلینډنه ځمونږکلی ته راواستوله، روسته ځمالورته پته اولږیده. ایاپه شریعت محمدی کښې داطلاق صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.....صالح خانه نوشهره.....۲۷ مئی ۱۹۷۵ء

**جواب:** چونکه طلاق ورکولوپاره دښځې موجودګی شرط نه ده ﴿۱﴾ لهٰذا صورت مسئوله کښې به دابنځه مطلقه وی ﴿۲﴾ اوعدت تیریدلونه پس بل ځائ کښې نکاح کولې شی. وهوالموفق

## که د ښځې طرف ته اضافت اونسبت موجود وی نوطلاق واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ماتقریبادرې میاشتې مخکښې پخپلې ښځې باندې غصه اوکړه اوپه درمیان کښې ددریم فریق دمداخلت سره ځماغصه انتهاته اورسیده نوماخپلې تروړته اووئیل چه ځه خپلې ښځې ته طلاق ورکوم اوماشپږاووځله خپلې خورزې ته اووئیل چه مادې ته طلاق ورکړې دې، براه راست دښځې ته مخامخ مې دانه دی وئیلې

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة فخرج الفسوخ علی ما مر واراد اللفظ ولو حکما لیدخل الکتابة المستبینة واشارة الاخرس الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۵۳ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: کتب الطلاق ان مستبینا علی نحو لوح وقع ان نوی وقیل مطلقا ولو علی نحو الماء فلا مطلقا ولو کتب علی وجه الرسالة والخطاب کان یکتب یا فلانة اذا اتاک کتابی هذا فانت طالق طلقت بوصول الکتاب جوهرة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۶۵ قبیل باب الصریح)



چه ماتاته طلاق درکړې دې یادرکوم بلکه هرځل مې تروړته وئیلی دی ددې نه دوه ورځې پس ځمااوځمادښځې راضی نامه اوکړې شوه مادامام مسجد نه اوپوښتل نوهغه اووئیل چه طلاق نه دې شوې البته کفاره داده چه څلویښتو سړوته روټې ورکړه. بیاددویم مولوی صاحب نه چه هغه په علم کښې څه اوچت دې. نه پوښتنه اوکړه هغه اووئیل چه ښځه په تاباندې طلاقه شوې ده اوداپه تاباندې حرامه ده اوکومه پورې چه ددویم سړی سره نکاح اونه کړی ترهغه وخته پورې تاباندې حلاله کیدلې نشی اوس تاسوماته تسلی بخش جواب راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: یخدان میر.....۲۱۹۱ء۱۹۷۲

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې ښځې طرفته اضافت اونسبت موجوددې یعنی دې ته. لهذابنځه په تاباندې مطلقه مغلظه شوې ده بغیردتحلیل نه څه چاره نشته تحلیل نه مراددادې چه دابنځه دعدت تیریدلونه پس دویم سړی سره نکاح اوکړی، اودیوځل هم بسترې نه پس داسړې که چرته اوغواړی نو طلاق دې ورکړی اوکله چه ددغه طلاق عدت هم تیرشی نومخکښنې خاوند به ددې ښځې سره تجدید دنکاح اوکړی. فی ردالمحتار: قوله لترکه الاضافة ای المعنویة فانها الشرط ۲:۵۹۰. وهوالموفق

**نوټ:**..اوکه چرته خاوندباربارتاکیداوخپلې ارادې سره دغیرواپسئ په خیال سره طلاق ورکړی وی نوپه دې صورت کښې زبانی رجوع (عدت کښې دننه) کافی ده اودعدت نه پس تجدیددنکاح بغیردتحلیل نه کافی دې﴿۲﴾ وهوالموفق

## صرف وعدې او د طلاق ارادې سره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړې دخپلې ښځې د

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۶ قبیل مطلب من الصریح الالفاظ المصحفة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: کررلفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۹۹ فروع قبیل باب الکنایات)

بدکارئ متعلق اوریدلو سره دخلقو په مخامخ اووئیل چه ځه خپلې ښځې ته طلاق ورکړم، یادااووائی چه ځه خپلې ښځې ته طلاق ورکوم کورطرفته دې ارادې سره روان شولیکن په لاره کښې ورته خیال راغلوچه حقیقت معلوموم غواړی که چرته ښځه داسې نه وی نواراده به ختمه کړم نوایادې اولنی الفاظ سره طلاق واقع نه شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام سروراعوان......۵/۲/۱۹۷۹ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه په صورت مذکوره کښې صرف وعده اواراده ده چه دې سره طلاق واقع کیږی نه کله پورې چه په دې باندې د بالفعل واقع کیدلو اراده نه وی کړې﴿۱﴾ وهوالموفق

**په زړه کښې د طلاق وئیلوسره طلاق نه کیږی کله پورې چه تلفظ نه وی کړې**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زیدبالکل په تنهایئ کښې صرف په زړه کښې اووئیل چه ځماښځې ته درې طلاقه دی وی، دژبې نه کوم لفظ په پټ یاآوازسره طلاق ورکولودپاره اداکړې نه دې او ښځې وغیره ته هم ددې پته نشته، ایادرې طلاقه واقع شول یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری محمدعیسیٰ مدرسه تعلیم القرآن خانیوال ۳۱/۱۰/۱۹۸۸ء

**جواب:** که چرته دې خاوندنهٔ تصحیح حروف کړی وی اونهٔ آوازاوریدلې شوې وی نوپه ده باندې ښځه مطلقه شوې نه ده(شامی)﴿۲﴾ ﴿۳﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: او انا اطلق نفسی لم یقع لانه وعد جوهرة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۱۹ باب تفویض الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة...... وبه ظهران من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لا صریحا ولا کنایة لا یقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره وکذا ما یفعله بعض سکان البوادی من امرها بحلق شعرها لا یقع به طلاق وان نواه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ مطلب طلاق الدور)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وادنی الجهر اسماع......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**طلاق ورکولو کښې تلفظ هم کافی دی تحریر باندې موقوف نه دې**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته د جرګې په مخامخ طلاق ثلاثه ورکړل. لیکن اوس هغه دتحریرکولونه انکار کوی اوددې طلاق دلیکلو نه منحرف شوې دې اوس که چرته داسړې تحریری طلاق ورنکړی نوایادالسانی طلاق واقع شوې دې؟ دبعض شرارت پسند خلقو دزبان بندئ دپاره فتویٰ مطلوب ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعیدزمان پانړی......۱۱/۲/۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکه دطلاق رکن، لفظ، دې اوهغه موجوددې لهذا بشرط صدق وثبوت په دې سړی باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده تحریرباندې توقف نشته دې﴿۱﴾وهوالموفق

**کله چه زبانی طلاق اوشی نو تحریری لیکل او دستخط کول ضروری نه دی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې دیوسړی په باره کښې مشهوره شوې ده چه هغه خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې دچاپه واړندې چه هغه دطلاق الفاظ وئیلی دی اوس هغه جواب نه ورکوی اویوماماڼې صرف دا وائی چه ځماخیال دې چه حرامه ده اوبس، ګواهی هم نه ورکوی روستو یو

---

(بقیه حاشیه) غیره وادنی المخافة اسماع نفسه ویجری ذلک المذکور فی کل ما یتعلق بنطق کتسمیة علی ذبیحة ووجوب سجدة تلاوة وعتاق وطلاق. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۳۹۵ فصل فی القراءة مطلب فی الکلام علی الجهر والمخافة)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: (الطلاق) شرعا فهو رفع قید النکاح حالا او مآلا بلفظ مخصوص کذا فی البحر الرائق واما رکنه فقوله انت طالق ونحوه کذا فی الکافی...... واما حکمه فوقوع الفرقة بانقضاء العدة فی الرجعی وبدونه فی البائن وزوال حل المناکحة متی تم ثلاثا کذا فی محیط السرخسی.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۴۸ کتاب الطلاق الباب الاول)

مجلس برائی تحقیق منعقد شو چه په دې کښې ددې سړی ماما او نور بزرګان دمحلې شریک شو او دا خاوند هم موجود وو. دده ماما او وئیل چه ده پینځه ځله پریخې ده بیا خاموش شو او څۀ جواب ئې ورنکړو د طلاق نامې دلیکلو دپاره کاغذات راوړلې شو او په دې باندې خاوند مخکښې دستخط اوکړو هم دغه شان دده ماما او وئیل چه مخکښې سامان وصول کړئ طلاق نامه روستو اولیکئ کله چه په مجلس کښې دا خبره اوشوه نو دده ماما ده ته اووئیل چه لاړشه دمور سره مشوره اوکړه. مشوره ئې اوکړه واپس راغلو او وې وئیل چه ما ته دا فیصله منظوره ده او دستخط ئې هم اوکړو او دده ماما صحیح ګواهی هم نه ورکوی صرف وائی چه ځما په خیال حرامه شوې ده په دې صورت کښې دا ښځه مطلقه شوې ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......۱۹۸۳ء۱۷۱۵۱

**الجواب**: که چرته دې خاوند په تنهایئ کښې یا عام مجلس کښې زبانی طلاق ورکړې وی نو په ده باندې ښځه مطلقه شوې ده خواه که په تحریری طلاق نامه باندې دستخط اوکړی یا اونکړی﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ښځې او ګواه وغیره نه بغیر په تنهایئ کښې هم طلاق واقع کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید دخپلې منکوحې ښځې نه ناراضه وو، یو ځل دې بالکل تن تنها ځانته ناست وو، یو ګواه ورسره هم نه وو دې تنګ راغلو او درې کاڼړی ئې اوچت کړه په دغه رنګې الفاظو سره چه ځما منکوحه فلانې بنت فلانې په ما باندې په دې درې شرطونو باندې طلاقه ده اویو، دوه، درې، وئیلو سره ئې کاڼړې د طلاق ګزار کړل. دا کاروائی بالکل تن تنها اوشوه او آخره پورې ددې حرکت نه نه ښځه خبر شوه او نه څوک

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: هو...... رفع قید النکاح فی الحال او المآل بلفظ مخصوص هو ما اشتمل علی الطلاق...... ومحله المنکوحة...... ورکنه لفظ مخصوص خال عن الاستثناء. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۱، ۴۵۳ کتاب الطلاق)



بل انسان، حالانکه دواړه ښځه خاوند تر او سه پورې پښان د ښځې خاوند او سیږی ایا دا طلاق د تنهایئ واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبداللطیف بټل مانسهره......۱۹۷۴ء۱۵۱۹۱

**الجواب**: په صورت مسئوله کښې په دې سړی باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده. لان الشرط دون الحضور والمخاطبة،﴿۱﴾ وهو الموفق

## خفیه طورباندې د طلاق د وقوع مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړی ښځه د پنځو کالو راسې غیر آباده ده. یعنی ښځه کورته راتللونه پس هر درې ورځې پس تختی دمور پلار کورته ځی خاوند ئې تنګ راتللو سره په خپل کور کښې مخامخ ګواهان کینښول او طلاق نامه اولیکله او حواله ئې کړه ورته حالانکه د ښځې کورلرې دې ایا خفیه طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مشتاق احمد سعودی عرب......۱۸\جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: په خپله لیکل او په بل لیکلو سره طلاق واقع کیږی. کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸۹ کتب الطلاق ان مستبینا علی نحو لوح وقع ان نوی﴿۲﴾ او وقوع د طلاق دپاره د ښځې موجودګی یا د طلاق نامې وصول کول یا خبردارې شرط نه دې﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الشیخ المفتی عزیزالرحمن الدیوبندی: په دې صورت کښې دده په ښځه باندې طلاق واقع شو ځکه چه د طلاق ورکولو په وخت ښځه مخامخ کیدل او ورسره موجود کیدل ضروری نه دی.

(فتاوی دارالعلوم دیوبند ۹: ۴۲ کتاب الطلاق باب اول)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۵ قبیل باب الصریح مطلب فی الطلاق بالکتابة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: المرسومة لا تخلو ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د ښځې د بدرنګئ او بدصورتئ د وجهې نه طلاق ورکول ښه نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ماد ناديده جينئ سره چه ډيره بدرنګه ده دخورپه بدله کښې واده اوکړو سخرګنې مې ډيرښه خلق دی عزتمند خاندان دي ځماخور هغلته ډيره خوشحاله ده آرام سره زندګی تيروی او ځمابنځه ډيره قابله شريف النفس مجسمه شرم اوحياءاوشرافت دې ما باندې خودظالم لورډيره فريفته داخلاصه ده چه ځماپه خاندان کښې ددې نه بله بهتره جينئ نشته،څه ډيرمفلس يم اومعمولی ملازمت مې دې چه دکورنه مې ديرش ميله لرې مسافرئ کښې زندګی تيرېږی افسوس صد افسوس چه ځما ددوستانو،رشته دارانو اومولوی صاحبانو دمسئلو اوخبرودجه نه چه تاته دخدائ شکراداکول پکاردی وغيره دې سره بالکل ځمادزړه سکون او تشفی اونه شوه،اوس زندګی خرابه تيرېږی حيران اوپريشان يم ماپه ټولو طرفونوغريبئ په کمزوری صحت،د خورخيال، دمور پلارپه ناراضګئ په ټول هرڅه باندې سوچ اوفکرکړې دې مګرصرف داخبره ماته ياده راځی چه دا ځما بدقسمتی ده چه څه دحدنه زيات حسن پرست يم اياددې حالاتوپيش نظرڅه طلاق ورکولې شم؟بينوا توجروا

المستفتی:......چارسده......۱۹۷۵ء۱۱\۲۳

**الجواب:** محترم المقام: دسلام نه پس واضحه دې وی چه ته دطلاق ورکولونه

---

(بقيه حاشيه)اما ان ارسل الطلاق بان کتب اما بعد فانت طالق فکما کتب هذا يقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة وان علق طلاقها بمجيئ الکتاب بان کتب اذا جاء ک کتابی فانت طالق فجاء ها الکتاب فقرأته اولم تقرأ يقع الطلاق...... ولو قال للکاتب اکتب طلاق امرأتی کان اقرارا بالطلاق وان لم يکتب الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۵ ۴ قبيل باب الصريح مطلب الطلاق بالکتابة)





اجتناب اوکړه الله کريم دې تاددې نه محفوظ کړی،،آمين،،که ته حسن پرست ئې يارنګدارچمړه پرست ئې ليکن بعض خلاف الطبع امورته دنورو دطبيعت دپاره برداشت کړه،الله تعالی تاته ستربړی درکړی دی ددې شکريه دانه ده چه ته به دقيامت په ورځ تمناکوې چه کاش څه ړوندوې دې دپاره چه ددې تکليف نه محفوظ شوې وې﴿۱﴾وهو الموفق

## ښځې باندې د بدګمانې د وجهې نه د طلاق ورکولوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين دې مسئلې باره کښې چه ديوسړی معامله ده وائی چه ماخپلې ښځې لره دلرې رشته دارسره اوليدله ځماشک شوچه ددې دواړوپه مينځ کښې څه ګړبړشته حالانکه هغه رشته داردا ول نه بدکاردې،ما خپله ښځه هغه سړی سره دخبروکولونه په سختئ سره منع کړه ليکن هغه منع نه شوه،اوس څه کورهم نشم پريخودې چه دمورپلارخدمت ضروری دې نو ګزارش دادې چه څه اوکړم،طلاق ورکړم،يادادواړه اووهم؟ يادويم واده کولو سره دې ښځې لره خپل ځان سره برائی نام اوساتم؟ بينوا توجروا

المستفتی: سعيدعمررياض سعودی عرب......۱۷رمضان ۱۴۱۰ھ

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: الاصل فيه الحظر لما فيه من کفر ان نعمة النکاح والاباحة للحاجة الی الخلاص ولحديث ابغض الحلال الی الله تعالیٰ الطلاق...... فان الاصل فيه الحظر بمعنی انه محظور الا لعارض يبيحه وهو معنی قولهم الاصل فيه الحظر والاباحة للحاجة الی الخلاص فاذا کان بلا سبب اصلا لم يکن فيه حاجة الی الخلاص بل يکون حمقا وسفاهة رأی ومجرد کفران النعمة واخلاص الايذاء بها وباهلها واولادها...... ولهذا قال تعالیٰ فان اطعنکم فلا تبغوا عليهن سبيلا ای لا تطلبوا الفراق وعليه حديث ابغض الحلال الی الله الطلاق الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۱ کتاب الطلاق)

**الجواب:** داسړي ددې دواړو دقتل مجازنه دې صرف بدګمانئ سره قتل حرام دي﴿۱﴾ پس داسړي دې دسحرپه وخت کښې اعوذبالله من الشیطان الـرجیم لاحول ولاقوة الابالله العلـی العظـیم سل ځله اووائی﴿۲﴾امیددې چه په ځلوېښتوورځوکښې داوهم ختم شی که چرته داصرارپه وخت یوطلاق بائن ورکړې نوپه دې کښې حرج نشته دې﴿۳﴾.وهوالموفق

## پرده نه کولو والا او بغیر د خاوند نه ګرځېدونکې ښځې ته طلاق ورکول ضروری نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دکوم سړی ښځه بغیر د

﴿۱﴾ وفی الهندیة: سئل الهندوانی رحمه الله تعالیٰ عن رجل وجد مع امرأته رجلا ایحل له قتله قال ان کان یعلم انه ینزجر عن الزنا بالصیاح والضرب دون السلاح لا یحل الخ.

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۱٦۷ فصل فی التعزیر)

﴿۲﴾عن ابی هریرة قال: قال رسول اللهﷺ: یأتی الشیطان احدکم، فیقول: من خلق کذا؟ من خلق کذا؟ حتی یقول: من خلق ربک؟ فاذا بلغه، فلیستعذ بالله ولینته (متفق علیه) قال الملا علی قاری: (قوله فلیستعذ بالله) طردا للشیطان اشارة الی قوله تعالیٰ الا عبادک منهم المخلصین، وایماء الی قوله علیه الصلاة والسلام: لا حول ولا قوة الا بالله، فان العبد بحوله وقوته لیس له قوة المغالبة مع الشیطان ومجادلته، فیجب علیه ان یلتجئ الی مولاه ویعتصم بالله من الشیطان الذی اوقعه فی هذا الخاطر الذی لا اقبح منه فیقول بلسانه: اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ویلوذ بجنانه الی جنابه ان یدفع عنه شره وکیده فانه مع اللطف الالٰهی لا اضعف منه ولا اذل الخ.

(مرقاة المفاتیح ۱:۲۴۲ باب فی الوسوسة)

﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی: وایقاعه مباح وقیل الاصح حظره ای منعه الا لحاجة کریبة، قال ابن عابدین: هی الظن والشک ای ظن الفاحشة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۵۰ کتاب الطلاق)



پردې نوروکورونوته ځی،دخپل خاوندنه بغیرسیل کولووالااو د چکرو عادتی ده په وهلوسره هم منع نه شوه،ایادې ښځې ته طلاق ورکړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالستارعیدک شمالی وزیرستان

**الجواب:** داسې ښځې ته طلاق ورکول ضروری نه دی(شامی)﴿۱﴾وهوالموفق

## طلاق ورکول د خاوند حق دې مور پلار، رونړو، یا جرګې ته په دې کښې څه حق او دخل نشته

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوښځې په خاندان او ددې دخاوندد خاندان په مینځ کښې څه اختلاف پیداشو،اودواړه دطلاق متمنی دی لیکن ښځې په جرګه کښې اووئیل که چرته مامړه هم کړی نوبیاهم ځه دخپل خاوندنه طلاق نه اخلم اوخاوندهم په طلاق ورکولورضامندنه دې نو آیا ددې موراوپلاریارونړه ایاجرګه دې لره په زبردستئ سره طلاقه کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدمسکین بلندکوټ......یکم مارچ ۱۹۷۵ء

**جواب:** طلاق ورکول دخاوندحق دې دې که اوغواړی طلاق ورکولې شی اوکه اونه غواړی نوطلاق نشی ورکولې په دې کښې دخاوندیادښځې مور پلار رونړو یا جرګې ته څه حق اودخل نشته﴿۲﴾وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: لا یجب علی الزوج تطلیق الفاجرة ولا علیها تسریح الفاجر الا اذا خافا ان لا یقیما حدود الله فلا بأس ان یتفرقا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۱۸ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: لا یقع طلاق المولیٰ علی امرأة عبده لحدیث ابن ماجة الطلاق لمن اخذ بالساق، قال ابن عابدین: رواه عن ابن عباس من طریق فیها ابن لهیعة ورواه الدار قطنی ایضا من غیرها کما فی الفتح ومراده تقویة الحدیث لان ابن لهیعة متکلم فیه فقد اختلف المحدثون فی جرحه وتوثیقه.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴٦۲ قبیل مطلب فی طلاق المذهوش)

## د خاوندانو نه بغير د ثالثانو طلاق ورکول نامنظوردي

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دي مسئلي باره کښي چه دحسن واده دحميدي سره شوي وو ،اودگل خان واده دبی بی خانه سره شوي وو ،چه دحسن خورده د وادهٔ نه پس صلح اوصفائی سره دي دواړو خپل خپل کورونه آبادکړل روستو حميدي لره ددي رورگل خان ځماکورته دراستولونه انکاراوکړواوهم دغه شان دحسن خوربی بی خانه ته په آبادکيدلو کښي روکاوټونه واچول يونين کونسل فيصله اوکړه چه دواړه ښځي خپلوخپلوکورونوته لاړي شئ ټولو فيصله منظوره کړه ليکن روستوگل خان انکاراوکړوچه نه بوتلل غواړم اونه جينئ پريخودل غواړم فيصله دوباره په يونين کونسل کښي پيش کړي شوه يونين کونسل دفيصلي دپاره پيراظهرلره مقررکړو ،پيرصاحب دواړو فريقانوته دثالث مقررکولواووئيل .دواړوفريقانودخپل خپل طرفنه ثالثان مقررکړل ثالثانودصلحي په ځائی دټولونه مخکښي يوتحريری بيان قلمبند کړوچه کوم فريق دثالثانوخبره نه منی دهغه ښځه به په هغه باندي طلاقه وی په دي دوران کښي خطيب مسجد ثالثانوته اووئيل چه هلکانو نه دپوښتني کولوسره فيصله اوکړی مگرثالثانواووئيل چه دهلکانونه پوښتنه نه کوو او بغير دپوښتني کولونه ئي فيصله اوکړه چه ستاسوددواړوښځي په تاسو باندي طلاقي دی حالانکه بی بی خانه طلاق اخستل نه غواړی ددي يوه لور هم ده اياددي ذکرشوي ثالثانوپه دي کار سره طلاق واقع کيږی؟ بينوا توجروا

المستفتی: فضل حسين بيروټ خوردهزاره...... ۱۹۷۴ء۱۰۱۱۸

**جواب:** چونکه ذکرشوي واقعه کښي دي خاوندانونه پخپله طلاق ليکلي دي اونه ئي په بل ليکلواونه ئي دمضمون خبريدونه پس دستخط اوکړواونه دوی دطلاق ورکولونيت کړي دي .لهذاپه دوی باندي ښځي طلاقي شوی نه دی په دوی باندي دښځومطلقه کيدل دقاعدي خلاف او نامنظور دی (ماخوذ عالمگيريه﴿۱﴾

﴿۱﴾ وفی الهندية: واما تفسير الطلاق شرعا فهو رفع قيد النكاح حالا او مآلا بلفظ مخصوص...... واما ركنه فقوله انت طالق ونحوه الخ.

(فتاویٰ عالمگيرية ۱: ۳۴۸ كتاب الطلاق الباب الاول)



وردالمحتار﴿۱﴾وهوالموفق

## طلاق نامه باندي دطلاق نيت نه کولو دوجه نه دغلط دستخط کولومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دي مسئلي باره کښي چه دزيددطرف نه يوفضولی عدالت کښي ستامپ پيپرواخستلواومنشی نه ئي اوليکلوچه زيد خپلي ښځي ته طلاق ثلاثه ورکړي دي .بياپه دي ستامپ باندي زيد دخپل اصلی نوم په ځائی فرضی اوغلط نوم سره دستخط اوکړوزيدوائی چه مادي فضولی ته نه دطلاق څه وئيلی دی اونه مي دطلاق اراده وه ليکن ددي غلط دستخط کولوڅه قانونی مجبوريانې وي روستوفضولی ستامپ د مجسټريټ په حواله کړواوورسره زيدهم موجودوومجسټريټ دزيدنه څه استفساراونه کړوبلکه خپل مهرعدالت اودستخط ئي اوکړوبيافضولی دغه ستامپ ښځي ته ورکړو . اوس دطلاق شرعی حکم څه دي؟بينوا توجروا

المستفتی: مولانانورمحمدمهتمم مدرسه اسلاميه بفه مانسهره ۱۹۸۳ء۱۷۱۵۱

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: قال فی الهندية: الكتابة على نوعين مرسومة وغير مرسومة ونعنی بالمرسومة ان يكون مصدرا ومعنونا مثل ما يكتب الى الغائب وغير المرسومة ان لا يكون مصدرا ومعنونا وهو على وجهين مستبينة وغير مستبينة فالمستبينة ما يكتب على الصحيفةو الحائط والارض على وجه يمكن فهمه وقراءته وغير المستبينة ما يكتب على الهواء والماء وشئ لا يمكن فهمه وقراءته ففی غير المستبينة لا يقع الطلاق وان نوى وان كانت مستبينة لكنها غير مرسومة ان نوى الطلاق يقع والا لا وان كانت مرسومة يقع الطلاق نوى او لم ينو ثم المرسومة لا تخلو اما ان ارسل الطلاق بان كتب اما بعد فانت طالق فكما كتب هذا يقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الكتابة وان علق طلاقها بمجيئ الكتاب بان كتب اذا جاءك كتابی فانت طالق فجاء ها الكتاب فقرأته او لم تقرأ يقع الطلاق.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴٦۴ مطلب فی الطلاق بالكتابة)

**الجواب**: تحریری طلاق بغیر د قصد او نیت نه نامنظور او کالعدم وی.

یدل علیه ما فی ردالمحتار ۲: ۵۷۹ وفی البحر ان المراد الاکراه علی التلفظ بالطلاق فلو اکره علی ان یکتب طلاق امرء ته فکتب لا تطلق لان الکتابة اقیمت مقام العبارة باعتبار الحاجة ولا حاجة هنا کذا فی الخانية ﴿۱﴾ انتهیٰ قلت: وجه الدلالة ان حکم الاکراه والهزل واحد ﴿۲﴾. وهو الموفق

## مستحل د ګناه سره نکاح باطله او ښځه آزاده ده

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو ښځې نکاح دیو مطرب (ډولکی مار) سره او شوه هغه خپلې ښځې لره په ګډا او نورو فحش

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۷ مطلب فی الاکراه علی التوکیل بالطلاق الخ)

﴿۲﴾ یدل علیه ما فی ردالمحتار: (قوله او هازلا) ای نیقع قضاء و دیانة...... واما ما فی اکراه الخانية لو اکره علی ان یقر بالطلاق فاقر لا یقع کما لو اقر بالطلاق هازلا او کاذبا فقال فی البحر ان مراده لعدم الوقوع فی المشبه به علمه دیانة ثم نقل عن البزازیة والقنیة لو اراد به الخبر عن الماضی کذبا لا یقع دیانة و ان اشهد قبل ذلک لا یقع قضاء ایضاء، ویمکن حمل ما فی الخانية علی ما اذا اشهد علی انه یقر بالطلاق هازلا ثم لا یخفی ان ما مر عن الخلاصة انما هو فیما لو انشأ الطلاق هازلا وما فی الخانية فیما لو اقر به هازلا فلا منافاة بینهما، قال فی التلویح وکما انه یبطل الاقرار بالطلاق والعتاق مکرها کذلک یبطل الاقرار بهما هازلا لان الهزل دلیل الکذب کالاکراه حتی لو اجاز ذلک لم یجز لان الاجازة انما تلحق سببا منعقد ایحتمل الصحة والبطلان وبالاجازة لا یصیر الکذب صدقا وهذا بخلاف انشاء الطلاق والعتاق ونحوهما مما لا یحتمل الفسخ فانه لا اثر فیه للهزل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۹ قبیل مطلب فی تعریف السکران وحکمه)

.....



کارونو باندې مجبوره کړه، داجینئ دخپل مور پلار کور ته لاړه او خاوندنه ئې سول جج سره دنکاح د تنسیخ کولو دعوی او کړه، ایا دا فیصله په شریعت کښې منلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ ګل رحیم خطیب اډه مسجد صوابی...۱۸\۱۱۷\۱۴۰۰ھ

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت بره مضمون سره دا ښځه آزاده ده او په بل ځائ کښې باقاعده نکاح کولې شی ځکه چه استحلال دګناه حسب تصریح متکلمینو او فقهاء کفر دې، ﴿۱﴾ قال فی شرح التنویر: ومن یستحل الرقص قالوا بکفره ولاسیما بالدف یلهو ویزمر، وتمام الکلام فی ردالمحتار ۴: ۲۵۹ کتاب المرتد، او چونکه دارومدار دلیل داستحلال دې نه عین اعتقاد حلت حرام، لکونه خفیا، او په صورت مسئوله کښې دلیل داستحلال بغیر د شک نه موجود دې ګناه ذریعه دمعاش جوړول په دې باندې فخر کول وغیره واضح دلائل دی ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الشیخ محی الدین بن بهاء الدین: (قوله ولا نکفر مسلما بذنب من الذنوب وان کانت کبیرة اذا لم یستحلها) واما اذا استحل الذنب وان کانت صغیرة یکون مکذبا للشارع فی النهی فیزول التصدیق علی قلبه فیکون کافراً نعوذبالله.

(القول الفصل شرح فقه الاکبر ۳۰۶ ولا نکفر مسلما بذنب الخ)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۳۳۷ قبیل باب البغاة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن البزاز الکردری: والقرطبی علی ان هذا الغناء وضرب القضیب والرقص حرام بالاجماع عند مالک وابی حنیفة والشافعی واجمد فی مواضع من کتابه...... ورأیت فتویٰ شیخ الاسلام سید جلال الملة والدین الکیلانی رضی الله عنهم ان مستحل هذا الرقص کافر ولما علم ان حرمته بالاجماع لزم ان یکفر مستحله وللشیخ الزمحشری فی کشافه کلمات فیهم یقوم بها علیهم الطامة وصاحب النهایة والامام المحبوبی ایضا اشد من ذلک عزم علی ان یأمر بالکفر کفر.

(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۶: ۳۴۹ المتفرقات من آخر الکتاب)

## که خاوند مرتدشی نودرې حیضه تیرولونه پس نکاح ختمه او کالعدم شی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید سنی اهل سنت مسلمان وو څه وخت پس مرزائی قادیانی جوړشو . په دې وخت کښې اولادهم اوشو دده ښځه هم هغه رنګه سنی پاتې شوه او څوځله دې لره ربوه ته بوتلو سره سره دمرزائی خلیفه په بیعت کولوباندې مجبوره کړه، مګردې انکار اوکړواوس حالانکه مرزائی غیرمسلم قرارشوی دی زیدته د توبې کولو مشوره ورکړې شوه لیکن دې مرتدکیدلوباندې مصردې اوس ایاضروری دی چه زیدمسلمانې ښځې ته طلاق ورکړی یاطلاق خودبخود واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی عبدالکریم راولپنډی ..... ۳۱۱۱۱۱۹۷۴

**الجواب:** دمسلمانې ښځې مسلمان خاوند چه کله مرتد شی نود خاوند اصرار یا درې حیضه تیریدلو نه پس سابقه نکاح ختمه او کالعدم کیږی. د طلاق یا خلع ضرورت نه وی. اوکله چه خاوند د ابتداء نه یعنی د عقدِ نکاح د وخت نه کافر او مرتد وی نودا نکاح د ابتداء الامر نه کالعدم وی. اګرچه خاوند اصرار او اباء کوی یا نه. دا مسائل په شامی ﴿۱﴾ بحر. فتح او عالمګیریه ﴿۲﴾ کښې لیکلی شوی دی. وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: والعدة فی حق حرة ولو کتابیة تحت مسلم تحیض لطلاق ولو رجعیا او فسخ بجمیع اسبابه، قال ابن عابدین: (قوله بجمیع اسبابه) مثل الانفساخ بخیار البلوغ...... والردة فی بعض الصور.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ٦٥۱ قبیل مطلب حکایة شمس الائمةالسرخسی باب العدة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان اخبرت المرأة ان زوجها قد ارتدلها ان تتزوج بآخر بعد انقضاء العدة فی روایة الاستحسان وفی روایة السیر لیس لها ان تتزوج قال شمس الائمة السرخسی الاصح روایة الاستحسان کذافی فتاویٰ قاضی خان فی باب الردة.

(فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۳۴۰ قبیل الباب الحادی عشر فی القسم باب نکاح الکفار)



## په طلاق رجعی کښې رجوع کونکی ته د مزاق په طور طلاق وغیره وئیل جائزنه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید ښځې ته یوطلاق ورکولو نه پس بیا رجوع کړې وه. لکه چه په دین اسلام کښې جائزدی. کافی مودې نه دواړه آباد دی او خوشحالئ سره اوسیږی. (۱) آیا شرعاً په دې کښې څو څه نقصان نشته؟ (۲) که یوسړې د طنز (ټوقو) په طور وائی چه زید طلاق ورکړې وو ددۀ دپاره دا ښځه حلال نه ده وغیره. ددې سړی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سلیم بقلم خود

**الجواب:** چونکه د طلاق رجعی نه پس رجوع جائزده. لقوله تعالی: الطلاق مرتن فامساک بمعروف اوتسریح باحسان، (سورة البقرة)﴿۱﴾ لهذا په زیدباندې څه ګناه اوحرج نشته دې. اوپه ده باندې طنزکولو والاکه چرته جاهل وی نوهغه لره دې پوهه کړئ اوکه چرته دعلم اوپوهې باوجود طنزکوی نوده ته دینی تعزیر ضرورې دې، فی الدرالمختار: وعزر کل مرتکب منکراومؤذی مسلم بغیرحق بقول اوفعل﴿۲﴾. وهو الموفق

## بغیر د سوچ نه او بغیر د قصد نه د طلاق الفاظ وئیل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو مورخپلې لورته درې غوزان ورکړل. لورورته اووئیل چه صرف درې غوزان؟ درې خو طلاق کیږی نو مخامخ دلورپلار ناست وو نوهغه بغیرد سوچ اوبغیر دقصدنه اووئیل چه ستا مور شپږ وطلاقو سره طلاقه ده اوس به ددې مسئلې حل څه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

---

﴿۱﴾ (سورة البقرة آیت: ۲۲۹ پاره: ۲ رکوع: ۱۳)

﴿۲﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۱۹۹ فروع باب التعزیر)

**جواب**: په صورت مسئوله که چرته خاوندهازل وی یعنی ددې الفاظومتعلق سبب دطلاق واقع کیده معلوم وولیکن دې سره طلاق واقع کول مراد او مقصودنه وونوپه ده باندې دابنځه مطلقه مغلظه شوې ده، (شرح التنویرعلی هامش ردالمحتار ۲:۵۸۵)﴿۱﴾او که چرته داخاوند جاهل وی یعنی ددې الفاظومتعلق سبب دطلاق واقع کیدل معلوم نه وونوپه ده باندې ښځه مطلقه شوې نه ده.

**کما فی فتح القدیر ۳: ۳۵۱، ۳۵۲ باب ایقاع الطلاق، ولا بد من القصد بالخطاب بلفظ الطلاق عالما بمعناه او النسبة الی الغائبة...... والحاصل انه اذا قصد السبب عالما بانه سبب رتب الشرع حکمه علیه اراده اولم یرده واما اذا لم یقصده او لم یدر ما هو فیثبت الحکم علیه شرعا وهو غیر راض بحکم اللفظ ولا باللفظ فمما ینبو عنه قواعد الشرع﴿۲﴾. فافهم. وهوالموفق**

## د حمل په صورت کښې هم طلاق واقع کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړی دی لیکن هغه وخت هغه ښځه حامله نه وه او دې سړی هم باربار دحمل اقرارکړې دې ایادحمل په صورت کښې طلاق واقع کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: امیرخان دربندهزاره......۱۳۹۱\۶\۲۸ھ

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: بخالف الهازل واللاعب فانه یقع قضاء ودیانة لان الشارع جعل هزله به جدا فتح، قال ابن عابدین: (جعل هزله به جدا) لانه تکلم بالسبب قصدا فیلزمه حکمه وان لم یرض به لانه مما لا یحتمل النقض کالعتاق والنذر والیمین.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۶۱ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش).

﴿۲﴾(فتح القدیر فی شرح الهدایة ۳: ۲۵۱، ۲۵۲ باب ایقاع الطلاق)



**جواب**: دآئمه اربعه په نزدداحامله ښځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۱﴾ بغیر دحلالې نه بله کومه چاره نشته دې. وهوالموفق

**﴿۱﴾قال العلامة المرغینانی: وطلاق الحامل یجوز عقیب الجماع لانه لا یؤدی الی اشتباه وجه العدة وزمان الحبل زمان الرغبة فی الوطء لکونه غیر معلق او یرغب فیها لمکان ولده منها فلا تقل الرغبة بالجماع.**

**(هدایة علی صدر فتح القدیر ۳:۳۳۷ باب طلاق السنة)**

.........

# باب صريح الطلاق

## په طلاق صريح کښې نيت د بينونت لغوه اونامنظوردې

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه ځمايودوست دښځې سره جنګ اوکړو، ښځې ئې وهله ليکن خلقو دې پرېښې نه خودلو، دې دروازې نه بهر ولاړ وواودوه ځله ئې اووئيل چه ځه ته په مابانديې طلاقه ئې ځه ته په ما باندې طلاقه ئې دغه وخت دده نيت دطلاق مغلظه وو، آيادا طلاق واقع شو؟ بينوا توجروا

المستفتی: غنی الرحمن جړوبه نوشهره......۱۲رجب ۱۴۰۳ھ

**جواب:** دا ښځه په دې خاوندباندې طلاقې رجعی سره مطلقه شوې ده﴿۱﴾ مطلقه مغلظه شوې نه ده ځکه په داسې صريح الفاظوکښې نيت دبينونت لغوه او نامنظوروی، کمافی ردالمحتار ۲:۵۹۲﴿۲﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: ان الصريح نوعان صريح رجعی وصريح بائن فالاول ان يكون بحروف الطلاق بعد الدخول حقيقة غير مقرون بعوض ولا بعدد الثلاث لانصا ولا اشارة ولا موصوف بصفة تنبئ عن البينونة او تدل عليها من غير حرف العطف ولا مشبه بعدد او صفة تدل عليها.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب الصريح نوعان رجعی وبائن)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امين: (قوله اولم ينو شيئا)لما مر ان الصريح لا يحتاج الى النية ولكن لا بد فی وقوعه قضاء وديانة من قصد اضافة لفظ الطلاق اليها عالما بمعناه ولم يصرفه الى ما يحتمله كما افاده فی الفتح وحققه فی النهر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب فی قول البحر باب الصريح)



## د ارتداد زوجين دوجه نه بينونت واقع کيږی نه چه طلاق

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه احدالزوجين مرتد شوی دی نودنکاح څه حکم دې، طلاق واقع شوې دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: غلام سرور اسلام آباد......۱۴۰۱\۱۲\۱۴ھ

**جواب:** دکلمات کفريه وئيلو سره بينونت واقع کيږی مګرطلاق نه واقع کيږی، ارتد احدالزوجين عن الاسلام وقعت الفرقه بغيرطلاق فی الحال قبل الدخول وبعده(هنديه ۱:۳۶۱)﴿۱﴾وهو الموفق

## د ښځې خاوند په کومه ډرامه کښې د فنکارئ په وخت د دريو طلاقو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه ښځې خاونددوارو په کومه ډرامه کښې دفنکارې کولوپه وخت دکوم پارټ کولوپه وخت دفلم دقصې په روسره دغصې په حالت کښې درې طلاقه ورکړل نوايادې ښځې خاوندلره اصل کښې هم طلاق کيږی يانه، نيزدوی اصل نومونه نوردی ليکن په ډرامه کښې ئې فرضی نومونه دی؟ بينوتوجروا

المستفتی: ګلزار احمد حقانی......۳۱\۱۱\۱۹۸۷ء

**الجواب:** حکايت دطلاق اګرچه طلاق نه دی﴿۲﴾ليکن بې پردګئ ته جائزدترقې

---

﴿۱﴾ (فتاوٰی عالمگيرية ۱:۳۳۹ الباب العاشر فی نكاح الكفار)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: ان الصريح لا يحتاج الى النية ولكن لا بد فی وقوعه قضاء وديانة من قصد اضافة لفظ الطلاق اليها عالما بمعناه ولم يصرفه الى ما يحتمله كما افاده فی الفتح وحققه فی النهر احترازا عما لو كرر مسائل الطلاق بحضرتها او كتب ناقلا من كتاب امرأتی طالق مع التلفظ او حكی يمين غيره فانه......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

ګڼرلو والا نکاح باقي پاتې کیدل زیرغورده ﴿۱﴾وهو الموفق

## طلاق قطعی طلاق بائن ته ویلې شی نه چه طلاق ثلاثه ته

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دنن نه تقریباپنځه کاله مخکښې دبیمارئ دوجه نه خپلې ښځې ته په دې الفاظوباندې دستخط کولو سره طلاق ورکړو، چه څه خپلې ښځې ته دکوردناچارې دوجه نه طلاق ورکوم، طلاق قطعی ورکولوسره فارغ کوم، ښځه ځمادترورلوروه اودطلاق وجه صرف ځمابیماری وه چه څه حقوق زوجیت نشم اداکولې، خلوت ضرور شوی دې غرض دې چه دې سره کوم طلاق واقع کیږی اودحلالې به څه صورت وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداسلم سنجوال کینټ......۱۹۹۰ء۱۲۱۹۱

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې تجدیدنکاح ضروری دې دحلالې ضرورت

(بقیه حاشیه) لا یقع اصلا ما لم یقصد زوجته.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب الصریح یحتاج فی وقوعه الی النیة)

وفی الهندیة: رجل قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها او قال قلت هی طالق فهی واحدة فی القضاء كذا فی البدائع.

(فتاوىٰ عالمگیریة ۱:۳۵۵ اذا كرر الطلاق على المرأة المدخول بها)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: وفی عمدة النسفی: واستحلال المعصیة كفر، قال شارحه القونوی كانه اراد والله اعلم، بالمعصیة المعصیة الثابتة بالنص القطعی...... وقال القاضی عضد الدین فی المواقف: ولا یكفر احد من اهل القبلة الا فیما فیه نفی الصانع القادر العلیم اوشرك او انكار للنبوة او ما علم مجیئه بالضرورة او المجمع علیه كاستحلال المحرمات.

(شرح فقه الاكبر ۱۶۲ مطلب یجب معرفة المكفرات لاجتنابها)



نشته ځکه چه طلاق قطعی طلاق بائن یاطلاق غیرمعلق ته وائی نه چه طلاق ثلثه ته﴿۱﴾وهو الموفق

## طلاق منجز سره طلاق معلق باطل کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیدمنکوحې ته طلاق معلق مثلاان دخلت الدارفانت طالق، اوویئل بیاددخول دارنه مخکښې درې نورطلاقې منجز ورکړل پس منکوحه عدت کښې وه چه دخول دارئې هم اوکړونوایااوس داطلاق معلق به هم واقع کیږی یانه؟ که چرته واقع وی نواوس به نوی عدت تیروی یاتداخل کافی دې؟بینوا توجروا

المستفتی:فضل معبودجندول معیار......۱۹۷۴ء۵۱۱۲۱

**جواب:** چونکه طلاق معلق طلاق منجزسره باطل شوې دې لهذاپه دې باندې به عدت وغیره نه مرتب کیږی، کمافی الدرالمختار:ویبطل تنجیزالثلاث للحرة والثنتین للامة تعلیقة للثلاث ومادونها، هامش ردالمحتار ۲:۶۸۴﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: واما الثانی (بائن) فبخلافه وهو ان یكون بحروف الابانة وبحروف الطلاق لكن قبل الدخول حقیقة او بعده لكن مقرونا بعدد الثلاث نصا او اشارة او موصوفا بصفة تنبئ عن البینونة...... واختار فی الفتح ان القسم الثانی لیس من الصریح فلا حاجة للاحتراز عنه واستظهر فی البحر ما فی البدائع معللا بان حد الصریح یشمل الكل قال فی النهر للقطع بانه قبل الدخول او علی مال ونحو ذلك لیس كنایة الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب الصریح نوعان رجعی وبائن)

وقال العلامة الحصكفی: ویقع بقوله انت طالق بائن او البتة، قال ابن عابدین: البتة مصدر بت امره اذا قطع به وجزم نهر.

(الدرالمختار مع الشامی ۲:۴۸۷ بعید مطلب فی قول الامام ایمانی كایمان جبریل)

﴿۲﴾(الدر المختار علی هامش ردالحتار ۲:۵۳۹ باب التعلیق

**د طلاق په تعداد کښې د شک د وجهې نه طلاق مغلظ واقع کیږی نه**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مایوه نیمه میاشت مخکښې قسم کړې وو ددې څه الفاظ دیادنه وتل یقینی دی یامې صحیح الفاظ وئیلی وی ماته یادنه دی مګر شک دې چه ما ددرېو طلاقونو اخستی وو ،یایو یادوه،اوس یادنه دی.دا الفاظ څه داسې وودمثال په طورباندې چه ما باندې ښځه درې طلاقه سره حرام ده یاحرام به وی،حرام به شی،یاحرام وی یادرې طلاق حرام شی پته نشته په دې کښې مې څه رنګه لفظ وئیلې وو ،اوس دطلاق څه حکم دې؟بینوا توجرو

المستفتی:جازوخان لارنس پور کیملپور........۱۹۷۷ء۱۸۱/۵

**جواب:**چونکه ستاددرېو طلاقونو ما اخستلو کښې شک دې لهذا په تاباندې ښځه مطلقه مغلظه شوې نه ده البته تاسو احتیاطاً دنکاح تجدید اوکړئ.

**فی الهندیة ۱ :۳۸۷ فی نوادر ابن سماعة عن محمد رحمة الله علیه اذا شک فی انه طلق واحدة او ثلثا فهی واحدة حتی یستیقن او یکون اکبر ظنه علی خلافه﴿۱﴾. وهو الموفق**

**د طلاقې رجعی د عدت تیریدلونه پس د دوؤ نورو طلاقو ورکولو مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته زبانی یو طلاق ورکړو ،کافی وخت پس هغه دوه نور طلاقونه تحریراً ورکړل هم دغه وخت کښې داسړې یو عالم ته لاړو او هغه ته ئې اووئیل چه تقریبادوه نیم کاله شوې دې چه ماخپلې ښځې ته ذکرشوی ترتیب سره درې طلاقه ورکړل ایادرې واړه واقع شوې وی یانه؟ نوهغه جواب ورکړو چه درې واړه واقع شوې دی اوس بغیردحلالې څه نورصورت نشی کیدلئ ستاسو صاحبانو څه رائې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلطان محمد جامعه فاروقیه کالج روډ اټک......۱۹۸۸ء۱۹۱/۴

---

**﴿۱﴾ (فتاوٰی عالمگیریة ۱ :۳۶۳ مطلب اذا شک انه مطلق واحدة او ثلاثا)**



**جواب:** که چرته خاوند دادوه تحریری طلاقونه.داول طلاق دعدت تیریدلونه پس ورکړی وی نو تجدید دنکاح کافی دې﴿۱﴾ ورنه باقاعده دتحلیل نه بغیرڅه چاره نشته دې.وهو الموفق

**رجوع سره د طلاق رجعی اثرختم اوطلاق په خپل حال باقی پاتې کیږی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته دوه طلاقه ورکړل بیائی عدت کښې دننه رجوع اوکړه څلورپنځه کاله پس دې سړی بیاخپلې ښځې ته یو طلاق ورکړو آیادا طلاق په مخکښې دوه طلاقو سره جمع کولې شی نو مغلظه به شی ددې شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالوهاب مدرسه منهاج العلوم نریاب هنګو۱۹۸۳ء۱۸۱/۷

**الجواب:** رجوع سره دطلاق رجعی اثرختمیږی دطلاق ذات به په خپل حال باقی پاتې وی نوبس په دې سړی باندې په ظاهره ښځه مطلقه مغلظه شوې ده اوبغیردحلالې نه به ده دپاره حرامه وی.لقوله تعالی:فلاتحل له من بعدحتی تنکح

---

﴿۱﴾ ددې وجه داده چه د ړومبی طلاق دعدت تیریدونه پس به ښځه د خاوندنه جدا کیدو سره محل دطلاق پاتې نه شو.په دې وجه به دعدت تیریدو نه پس ورکړې شوی دوه تحریری طلاقونه لغو متصور کیږی.

**کما فی الشامیة: والرجعی لا یزیل الملک الا بعد مضی العدة. (ردالمحتار ۲ :۵۷۶ باب الرجعة) وقال العلامة الکاسانی: فلا یصح الطلاق الا فی الملک او فی علقة من علائق الملک وهی عدة الطلاق.**

**(بدائع الصنائع ۳ :۱۲۶ فصل واما الذی یرجع الی المرأة)**

اوکه د ړومبی طلاق دعدت په دوران کښې ئې دا دوه تحریری طلاقونه ورکړی وی نوبیا به ښځه په دې خاوند باندې مطلقه مغلظه وی.

**قال العلامة ابن عابدین: عبارة الذخیرة وغیرها طلقها رجعیة ثم قال فی العدة جعلت هذه التطلیقة بائنة او ثلاثا صح عند ابی حنیفة وهی اخصر من عبارة المصنف واظهر وقید بقوله فی العدة لانه بعدها تصیر المرأة اجنبیةفلا یمکنه جعل طلاقها ثلاثا او بائنا.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ :۵۰۸ مطلب الصریح یلحق الصریح والبائن)...... (ازمرتب)**

زوجًا غیره(الآیة)﴿١﴾.وهوالموفق

## په طلاق رجعی کښې عدت کښې دننه درجوع نه کولو

## په صورت کښې د تجدید د نکاح نه بغیرڅه چاره نشته

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ماخپلې ښځې ته طلاقې رجعی ورکړې وو حالانکه عدت کښې دننه مارجوع اونه کړې شوه اواوس هم ځومیاشتوپورې ددې سره ملاؤنه شوم اونه مې دلته دیارغیرکښې دګواهانو په مخامخ رجعت اوکړو.اوس کله چه درې حیضه تیرشول لیکن ځه ښځه پریخودل نه غوارم اوپه راتلونکښې اپریل کښې وطن ته ځم ددې سره تجدید دنکاح یاطلاق یا دحلالې حکم شرعی څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:م،ظ،یواې ای ابوظهبی.......١٨ربیع الثانی ١۴٠٣ھ

**جواب:** که چرته ته دعدت تیریدلونه مخکښې دې زبانی مراجعت کړې وی نودتجدیدنکاح ضرورت به نه وو. خواه که دامراجعت دګواهانویادښځې په حضورکښې شوي وی یاپه غیرحضورکښې﴿٢﴾ پس په دې نوعیت مسئوله کښې بغیردتجدیدنکاح نه بله څه لاره نشته البته دتحلیل ضرورت نشته په

﴿١﴾قال العلامة ملاجیون: قوله تعالیٰ: فان طلقها فلا تحل له الآیة...... فقال اکثرالمفسرین انها متصلة بقوله تعالیٰ: الطلاق مرتان، یعنی الطلاق الرجعی مرة او مرتان فان طلقها بعدها تطلیقة ثالثة فلا تحل له بعد ذلک ابدا حتی تنکح زوجا اخر غیره ثم دخل بها ذلک الزوج.

(التفسیرات الاحمدیة ١٢٧ بحث تمسک المعتزلة وجوابه)

﴿٢﴾قال العلامة عبد الله الموصلی: الطلاق الرجعی لا یحرم الوطء وللزوج مراجعتها فی العدة بغیر رضاها وتثبت الرجعة بقوله راجعتک ورجعتک...... وبکل فعل تثبت به حرمة المصاهرة من الجانبین ویستحب ان یشهد علی الرجعة الخ.

(الاختیار لتعلیل المختار ٢:١٨٩ باب الرجعة)



شرط ددې چه تاسودددې نه مخکښې دوه طلاقه څه وخت نه وی ورکړې﴿١﴾ وهوالموفق

## طلاق رجعی کښې درې حیض تیریدلونه مخکښې

## رجوع کولې شې د مهر په دې کښې دخل نشته

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیدخپلې ښځې ته یو طلاق ورکړواوحق مهراونفقه ئې هم ددې په حواله کړه یوه میاشت دیارلس ورځې تیریدلونه پس زیدرجوع اوکړه اوس بعض خلق وائی چه دحق مهر اداکولو اواویوه میاشت دیارلس ورځې تیریدلودجه نه طلاق بائن واقع کیږی لهٰذا رجوع نشی کولې صحیح مسئله څه ده؟بینوا توجروا

المستفتی:حافظ شیرزمان مدرسه تجوید القرآن سول کوارټرپشاور١٢٢محرم ١۴٠٣ھ

**الجواب:** داسړې درې حیضه تیریدلونه مخکښې رجوع کولې شی﴿٢﴾په دې کښې مهرورکولو اونه ورکولو کښې څه دخل نشته البته داضروری ده چه دې سړی ددې نه مخکښې دوه طلاقه نه وی ورکړې (ماخوذ ازشامی)﴿ ٣﴾ وبحرالرائق)﴿۴﴾. وهوالموفق

﴿١﴾قال العلامة الحصکفی: وینکح مبانته بما دون الثلاث فی العدة وبعدها بالاجماع ومنع غیره فیها لاشتباه النسب.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٥٨٢ مطلب فی العقد علی المبانة)

﴿٢﴾وفی الهندیة: وتنقطع الرجعة ان حکم بخروجها من الحیضة الثالثة ان کانت حرة.

(فتاویٰ عالمگیریة ١: ۴٧١ الباب السادس فی الرجعة وفیما تحل به الخ)

﴿٣﴾قال العلامة الحصکفی: (الرجعة) هی استدامة الملک القائم بلاعوض ما دامت فی العدة ای عدة الدخول حقیقة اذ لا رجعة فی عدة الخلوة ابن کمال.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٥٧۴ باب الرجعة)

﴿۴﴾قال العلامة ابن نجیم: (قوله هی استدامة الملک القائم فی العدة) ای الرجعة ابقاء النکاح علی ما کان مادامت فی العدة...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په یولفظ (طلاق) وئیلو سره طلاق رجعی واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مسمی کالاخپلې ښځې ته په یولفظ(طلاقه)کړې ده چه ځه ته طلاقه ئې ددې واقعې یوه میاشت اوڅه ورځې زیاتې تیرشوی دی ددې ګواهان موجوددې په دې سره کوم طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: خادم عبدالباری خطیب مسجدبیروټ........ ۱۹۷۵ء/۱/۲/۸

**جواب:** که چرته دې سړی ددې حادثې نه مخکښې دې ښځې ته دوه طلاقه نه وی ورکړې نوداسړې په عدت کښې دننه دننه زبانی مراجعت کولې شی اوکه چرته عدت تیرشوې وی نوتجدیدنکاح به کوی دحلالې ضرورت نشته دا د طلاقې رجعی حکم دې. صرح به فی جمیع کتب الفتاوی والمعتبرات فلاحاجة الی نقل العبارات﴿۱﴾وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) لقوله تعالیٰ: فامسکوهن بمعروف لان الامساک استدامة الملک القائم لا اعادة الزائل وقوله تعالیٰ: وبعولتهن احق بردهن یدل علی عدم اشتراط رضاها وعلی اشتراط العدة اذ لا یکون بعدها بعلا. (البحر الرائق ۴:۴۹ باب الرجعة)

﴿۱﴾ قال العلامة الموصلی: الطلاق الرجعی لا یحرم الوطء وهو ان یطلق الحرة واحدة او ثنتین بصریح الطلاق من غیر عوض، والدلیل علیه قوله تعالیٰ: وبعولتهن احق بردهن، والبعل هنا الزوج...... والانسان انما یملک ردالمنکوحة الی الحالة التی کانت علیها قبل الطلاق فلایکون النکاح زائد امادامت العدة باقیة فیحل الوطء وللزوج مراجعتها فی العدة بغیر رضاها...... وله ان یتزوج مطلقته المبانة بدون الثلاث فی العدة وبعدها لان حل المحلیة باق اذ زواله بثالثة ولم توجد وانما لا یجوز لغیره فی العدة تحرزا عن اشتباه الانساب وهو معلوم فی حقه.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۸۹، ۱۹۳ باب الرجعة)



## په طلاق رجعی کښې دعدت په دوران کښې رجوع نه کولوسره بائنه کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته د دوبئ نه طلاقې رجعی لیکلوسره راواستولواودمورپلارمنع کولودوجه نه دوه نورطلاقه ئې راوانستول اووائی چه نورطلاق نه راستوم لیکن که ځما ښځه ځماپه کورکښې وی نوکورته نه راځم ددې طلاق اول اوس درې میاشتې پوره کیدووالادی ایادرې میاشتې پوره کیدلوباندې ددې سړی ښځه مطلقه مغلظه کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدامین نرتوپه اټک........ ۱۹۹۱ء/۱/۱۱/۸

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت داښځه عدت تیریدلونه پس یوطلاق بائن سره به مطلقه شمارلې کیږی چه په هغې کښې تجدیدنکاح کافی دې.﴿۱﴾ وهوالموفق

## که چرته طلاق ورکول مسلّم یا مبرهن وی نو ښځه مطلقه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ماته ځما خاوند دځو کسانوپه مخامخ ثوځله طلاق راکړواووائی که چرته جمیله ساتم نوموربه ساتم حالانکه دطلاق دوه ګواهان موجوددی اوس څه حکم دې؟بنیواتوجروا

المستفتی: ج،م،ن،مری راولپنډی........ ۱۲/۱ستمبر۱۹۷۹ھ

**جواب:** که چرته دخاوند دطرفنه ددې الفاظووئیل تسلیم شده یاپه شهادت سره ثابت شده وی نوداښځه مطلقه اوآزاده شوې ده. والمسئلة من الواضحات فلا

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة وبعد انقضائها وان کان الطلاق ثلاثا لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۲ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

العبارات﴿۱﴾. وهوالموفق

حاجة الى نقل العبارات﴿۱﴾.وهوالموفق

## د ګواهانو په مخامخ د دریو طلاقو د اقرارنه

## پس صرف تجدید نکاح باندې اکتفاءجائزنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی ځما اوځما د قاری صاحب مخامخ اقراراوکړوچه ماخپله ښځه پریخي ده په درې شرط طلاق باندې اوس بغیردحلالې دابنځه دده دپاره جلاله کیدلې شی یانه؟ اود اقرار نه پس یومولوی صاحب ددوی دنکاح تجدیداوکړو،ایاصرف تجدیدد نکاح به په دې صورت کښې کافی وی؟بینوا توجروا

المستفتی:مولاناقاری فضل ربی صاحب تاجک حضرواټک۱۹۸۸ء۱۸۱۳۰

**جواب:** که چرته ددې سړی ښځې ته درې طلاقه ورکول تسلیم شده یادشهادت شرعیه نه ثابت شده وی نوپه ده باندې دابنځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۲﴾ د باقاعده حلالې نه بغیربله څه لاره نشته دادآئمه اربعه مذهب دې اودقرآن اوحدیث اواثارنه هم داثابت ده پس صرف نکاح باندې اکتفاءکول باطل اوکالعدم دی﴿۳﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: وشرط فیها شهادة رجلین او رجل وامرأتین سواء کان الحق مالا او غیر مال کالنکاح والطلاق.

(فتاویٰ عالمگیریة ۳: ۴۵۱ کتاب الشهادات الباب الاول)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: ونصابها لغیر ها فی الحقوق سواء کان مالا او غیره کنکاح وطلاق رجلان او رجل وامرأتان.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴: ۴۱۳ کتاب الشهادات)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدین: وذهب جمهور الصحابة والتابعین ومن بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع ثلاث قال فی الفتح بعد سوق الاحادیث الدالة علیه وهذا یعارض ما تقدم واما امضاء عمر الثلاث علیهم مع عدم......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## دریو طلاقوکښې د تحلیل نه بغیرلاره نشته

## او طلاق رجعی کښې رجوع کافی ده

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوه میاشت اوشوه چه ځما دخپل خاوند سره جهګړه شوې وه،غصه کښې هغه دطلاق اووئیل ماته هم غصه راغله اوغلطی هم ځماوه چه ماهم په غصه کښې ورکوټې هلک لره خورله واستولوچه مااوغواړه،ځمااوخې اوخورراغلل دوی اووئیل چه د طلاق ئې وئیلووویانه نوځماخاونداوماووئیل چه آووئیلی مووو،په دې باندې ځماخورځه دځان سره کورته بوتلم اوځمادرې ورکوټی بچی ئې پریخودل اولاړه،ځماخاونداووئیل چه ستابچیان دی دا درې ږاړه ځان سره کړه،بیاخلق په مینځ کښې راغلل ماته ئې اووئیل چه داورکوټی ورکوټی بچی دی ددې نه به څه جوړیږی،بهرحال دصلحې په وخت خاونددټولوپه مخامخ دااووئیل چه څه په غصه کښې راغلم دطلاق مې اووئیل حقیقة ما طلاق نه دې ورکړې که چرته ماطلاق ورکړی وی نوتحریری طلاق به مې ورکړې وی،ځمایولورځه دپلارپه وئیلوباندې کورته راوستم اوس برائ مهربانی مالره زرترزره جواب سره نوازکړئ چه په ماڅومره کفاره اداکول دی چه کفاره اداکولوسره دخاوندکورته لاړه شم؟بینوا توجروا

المستفتی: شهاب الدین نوشهره صدر......۲۵\۱شوال ۱۳۸۹ھ

**جواب:** که چرته خاونددرې طلاقه ورکړی وی نوبغیردتحلیل نه څه لاره نشته

---

(بقیه حاشیه) مخالفة الصحابة له وعلمه بانها کانت واحدة فلا یمکن الا وقد اطلعوا فی الزمان المتاخر علی وجود ناسخ او لعلمهم بانتهاء الحکم لذلک لعلمهم باناطته بمعان علموا انتفاءها فی الزمن المتأخر وقد ثبت النقل عن اکثرهم صریحا بایقاع الثلاث ولم یظهر لهم مخالف فما ذا بعد الحق الا الضلال وعن هذا قلنا لو حکم حاکم بانها واحدة لم ینفذ حکمہ لانه لا یسوغ الاجتهاد فیه فهو خلاف لا اختلاف الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۵ کتاب الطلاق)

دې دتحلیل تفصیل دمقامی عالمانونه معلوم کړئ اوکه چرته یویادوه طلاقه ئې ورکړې وی نوپه عدت کښې دننه زبانی رجوع کول کافی دی اوعدت نه پس تجدید دنکاح حکم شرعی دې =﴿۱﴾وهوالموفق

**په کورکښې موجود دریوښځوکښې په یوباندې بغیر د تعین دطلاق صورت**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی درې ښځې دی داسړې دکورنه بهرتلې وو. کله چه واپس راغلونودروازې کهولاوهلودپاره ئې آوازاوکړودننه نه یوه ښځه راغله دروازه ئې کهولاؤکړه اوواپس لاړه او دې سړی اونه کتل چه داکومه ښځه وه بیاکله چه داخاونددننه لاړونوده اووئیل چه کومې ښځې ماته دروازه کهولاؤکړې ده هغه په ماپه درې طلاقو طلاقه ده اوس دریواړه ښځې منکرې دی تردې چه هریوقسم هم کوی چه دروازه مانه ده کهولاؤکړې نیزددې دریواړوښځونه علاوه بله کومه ښځه نه وه اوس به په کومې ښځې باندې داطلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرفیق........۱۲جولائی ۱۹۷۵ء

**جواب:** که چرته دګوانډیانووغیره نه دکوم اجنبی دراتلواحتمال وی نومعامله به صحیح شی ګنی په دې سړی باندې به ټولوښځوسره جماع وغیره کول حرام وی اګرچه مطلقه به صرف یوه بغیردتعین نه وی.

یدل علیه ما فی الهندیة ا : ۳۸۹ ولو طلق احدی نسائه الاربع ثلاثا ثم اشتبهت وانکرت کل واحدة ان تکون هی المطلقة لا یقرب واحدة منهن لانه حرمت علیه احداهن ویجوز ان تکون کل واحدة وقال اصحابنا رحمهم الله تعالیٰ کل مالا یباح عند الضرورة لا

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة وبعد انقضائها وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة وثنتین فی الامة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها، کذا فی الهدایة.

(فتاویٰ عالمگیریة ا :۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)



یجوز التحری فیه والفروج من هذا الباب﴿۱﴾. وهوالموفق

**زمونږ په عرف کښې درې شرطه درې ځله ته وئیلې شی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته په دې الفاظوسره طلاق ورکړوچه ته په ماپه دریوشرطونوباندې طلاقه ئې آیا دې سره درې طلاقه واقع کیږی حالانکه لفظ شرط لغوه معلومیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عطاءالرحمٰن پولیس لائن اټک.......۲۹۱۹۱ء۱۹۸۸

**الجواب:** زمونږد علاقې په عرف کښې درې شرطونه درې ځله ته وئیلې شی دې ځکه ددې عرف په بنیادباندې دابنځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۲﴾ وهوالموفق

**درې شرط طلاقوسره ښځه مطلقه مغلظه کیږی**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مسمی شریف خپلې ښځې ته ددې ګواهانوپه مخامخ علی.امین.اوزمان درې شرط طلاق ورکړل او ښځه مخامخ موجوده وه لیکن دښځې نوم ئې وانه خستلودښځې خاوندپه مینځ کښې بیاجهګړه شروع شوه په جهګړه کښې دبل سړی کورته اورسیدل اوپه دغه ځائ کښې ئې دغصې په حالت کښې هم داالفاظ استعمال کړه ددې شهادت مطابق مسمی شریف دپاره څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: مقبول الرحمٰن.......۶۱۱۱ء۱۹۷۵

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ا : ۳۶۴ قبیل الفصل الثانی فی اضافة الطلاق الی الزمان)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: العرف والعادة ما استقر فی النفوس من جهة العقول وتلقته الطباع السلیمة بالقبول...... واعلم ان اعتبار العادة والعرف رجع الیه فی مسائل کثیرة حتی جعلوا ذلک أصلا فقالوا تترک الحقیقة بدلالة الاستعمال والعادة الخ.

(شرح عقود رسم المفتی ص۳۷ والعرف فی الشرع له اعتبار)

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت په دې خاوند ښځه مطلقه مغلظه شوې ده بغیر دتحلیل نه اوس لاره نشته(۱).وهو الموفق

## دړې شرطه قائم کولو سره ئې طلاق ورکړل اګرچه په مذاق کښې وی طلاق مغلظه دې

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دکوردناچارې دوجه نه خپلې ښځې ته دړې شرطه قائم کولوسره طلاق ورکړودطلاق په وخت داسړې په هوش اوحواس کښې ووددې وجه نه جینئ دمورپلارکورته راغله هلک دوباره رجوع اوکړه چه څه جینئ واپس راولم اودا الفاظ ماپه مذاق کښې وئیلی دی مادرې طلاق شرط باندې کړی دی مګردمذاق په شکل کښې،دده داالفاظ ډیروخلقوآوریدلی دی په طوردشهادت ددووکسانو نومونه دادی.........که چرته ضرورت محسوس شی نونورکسان به هم شهادت ورکړی،نیزذکرشوی داتصدیق کړې دې چه مادا الفاظ په مذاق کښې وئیلی وواوس جینئ ده سره دتلونه انکارکوی دمسئله څه حل دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:ګل رحمٰن کوټکی بارپاد کیمپ........۲۳؍۱۲؍۱۹۷۱ء

**جواب**:په دې سړی باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده بغیردتحلیل نه څه لاره نشته اګرکه داالفاظ ده دمذاق اوهزل په طورباندې وئیلی وی،ف الدرالمختار: بخلاف الهازل فانه يقع قضاء وديانة لان الشارع جعل هزله به جداهامش المختار ۲:۵۸۵(۲)وهو الموفق

(۱) وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

(۲) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۱ کتاب الطلاق)



## د غصې په حالت کښې په ما باندې ښځه په يولسو شرطونو باندې حرامه ده د وئيلو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی خپلې ښځې سره په معمولی بحث باندې تکراراوشوچه هغې کښې دسړی هوش اوحواس صحیح نه وواوپه غصه کښې راغلواوښځې ته ئې اووئیل چه په ما باندې ښځه په یولسوشرطونوباندې طلاقه ده.یوه ګهنټه پس هغه په خپله خبره باندې پریشان شواودطلاق نه ئې انکاراوکړوچه مادغصې په حالت کښې طلاق ورکړې دې ځماهوش اوحواس صحیح نه وو.په دې موقع باندې مونږ موجودووامونږددې تصدیق کووچه واقعی ددې سړی هوش اوحواس صحیح نه وونیزپه رنړا دشریعت کښې دیودوه دړې شرطونونومونه ئې هم نه دی اخستلې،اوس شرعی حل څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: محمداکرم خان شنکیاری مانسهره

**جواب**:که چرته ددې سړی دغصې په وخت کښې ټولې خبرې یااکثرې خبرې بې خوده وې اوداکیفیت مقامی خلقوته معلوم وی نودده طلاق نامنظوردې ګنی ښځه مطلقه مغلظه شوې ده بغیردتحلیل نه څه لاره نشته.

فی ردالمحتار ۲:۵۸۷ فالذی ینبغی التعویل علیه فی المدهوش ونحوه اناطة الحکم بغلبة الخلل فی اقواله وافعاله الخارجة عن عادته (الی ان قال) فما دام فی حال غلبة الخلل فی الاقوال والافعال لا تعتبر اقواله وان کان یعلمها ویریدها(۱) . وهو الموفق

## شپږو کلمو وئیلو سره ئې نکاح کړې وه اوس هم دغه کلمو وئیلوسره د طلاق ورکولوحکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی داالفاظ وئیلی دی چه دشپږو کلمو وئیلو سره ئې اووئیل چه مادا شپږ کلمې وئیلې وې دامې

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)

په زوجیت کښې راوستلې وه اواوس دې کلموونیلوسره دې ته طلاق ورکوم ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداجمل......۱۲۹ذی قعده ۱۳۹۱ھ

**جواب:** چونکه داالفاظ په عرف کښې بینونت دپاره استعمالیږی﴿۱﴾ لهٰذا دا ښځه بغیرد تجدید نکاح نه واپس نشی راوستلې البته دحلالې ضرورت نشته﴿۲﴾. وهوالموفق

## که چرته ښځه واقعی طلاق غواړی نودرې طلاقه دی. ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ایاداشان طلاق واقع کیږی چه ګواه هم نه وی نیزدښځې دپلارنوم ئې هم نه وی لیکلې اوښځې ته دطلاق اختیارورکړې شوې دې طلاق نامه څه داسې ده. .مسماة فلانې طلاق غواړی که چرته داواقعی طلاق غواړی نودادرې طلاقوسره طلاقه ده.ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټرمثل خان ډاګئ صوابی......۱۹۸۸ء۱۴۱؍۳۰

**جواب:** داسې کلام دوه طریقواستعمالیږی اول تعلیق دویم مجازاة،

کما فی ردالمحتار ۳:۳۴۳ قال فی البحر فلو سبته بنحو قرطبان وسفلة فقال ان كنت كما قلت فانت طالق تنجز سواء كان الزوج كما قالت اولم يكن لان الزوج فی الغالب لا يريد الا

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: واما الثانی (البائن) وهو ان يكون بحروف الابانة وبحروف الطلاق لكن قبل الدخول حقيقة او بعده لكن مقرونا بعدد الثلاث نصا او اشارة او موصوفا بصفة تنبئ عن البينونة او تدل عليها من غير حرف العطف او مشبها بعدد او صفة تدل عليها.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب الصريح نوعان رجعی وبائن)

﴿۲﴾وفی الهندية: اذا كان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان يتزوجها فی العدة وبعد انقضائها. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۴۷۳ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)



ايذاء ها بالطلاق فان اراد التعليق يدين وفتوىٰ اهل بخارا عليه﴿۱﴾

پس که چرته خاوند داتحریردانتقام په اراده سره کړې وی نودا ښځه مطلقه مغلظه شوې ده اوکه چرته دتعلیق په اراده سره ئې کړی وی نودښځې د غوښتلو نه بغیرطلاق نه واقع کیږی﴿۲﴾وهوالموفق

## (نه په ماباندې په دریو طلاقوسره طلاقه ئې) داالفاظ په غلطئ سره د خولې نه وتل

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دیوسړی دخولې نه دا الفاظ اووتل چه ته په ماباندې په دریو طلاقوسره طلاقه ئې په غلطئ سره اووتل ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مثل خان خلیل تهکال پایاپشاور......۱۴۰۱؍۱۱؍۱۷ھ

**جواب:** په ظاهره په دې خاوند باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې دې﴿۳﴾ممکنه ده (حاضرکیدلوسره) زبانی تفصیل نه خه مخرج پیداشی﴿۴﴾وهوالموفق

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۳۶ مطلب العليق المراد به المجازاة دون الشرط)

﴿۲﴾ وفی الهندية: رجل قال لامرأته انت طالق ثلاثا ان شئت فقال انا طالق فهو باطل وان قالت انا طالق ثلاثا فهو ثلاث كذا فی فتاوىٰ قاضی خان.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۴۰۴ الفصل الثالث فی المشيئة)

﴿۳﴾ وفی الهندية: وان كان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها كذا فی الهداية.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۴۷۳ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)

﴿۴﴾ قال العلامة الحصكفی: او مخطئا بان اراد التكلم بغير الطلاق فجرىٰ على لسانه الطلاق او تلفظ به غير عالم بمعناه او غافلا او ساهيا وبالفاظ مصحفة يقع قضاء فقط، قال ابن عابدين: (قوله غير عالم بمعناه) كما لو قالت لزوجها اقرأ على اعتدى انت طالق ثلاثا ففعل طلقت ثلاثا فی القضاء لا فيما بينه وبين الله تعالى......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## تاته ځما د طرف نه په درې طلاقه. طلاق مغلظه دې

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځماد خورواده ځما د ترور زوئی سره اوشود کورد معمولی ناچارې په بنیاد باندې هغه په یووخت درې طلاقه ورکړه اووې وئیل چه تاته ځماد طرفنه درې طلاقه، اودې ته ئې دوه درې ځله یاد کړه خورددې خبرې ذکرمونږ ته قطعانه دې کړې روستو ځما کورته راغله ماپه خبروخبروکښې ددې نه دامعلومات حاصل کړه. ایاپه دې صورت کښې طلاق شوې؟ که چرته طلاق شوې وی نوجینئ دمهرحقداره ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: فواره چوک پشاور

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دمستفتی دابنځه پخپل خاوندباندې مطلقه مغلظه شوې ده سواداتحلیل نه څه لاره نشته دې﴿۱﴾اوپه دې خاوند مهر ورکول واجب دې﴿۲﴾ دادتول مسائل دآئمه اربعه په مینځ کښې اجماعی دی﴿۳﴾ وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) اذا لم یعلم الزوج ولم ینو بحر عن الخلاصة. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۴۶۱ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۳ فصیل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: والمهر یتاکد باحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحیحة وموت احد الزوجین سواء کان مسمی او مهر المثل حتی لا یسقط منه شیئ بعد ذلک بالابراء من صاحب الحق کذا فی البدائع. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۰۳ الفصل الثانی فیما یتاکد به المهر والمتعة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وذهب جمهور الصحابة والتابعین ومن بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع ثلاث...... وقد ثبت النقل عن اکثرهم صریحا بایقاع الثلاث ولم یظهر لهم مخالف فما ذا بعد الحق الا الضلال. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۵ کتاب الطلاق)



## درې ځله د طلاق لفظ وئیلو سره د طلاقې مغلظه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه دوه درې میاشتونه ځما او ځماد ښځې په مینځ کښې ځماددوستانو اویارانو په باره کښې تکرار او سختې خبرې هفته کښې دوه ځل ضرورکیدلې ماخپل دوستان اویاران اوکتل هغوی په کومه غلطه لاره باندې نه وومابنځه باربارپوهه کړه چه ځما دوستان اویاران غلط نه دی بیاهم هغه په خپل ضدباندې ولاړه وه یوځل ځما دوکان ته راغله ځمادوستانو اویارانو ته ئې خبرې اوکړې زه خاموش پاتې شوم دشپې په کورکښې هم هنګامه شوه مابرداشت کړه په صباورځ مابنام کله چه زه کورته راغلم نوښځې ځمانه طلاق اوغوښتلو دمختصر تکرارنه پس زه کورنه بهرراووتلم دشپې چه کله کورته لاړم ښځې ځمانه دطلاق حاصلولو دپاره انتهائی جذباتی الفاظ استعمال کړه چه هغه ما برداشت نه کړې شول ما دخپل عزیزپه مخامخ درې ځله دښځې په مخکښې دطلاق لفظ استعمال کړو دهغې نه پس نن صباهغه دخپلوبچوسره یوځائ ځمادکورپه یوحصه کښې اوسیږي په هغه ورځوکښې هغه حامله هم وه تراوسه پورې مادحقیقت نه څوک خبرکړې نه دی تاسوښه مشوره راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: م،ی، لانډهی کراچی ۲۲........ ۱۳/۹/۱۹۷۱ء

**الجواب:** په تاسوباندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده بغیردتحلیل څه لاره نشته﴿۱﴾ وهوالموفق

## لس دولس ځل متواتر د طلاق وئیلوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

متواترلس دولس ځل دګواهانو په مخامخ طلاق ورکړو ددې سړي د باربار طلاق وئیلو شرعي محمدی کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق کوهاله ایبټ آباد........ ۲۲\۸\۱۹۷۲ء

**الجواب**: په دې سړي باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده. الاان ینوی التاکید فیدین﴿۱﴾ وهو الموفق

## د درېو کانړو طلاق سره ښځه مغلظه جوړیږی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید په کور کښې غضب او غصې سره او وئیل چه ځما ښځه په درېو کانړو باندې طلاقه ده ایا په غضب او غصې کښې که چرته دا طلاق واقع شوې وی نو درې واقع دی یا په دې کښې رجوع صحیح ده؟ او درېو واقع کیدلو کښې دا ښځه د زید دپاره څرنګه حلاله کیدې شی؟ حتّٰی تنکح زوجا غیره (الآیة) ددې نه څه مراد دې. یعنی زوجِ ثانی دې دخول او کړی یا صرف خلوت صحیحه هم کافی دې؟ د حلت چه کوم صورت وی لیکلو سره ارسال او فرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اسماعیل دیر........ ۲۳\۳\۱۹۷۵ء

**الجواب**: په صورت مسئوله کښې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده. بغیر د تحلیل نه څه لاره نشته دې. د عدت نه پس دې دویم خاوند سره نکاح او کړی او کم از کم یو ځل جماع کولو نه پس دې طلاق ورکړی که چرته او غواړی. او عدت تیریدلو نه پس د اولنی خاوند سره دې نکاح او کړی که چرته ښځه او غواړی﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: کرر لفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۹۹ فروع باب طلاق غیر المدخول بها)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها...... ویشترط ان یکون الایلاج موجبا للغسل وهو التقاء الختانین. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)





## حاملې ښځې ته د طلاق ثلاثه اود مخلص مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه (۱) حاملې ښځې ته درې طلاقه ورکول موثر دی یا نه؟ (۲) او د طلاق ثلاثه نه پس د جواز څه صورت شته یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فاروق واه کینټ........ ۳۰\۱۰\۱۹۷۷ء

**الجواب**: د حمل په حالت کښې درې طلاقه موثر دی او په دې سره ښځه مطلقه مغلظه جوړیږی د آثار صحابه، نصوص قرآنی، او آئمه د مسلک نه بعینه دا ثابت دی﴿۱﴾ طلاق ښځې خپله اوریدلی وی یا معتمد علیه ګواهانو نه ثابت کیدلو سره طلاق واقع کیدلې شی او ورستو د جواز دپاره صرف د حلالې صورت

---

﴿۱﴾ یجوز طلاق الحامل فی ای وقت شاء لما اخرجه المشکواة عن عبد الله بن عمر رضی الله عنهما انه طلق امرأة له وهی حائض فذکر عمر لرسول الله ﷺ فتغیظ فیه رسول الله ﷺ ثم قال لیراجعها ثم یمسکها حتی تطهر ثم تحیض فتطهر فان بداله ان یطلقها فلیطلقها طاهرا قبل ان یمسها فتلک العدة التی امر الله ان تطلق لها النساء، وفی روایة مره فلیراجعها ثم لیطلقها طاهرا او حاملا متفق علیه، اخرجه مسلم والنسائی وابوداؤد وابن ماجة. وقال الطیبی: دل علی اجتماع الحیض والحبل وقیل الحامل اذا کانت حائضة حل طلاقها اذ لا تطویل للعدة فی حقها لان عدتها بوضع الحمل، قال الملا علی القاری: وعندنا ان الحامل لا تحیض وما رأته من الدم فهو استحاضة...... ولنا قوله ﷺ فیما رواه الدارقطنی عن ابن عمر انه طلق امرأته وهی حائض ثم اراد ان یتبعها بطلقتین اخیرتین عند القرائن فبلغ ذلک رسول الله ﷺ فقال یا ابن عمر ما هکذا امرک الله قد اخطأت السنة، السنة ان تستقبل الطهر فتطلق لکل قرء، فامرنی فراجعتها فقال اذا هی طهرت فطلق عند ذلک او امسک، فقلت: یا رسول الله لو طلقتها ثلاثا اکان یحل لی ان اراجعها؟ فقال: لا کانت تبین منک وکان معصیة، کذا ذکره ابن الهمام.

(هذا ما اخذت من مرقاة المفاتیح وغیره)......(مرتب)

ممکن دي﴿۱﴾ وهوالموفق

**قرآن باندې لاس ایخودلو سره دري څله اووا ئی**

**ته په ماباندې طلاقه ئې ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه عمومادښځې خاوندپه مینځ کښې جګهړې راځی ځماهم په کورکښې ښځه ده جهګړه اوشوه اول ځل کله چه جهګړه اوشوه نوښځې قرآن پاک راوړواوماته ئې اووئیل په دې باندې لاس ایخودلوسره اووایه چه ته په ماباندې طلاقه ئې څه دخدائ نه ویریدم په هغې مې صرف لاس کښیوده خوبیاصلح اوشوه څه وخت پس بیا زمونږ په مینځ کښې ناچاری اوشوه دې بیاقرآن پاک راوړلوسره اوئیل چه په دې باندې لاس کیږده اواوایه چه ته په ماباندې طلاقه ئې بنده ډیرپه غصه کښې وو، قرآن پاک باندې لاس ایخودلوسره ماپه یوساه کښې درې مرتبه اووئیل چه ته په ماباندې طلاقه ئې طلاقه ئې دې نه پس جهګړه ختمه شوه اوښه په خوشحالې زندګی تیریدله اوس زه په ملائیشیاءکښې یم اوجینئ دموږپلارسره ده زه دادښځې په حیثیت سره ساتلې شم؟ بینوا توجروا

المستفتی: اقبال شاه کولالامپور......... ۱۷\۱۱\۱۹۸۷ء

**جواب:** ددې تحریرپه بنیادباندې ستاښځه مطلقه مغلظه شوې ده بغیرد حلالې نه څه لاره نشته دې، فلاتحل له من بعدحتی تنکح زوجاغیره(الآیة)﴿۲﴾البته

﴿۱﴾قال العلامة النسفی: (فان طلقها) مرة ثالثة بعد المرتین (فلاتحل له من بعد) من بعد التطلیقة الثالثة (حتی تنکح زوجا غیره) حتی تتزوج غیره......؛ والاصارة شرطت بحدیث العسیلة کما عرف فی اصول الفقه والفقه فیه انه لما اقدم علی فراق لم یبق للندم مخلصا لم تحل له الا بدخول فحل علیها لیمتنع عن ارتکابه (فان طلقها) الزوج الثانی بعد الوطء (فلا جناح علیهما) علی الزوج الاول وعلیها (ان یتراجعا) ان یرجع کل واحد منهما الی صاحبه بالزواج.

(تفسیر مدارک ۱:۱۲۸ سورة البقرة آیت: ۲۳۰)

﴿۲﴾(سورة البقرة آیت: ۲۳۰، رکوع: ۱۳، پاره: ۲)





ممکن ده چه زبانی بیان سره څه آسانی معلومه شی﴿۱﴾وهوالموفق

**ته طلاقه ئې طلاقه ئې ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته په یووخت اووئیل ته طلاقه ئې طلاقه ئې ایاپه یووخت باندې درې طلاقه واقع کیږی یابه یو طلاق متصوروی؟بینوا توجروا

المستفتی: اصغرعلی میلوډی مارکیټ اسلام آباد...... ۱۳\۴\۱۹۸۹ء

**الجواب:** دقرآن اواحادیثواوآثارصحابه په رڼاسره درې طلاقه درې وی نه چه یو. اوهم داداَئمه اربعه مذهب دې، خلافاللسلفیة﴿۲﴾ پس صورت مسئوله کښې په ظاهره درې طلاقه واقع شوې دی. الاان نوی التاکیداولم ینوشیئامن

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: کرر لفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۹۹ فروع قبیل باب الکنایات)

﴿۲﴾وفی تعلیق بلوغ المرام للبسام السلفی: ذهب جمهور العلماء ومنهم الائمة الاربعة وجمهور الصحابة والتابعین الی وقوع الطلاق الثلاث بکلمة واحدة اذا قال: انت طالق ثلاثا، ونحوه او بکلمات ولو لم یکن بینهن رجعة ولا نکاح، ودلیلهم حدیث رکانة بن عبد الله انه طلق امرأته البتة فاخبر النبی ﷺ بذلک فقال، والله ما اردت الا واحدة، وهذا الحدیث اخرجه الشافعی وابوداؤد والترمذی وصححه وابن حبان والحاکم، ووجه الدلالة من الحدیث استحلافه ﷺ للمطلق انه لم یرد بالبتة الا واحدة فدل علی انه لو اراد بها اکثر لوقع ما اراده. واستدلوا ایضا بما فی صحیح البخاری عن عائشة ان رجلا طلق امرأته ثلاثا فتزوجت فطلقت فسئل رسول الله ﷺ اتحل للاول؟ قال: لا، حتی یذوق عسیلتها کما ذاق الأول ولو لم تقع الثلاث لم یمنع رجوعها الی الاول الا بعد ذوق الشیئ عسیلتها، واستدلوا ایضا بعمل الصحابة ومنهم عمر بن الخطاب رضی الله عنهم علی ایقاع الثلاث بکلمة واحدة ثلاثا کما نطق بها المطلق وکفی بهم......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

التاکید والاستیناف کمافی شرح التنویرمع ردالمحتار﴿۱﴾ لکن الله یعلم الکـاذب من الصادق، وهوالموفق

## یو دوه درې طلاقه. د درې ځلورو ځلو وئیلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه مااوخمابښځې بهرپه پټوکښې ونې کټکولې په خپلوکښې په جهګړه شوحتی چه څه په غصه کښې راغلم اودیته مه اوویل ته یودوه درې طلاقه، یودوه درې طلاقه، هم دغه شان درې ځلورځله مې اوویل اویودوه درې مې وئیل په ګوتوباندې مې اشاره اوکړه ایاطلاق واقع شو؟ بینواتورجوا

المستفتی: ابن غلام محمدراولپنډی

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دابښځه خاوندباندې مطلقه مغلظه شوې ده﴿۲﴾

(بقیه حاشیه) قدوة واسوة ولهم ادلة غیر ما سقنا، ولکن ما ذکرنا هو الصریح الواضح لهم...... وذهب جماعة من العلماء الی...... لا یقع علیها الا طلقة واحدة مروی عن الصحابة والتابعین وارباب المذاهب...... ومن ارباب المذاهب داود واکثر اصحابه...... منهم المجد عبد السلام بن تیمیة وکان یفتی بها سرا وحفیده شیخ الاسلام ابن تیمیة یجهر بها ویفتی بها فی مجالسه وقد عذب من اجل القول بها هو وکثیر من اتباعه ومنهم ابن القیم الخ.

(التعلیق علی بلوغ المرام من ادلة الاحکام ۲۶۱ کتاب الطلاق)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: کرر لفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین، قال ابن عابدین: ای ووقع الکل قضاء وکذا اذا طلق اشباه ای بان لم ینو استینافا ولا تاکیدا لان الاصل عدم التاکید. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۹۹ فروع قبیل باب الکنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة الموصلی: والبدعة ان یطلقها ثلاثا او ثنتین بکلمة واحدة او فی طهر لارجعة فیه او یطلقها وهی حائض فیقع ویکون عاصیا.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۶۰ کتاب الطلاق)



دحلالې نه بغیرلاره نشته دې﴿۱﴾وهوالموفق

## خدائ او رسول حاضراو ناظر ګڼړلوسره طلاق ورکوم. دربوځلو وئیلوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دجینئ دپلار د دباؤ او د ډیرې ویرې دوجه نه دجینئ دخاوندنه مطالبه اوکړې شوه چه طلاق ورکړه اوته به ضرورطلاق ورکوې، ته ددې قابل نه ئې چه ښځه اوساتې طلاق ورکړه اوځه شابه ورک شه، وغیره، بیائې دوه سړی راوستل اوپه هلک باندې ئې قرآن مجید په لاس کښې اوچت کړودا الفاظ ئې پرې درې ځله اوویل چه زه قرآن مجید خدائ رسول حاضرناظرګڼړلوسره خپلې ښځې ته طلاق ورکوم په رڼړا دشریعت کښې به طلاق وی یانه؟بینوا توجروا

المستفتی: سیدمظفراحمدشاه مرزااټک.........۲۵/۱۰/۱۹۷۵ء

**جواب:** محترم المقام دامت برکاتکم السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه پیغمبرحاضر ناظرګڼړل اومنل غیراسلامی عقیده ده ددې نه تائب کیدل ضروری دی، په تمام مخلوق کښې څوک الله تعالی حاضرناظرنه دې جوړ کړې﴿۲﴾ بهرحال دمسئله متعلق واضحه دې وی چه غیرمرتد خاوند باندې

﴿۱﴾ قال الشیخ شمس الحق الافغانی: ولو ابان الحرة بالطلقات الثلاث او الامة بالطلقتین فلیس له تزویجها حتی تنکح زوجا غیره بنکاح صحیح مع الدخول ثم تحصل الفرقة بینهما بالموت او الطلاق (من المحل المزبور).

(معین القضاة والمفتین ۷۸ الفصل الخامس فی الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة محمود الاوزجندی: رجل تزوج امرأة بغیر شهود فقال الرجل والمرأة خدائے راوپیغمبر مرا گواه کر دیم، قالوا یکون کفرا لانه اعتقد ان رسول الله ﷺ یعلم الغیب وهو ماکان یعلم الغیب حین کان فی الاحیاء فکیف بعد الموت.

(فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ۳: ۵۷۶ باب مایکون کفرا من المسلم ومالا یکون)

دي الفاظو سره ښځه مطلقه مغلظه جوړيږي اګر که داالفاظ په نه زړه اويا په زورا واکراه سره وئيلي شوي وی﴿۱﴾پس بغير د حلالې نه به ځه لاره نه وی﴿۲﴾ ماخوذ ازقاضي خان ورد المحتار وغيره)وهو الموفق

## ښځې ته مسلسل درې طلاقه دی او ..شل زره خلع ده..ددې حكم

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دي مسئلې باره کښې چه يو سړی خپلې ښځې ته ددې په غيرموجودګۍ کښې دګواهانو په مخامخ طلاق ورکړو او دائې اووئيل چه څما ښځې فلانې بنت فلانې ته مسلسل درې طلاقه دی او ورسره ئې داهم اووئيل چه په دې باندې شل زره خلع ده داالفاظ ئې درې ځله اووئيل ايا ښځه مغلظه کيدلو سره سړه دشلوزرو روپوورکولو هم ذمه داره ده يانه؟ بينوا توجروا

المستفتی: قاری غلام رسول اسلاآباد........۱۷\۱۷\۱۹۷۹ء

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې سړی باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۳﴾ او په دې ښځې باندې رقم ايخودل عوامی رسم دې اسلامی رسم نه دې﴿٤﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی:ويقع طلاق كل زوج بالغ عاقل ولو عبدا او مكرها فان طلاقه صحيح. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۵٦ كتاب الطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة الافغانی: ولو ابان الحرة بالطلقات الثلاث فليس له تزويجها حتی تنكح زوجا غيره بنكاح صحيح مع الدخول ثم تحصل الفرقة بينهما بالموت او الطلاق (من المحل المزبور). (معين القضاة والمفتيين۷۸ الفصل الخامس فی الطلاق)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدين: (قوله ثلاث متفرقة) وكذا بكلمة واحدة بالاولی...... وذهب جمهور الصحابة والتابعين ومن بعدهم من ائمة المسلمين الی انه يقع ثلاث. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۴ كتاب الطلاق)

﴿۴﴾قال العلامة محمد امين: (وكره تحريما اخذ شيئ) ای قليلا كان او كثيرا والحق ان الاخذ اذا كان النشوز منه حرام قطعا لقوله تعالیٰ فلا تأخذوا منه شيئا الا انه ان اخذ ملكه بسبب خبيث وتمامه فی الفتح. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:٦۰۹ باب الخلع)



## تاته طلاق درکوم ته په ما باندې حرامه ئې وغيره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دي مسئلې باره کښې چه دزيد او هندې جهګړه اوشوه زيد په غصه کښې اووئيل چه زه تاته طلاق درکوم ددې نه مخکښې دطلاق څه ذکر نه وو ددې سره ئې په غصه کښې اووئيل چه ته په ما باندې حرامه ئې هنده لګه نزدې شوه نوزيد بيا اووئيل وئيل هغه دی چه ته په ما باندې حرامه ئې په ذهن کښې مې داوو چه طلاق دې وئيلی دی، دې وجې نه ما باندې حرامه ئې په رڼرادشريعت کښې دطلاق يارجوع څه حکم دې؟بينوا توجروا

المستفتی: امين احسن بيت المحمود چکوال........۱۴\۸\۱۹۸۹ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې تجديد دنکاح کافی دې.لان اللفظ الاول صريح واللفظ الثانی من الكنايات يقع به البائن عندنية الطلاق والثالث لغو لان البائن لايلحق البائن﴿۱﴾وهو الموفق

## ښځې ته مې طلاق ورکړې دې آئنده د پاره ما باندې حرامه ده کښې تجديد د نکاح اوکړې

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دي مسئلې باره کښې چه يو سړی خپلې ښځې ته دا الفاظ اووئيل چه ماخپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې اوآئنده دپاره په ما باندې حرامه ده په دې سره کوم طلاق واقع شوې دې اوتجديد دنکاح ګنجائش شته؟ بينوا توجروا

المستفتی: قاضی سعيداحمدراولپنډی........۱۸\شعبان۹ ۱۴۰ھ

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی: الصريح يلحق الصريح ويلحق البائن والبائن يلحق الصريح...... لا يلحق البائن البائن اذا امكن جعله اخبارا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۰۸،۵۱۰ مطلب الصريح يلحق الصريح والبائن)

**الجواب**: صورت مسئوله کښې تجدید دنکاح پکاردې. لکون الجملة الثانیة محتملة لانشاءالطلاق وللتفریع حسب زعمه الفاسد(۱) وهوالموفق

## یو. دوه. درې. ځمانځه.. ځما د مخې خلاصه ده طلاقه ده..

## ددې حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زیددمورپلارخوابښې سخراودنوروخلقوپه مخامخ دخپلې ښځې متعلق اووئیل. چه یو، دوه، درې، ځمانځه ځمادمخې آزاده ده طلاقه ده. خوش دامن خپل دامادته اوئیل چه په هوش ئې کښې که په نشه کښې نودامادورته اووئیل چه په هوش کښې یم یو، دوه، درې. ځمانځه ځمادمخې خلاصه ده په دې صورت کښې به کوم طلاق واقع وی. دې نه پس دانځه دربو کالوراهسې مورپلارکره ده او خاوندئې څه پوښتنه نه ده کړې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلطان محمودناظم اعلی دارالعلوم حقانیه۲۹\۴\۱۴۰۱ھ

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت دانځه خاوندباندې طلاقه شوې ده اوآزاده

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ثم ظهر لی بعد مدة ما عسیٰ یصلح جوابا وهو ان لفظ حرام معناه عدم حل الوطء ودواعیه وذلک یکون بالایلاء مع بقاء العقد وهو غیر متعارف ویکون بالطلاق الرافع للعقد وهو قسمان بائن ورجعی لکن الرجعی لا یحرم الوطء فتعین البائن وکونه التحق بالصریح للعرف لا ینافی وقوع البائن به فان الصریح قدیقع به البائن کتطلیقة شدیدة ونحوه کما ان بعض الکنایات قد یقع به الرجعی مثل اعتدی واستبرئ رحمک وانت واحدة، والحاصل انه لما تعورف به الطلاق صار معناه تحریم الزوجة وتحریما لا یکون الا بالبائن هذا غایة ما ظهر لی فی هذا المقام الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۰۴ باب الکنایات قبیل مطلب لا اعتبار بالاعراب)



شوې ده اوپه بل ځائ کښې نکاح کولې شی. لوجودرکن الطلاق، اودسابقه خاوند سره تجدیددنکاح هم کولې شی(۱) وهوالموفق

## د غصې درې قسمونه او په دې کښې د طلاق حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمادتره زوئ دغصې په حالت کښې ددربونه زیات طلاقونه ښځې ته ورکړه دده دوه ماماګان او یو محلې والاپخپله ددې ګواهئ نه انکارنه کوی لیکن مولاناعبدالمستعان تسلی ورکړې ده چه دپریشانې ضرورت نشته دې لیکن ځماحیثیت کم دې زه درته لاره ښائم اوتحریردمولاناشفیع الله صاحب ته واخلئ دالاره یاحیله داده چه دغصې یوحالت داسې وی چه په هغې کښې طلاق نه واقع کیږی اګرکه شل ځله طلاق هم اووائی په ده باندې په دې دربو کښې یوماماهم ګواهی ورکړې ده چه هلک دغصې په حالت کښې وودده سره دوه ګواهان نورهم ووچه هغه په دې معامله کښې موجودنه وو، بهرحال په دې صورت حال کښې مولاناشفیع الله صاحب پرچه اولیکله چه طلاق واقع شوې نه دې،

---

(۱) ددې طلاق ورکونکی اوله جمله (زما دمخې خلاصه ده) ددې جملې مرادف ده چه زما نه آزاده ده، اودې الفاظوته په عربئ ژبه کښې سرحتك سره تعبیرکولې شی. چه په عرف د فرس (فارسی والؤ) کښې صریح دې اوپه عربئ کښې کنایه ده او زمونږ حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم زمونږ په سلیمانیه (پښتنو) علاقو کښې هم دا کنایه شمار کړې دې. لکه څنګه چه ددوی د نورو فتاوونه معلومیږی چه په عربئ او سلیمانیه ژبو کښې دا الفاظ دکنایه ځنې دی. علامه شامی فرمائی: فاذا قال رها کردم ای سرحتك یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضاً، (ردالمحتار ۲: ۵۰۳ باب الکنایات) په دې وجه دې اولې جملې سره طلاق بائن واقع کیږی اوبیا دویمه جمله (طلاقه ده) دا صریح ده. وقال فی الشامیة واذالحق الصریح البائن کان بائنا لان البینونة السابقة علیه تمنع الرجعة کما فی الخلاصة، (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۰۹ مطلب الصریح یلحق الصریح والبائن)، پس دا طلاق به بائن وی. لهٰذا بل ځائې کښې به نکاح هم جائزوی او رومبی خاوند سره تجدید د نکاح هم کولې شی. (ازمرتب)

بله داچه هلک او دجینئ شریک رشته داران نورو عالمانو ته لاړل نو هغوئ
اوفرمائیل چه په غصه کښې درې طلاقو ورکولو سره طلاق واقع کیږی چه په
دې باندې دهلک مورپلار تراوسه پورې ناراض دی بلکه دې دشمن ګڼړی ما د
مولاناصاحب سره ملاقات اوکړو هغه صفا اوفرمائیل چه ځماپرچه نه قضا ده نه
حکم دې بلکه مسئله ده ماته چه څه اوائی او استفتاء اوکړی زه دهغې جواب
ورکوم دآخرت ذمه واری په ګواهانو اوپه مدعی مدعیٰ علیه باندې ده اوس
دکلي عام خلق اونهه نوی فیصده عالمان دافرمائی چه معامله ډیره نازکه ده که
چرته هلک دغصې دې حالت ته نه وو رسیدلې نو هلک جینئ به زنا کښې مبتلا
شی او دګواهانو آخرت به هم خراب شی فرمائی چه ددې معاملې زیات تعلق
دتقوی سره دې فتوی سره نه دې فرمائی چه دسیاق او سباق نه معلومیږی چه
هلک په سوچ سره طلاق ورکړې دې ځکه چه خانګی معاملات تقریباً د دولسو
کالونه خراب دی دبې انتها احتیاط ترغیب ورکوی اووائی چه ښه خبره داده چه
هلک اودده مورپلارته ښه پوهه کړې شی چه ددین اودآخرت اودحل اوحرمت
معامله کښې شکی معامله مکوئ په دې کښې دضد څه خبره نشته دې حالانکه
پخپله مولاناشفیع الله صاحب ډیر ترغیب ورکړې دې چه مسئله په خپل ځائ ده
لیکن په دې معامله باندې کاڼړې کیږده اوداسې اوګڼړه چه جینئ کفن دفن
شوه.جینئ هم دمولانا صاحب ددې بیان سره متفقه شوه دجینئ بیان دادې،
ځما صبردې ماخپل قسمت اوکتوماته نه ددې خاوند ضرورت شته نه دبل زه د
جانبینوعزت کوم ما کفن دفن اوګڼړئ اومهرپورې هم نه غوارم،دجینئ بل
بیان دادې چه زه زهرو خوړلو ته تیاره یم لیکن تلل نه قبلوم ځماآخرت ولې
بربادوئ حالانکه ما تول په تولو الفاظ پخپله اوریدلی دی اوس سوال دادې چه
ددې مسئلې حل څه دې؟ نیزکه حلالې دپاره جینئ تیاره کړې شی نوحلاله
اوکړی یانه؟ تفصیل سره اولیکئ.نیزپه خدمت کښې غرض دادې چه دهلک
دپلارپه نوم یو نصیحت نامه ارسال کړئ چه تحقیق اوګواهې کونکی دشمنان
اونه ګڼړی محسن ئې اوګڼړی؟ بینوا توجروا

المستفتی:ا.ب.ت.بام خیل صوابی.......۱۱۳۱،۱۹۷۵



**جواب**:واضحه دې وی چه درې حالتونه دی اول داچه هوش اوحواس او ګفتار او
کردارتول باقاعده اوصحیح وی.نوپه دې حالت کښې طلاق واقع کیږی دویم
داچه دهغه نه بغیرد قصد اوشعور.ګفتاراوکردارصادروی نوپه داسې حالت
کښې طلاق نه واقع کیږی. دریم داچه دهغه اکثراقوال اوافعال دعادت خلاف
اوبې خوده غیرسنجیده وی نوپه داسې حالت کښې هم طلاق نه واقع کیږی.
**والتفصیل فی ردالمحتار ۲:۵۸۹ وبعض العبارة مانصه: فالذی ینبغی التعویل علیه
فی المدهوش ونحوه اناطة الحکم بغلبة الخلل فی اقواله وافعاله الخارجة عن عادته
وکذا یقال فیمن اختل عقله لکبر او لمرض او لمصیبة فاجأته فما دام فی حال غلبة
الخلل فی الاقوال والافعال لا تعتبر اقواله وان کان یعلمها ویریدها﴿۱﴾**
پس دمقامی اونزدې خلقونه تحقیق اوکړئ چه ددې طلاق ورکولو په وخت
یاپه سابقه وختونو کښې دده دغصې څنګه کیفیت وو او دهغې دحکم
شرعی په مخکښې سرتسلیم خم کړئی نیزواضحه دې وی که چرته یوسړې
دې ښځې ته دوقوع طلاق په صورت کښې دتحلیل دپوشیده ارادې سره
نکاح اوکړی نودابه مستحق ثواب اواجروی.کمافی الدر المختار علی هامش
ردالمحتار ۲:۵۴ اما اذا اضمرذلک لایکره وکان الرجل ماجور القصد الاصلاح
وتاویل اللعن اذاشرط الاجرذکره البزازی﴿۲﴾ پس جینئ ته دحلالې دپاره
نصیحت کولو کښې شرعی ضرورت نشته دې ددنیاوی ضررموازنه دې رشته
داراوکړی.وهوالموفق والمسهل ولاحول ولاقوة الابالله.

**د متعلقه استفتاء سره نصیحت نامه**

دې طلاق ورکولو والا اودده دپلارپه خدمت کښې سلام مسنون نه پس دې

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)
﴿۲﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸۷ باب الرجعة)

واضحه وی چه دمعمولی اوعام غصې په حالت کښې طلاق واقع کیږی پس دغصې ددې نوعیت په تقدیرباندې تاسوددویم واده انتظام اوکړئی ښځې کمې نه دی، تاسوضدمه کوئی ددین اودنیاددواړوتباهې نه بچ شئی او یا جینئ درضااورغبت سره تحلیل اوحلاله وکړئ تاته ددې مشورې ورکولو والا نیک اوخداترس سړې دې دده مشوره خپله خیرخواهی اوګڼړئی، دېته شرارت مه وایئ، که چرته هلک په غیرمعمولی غصه کښې چه دهغې تفصیل په فتوی کښې مسطور دې مبتلا شی طلاق ورکړی وی اودغصې نه پس دطلاق اعاده اونه کړی نوددې حکم آسان دې. وهوالموفق

۲۷\صفر المظفر۱۳۹۵ه......محمد فریدعفی عنه

## ما پریخې ده.. د طلاق الفاظ دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید دیوښځې سره نکاح اوکړه تقریبادیارلس کالوپورې ئې واده اونه کړو، دښځې رشته دارانو مطالبه اوکړه چه ددې سره واده اوکړه یاطلاق ورکړه پریږده، ددې په جواب کښې زیداووئیل چه داښځه ماپریخې ده ددې سره څماڅه قسم تعلق نشته او څمانه بالکل آزاده ده، دچاسره چه اوغواړی نکاح دې اوکړی څمادطرفنه اجازت دې داخبره ئې دعادل عاقل بالغ ګواهانوپه مخامخ باربارکړې ده ایا داښځه اوس دویم ځائ کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ ارشادحسین کالوخان صوابی........۱۹۷۹ء۱۸\۲۰

**الجواب:** داالفاظ خصوصا، ،ماپریخې ده، ،دطلاق الفاظ دی لهذا بشرط صدق داښځه دویم ځائی کښې نکاح کولې شی.﴿۱﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾پورتنی الفاظ بالخصوص ``ما پریخې ده، ،``زما نه آزاده ده، ، دا بعضې علماؤ د کنایاتو نه شمارکړی دی. اود دلالة الحال په وجه دې الفاظوسره طلاق بائن واقع کیږی، په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند کښې دی: لفظ پریخودل ترجمه ده د سرحتك اود فارقتك، پس څنګه چه دا لفظ د کنایاتو نه دی ددې (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## غیر مدخول بها ته د طلاق ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه زید دیونابالغې جینئ سره عقداوکړوبیاداآبادکیدلونه مخکښې دبته دنابالغې په صورت کښې په یو وخت درې طلاقه ورکړه څه وخت تیریدلونه پس داجینئ بالغه شوه زید بیاددې سره عقدنکاح کول اوغوښتل ایادې غیرمدخول بهالره بغیردحلالې دوباره عقدکښې راوستلې شې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی صاحب امام مسجد سیری ګړهی حبیب الله۱۹۷۹ء۱۵\۸

**الجواب:** که چرته زیدداالفاظ وئیلی وی چه فلانې په مابانډې په درېو طلاقو سره طلاقه ده نوپه دې صورت کښې جینئ مطلقه مغلظه کیږی بغیردحلالې لاره نشته دې اوکه چرته داالفاظ ئې وئیلی وی چه فلانې په مابانډې طلاقه ده په مابانډې طلاقه ده نوپه داسې صورت کښې کله

[بقیه حاشیه] ترجمه هم کنایه ده نیت یا دلالت حال سره به طلاق واقع کیږی اود پریخودو لفظ زمونږ په عرف کښې لکه څنګه چه دنکاح پریخودلو ته وائی دنفقې وغیره خبرنه اخستلو اود حقوق زوجیت نه اداکولو دپاره هم وئیلې کیږی (فتاوٰی دارالعلوم دیوبند ۹:۳۷۲ باب چهارم کنایات) حضرت مولانا مفتی فریدصاحب دامت برکاتهم په ګڼړو فتاووکښې دا په کنایاتوکښې شمیرکړې دې چه د پښتنو په محاوره کښې دا د عربئ په شان کنایه ده اوکه چرې دا صریح اومنلې شی نوبیا هم دا د بائن په واقع کیدلوکښې مشهوردې. چه دې الفاظوسره د بینونت اراده کوی (ملفوظات حضرت مفتی صاحب) اوعلامه شامی دې لره صریح ګرځولې دې.

**حیث قال: فاذا قال رها کردم ای سرحتک یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضا.**

**(ردالمحتار ۲:۵۰۳ الکنایات)**

پس په مذکوره صورت کښې چونکه دا طلاق قبل الدخول دې لهذا دا الفاظ به په طلاق بائن بانډې حمل کولې شی یا په صریح بانډې. په دواړو صورتونو کښې طلاق بائن واقع کیږی. والله اعلم.... (ازمرتب)

چه یکمشت درې طلاقه نه وی ورکړې شوې نوزید دې سره عقد کولې شی﴿۱﴾ وهوالموفق

## غیرمدخول بها ته د طلاق ثلاثة ورکولوحکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه مطلقه بطلاق ثلاثه هغې ته چه دواده نه مخکښې طلاق ورکړې شوې وی ددې سره به تجدید د نکاح کافی دي یاکه دحلالې هم ضرورت شته چونکه داطلاق غیرمدخول بها دې دپاره بعض علماءصرف دتجدیدنکاح خبره کوی اودحسن بصری اودعطاء قول مخکښې کوی اوآیات لره مدخول بهاسره خاص کوی حالانکه بعض عالمان آیات عام ګنړلوسره غیرمدخول بهاهم په دې کښې داخلوی دمسئلې صحیح نوعیت څه دې؟ بنیواتوجروا

المستفتی: فضل الرحمٰن کهنډربونیر....... ۱۵\جون۱۹۷۵ء

**جواب:** که چرته غیرمدخول بهاته درې طلاقه دربوالفاظوسره ورکړې شوې وی نودابه مغلظه نه وی. لعدم وقوع الثانی والثالث﴿۱﴾اوکه چرته یکمشت

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: وینکح مبانة بما دون الثلاث فی العدة وبعدها بالاجماع ومنع غیره فیها لاشتباه النسب، لاینکح مطلقة من نکاح صحیح نافذ بها ای بالثلاث لو حرة ولو قبل الدخول وما فی المشکلات باطل او مؤول کما مر.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۸۲ مطلب فی العقد علی المبانة)

وفی الهندیة: اذا طلق الرجل امرأته ثلاثا قبل الدخول بها وقعن علیها فان فرق الطلاق بانت بالاولی ولم تقع الثانیة والثالثة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۳ الفصل الرابع فی الطلاق قبل الدخول)

﴿۱﴾قال التمرتاشی: قال لزوجته غیر المدخول بها انت طالق ثلاثا وقعن وان فرق بانت بالاولیٰ ولم تقع الثانیة وکذا انت طالق ثلاثا متفرقات فواحدة.

(تنویر الابصار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۹۲ باب طلاق غیر المدخول بها)



ورکړې شوې وی نودقرآن اوحدیث اوآثارپه رڼاسره به دابنځه مطلقه مغلظه وی.وهومذهب الائمة الاربعة خلافاللطائفة السلفیة وللتحقیق مقام آخر﴿۱﴾ وهوالموفق

## د غیر مدخول بها په صورت کښې د طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دزیدسره دروبینې نابالغې نکاح اوشوه پلارئې پخپله ایجاب اوقبول اوکړولیکن واده اونه شو، په دې دوران کښې زیدروبینې ته یوطلاق ورکړوڅه وخت پس دویم بیائې دریم هم ورکړواهل علم والونه پوښتنه اوکړې شوه چه داطلاق به یوبائن وی یامغلظ؟ اهل علم اوفرمائیل چه غیرمدخوله ته په دې صورت کښې یو طلاق بائن کیږی ددې نه پس روبینې سره دوباره نکاح اوکړې شوه تحلیل وغیره اونه کړې شوایادانکاح دشریعت په رڼاکښې صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالسمیع امام مسجدپشاورروډراولپنډی. ۱۱\۱۴\۱۹۷۳ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې تجدیدنکاح کافی دې دتحلیل ضرورت نشته دې ددې علماؤ مسئله صحیح ده.

فی الدرالمختار: وان فرق بوصف او خبر اوجمل بعطف او غیره قال العلامة الشامی: او جمل نحو انت طالق انت طالق بانت بالاولی ولذا لم تقع

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: لان الواقع عند ذکر العدد مصدر موصوف بالعدد ای تطلیقا ثلاثا فتصیر الصیغة الموضوعة لانشاء الطلاق متوقفا حکمها عند ذکر العدد علیه بحر قال فی الفتح وبه اندفع قول الحسن البصری وعطاء وجابر بن زید انه یقع علیها واحدة لبینونتها بطالق ولا یؤثر العدد شیئا ونص محمد رحمه الله تعالیٰ قال واذا طلق الرجل امرأته ثلاثا جمیعا فقد خالف السنة واثم وان دخل بها اولم یدخل سواء بلغنا ذلک عن رسول الله ﷺ وعن علی وابن مسعود وابن عباس وغیرهم رضوان الله علیهم الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۹۳ باب طلاق غیر المدخول بها)

الثانية الخ. (هامش ردالمحتار ۲:۶۲۶)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د کوژدنې نه پس اود نکاح نه مخکښې طلاق ورکول کالعدم دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی دکوژدنې نه پس اودنکاح نه مخکښې خپل سخرته خط اولیکلوچه ستالورځمادطرفنه آزاده ده اوپه ماباندې طلاقه ده ایاپه دې سره طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودودچارسده........۱۹۷۵ء۳۱\۴

**جواب:** چونکه قبل النکاح طلاق ورکول کالعدم دی لهذاددوی په مینځ کښې به نکاح کول صحیح وی،

کمافی الدرالمختارعلی هامش الشامیة ۲:۶۸۱﴿۲﴾ وهوالموفق

## تحریری طلاق سره طلاق واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه ځمایونزدې رشته دار دهغه سخرډیرتنګ کړواولورئې په زوردده دکورنه بهرکړه چه په لاهورکښې مقیم دی اودې ځائ نه فاصله تقریبادوه سوه پنځوس میله ده ځوځله هغه راغلوراېوسته مګردڅه خاص وجه نه هغه خپله ښځه بونه تله په دې بنیاد باندې دده سخرد پولیس سره یوځائ شواودخپلې لورپه بوتلوکښې کامیاب شواوجینئ هم بغیرداجازت دخاوندنه دپلارسره یوځائ لاړه،ددې وجه نه هلک ته ډیره صدمه اورسیده اودرنجش اوغصې دوجه نه ئې یوطلاق نامه اولیکله دښځې په نوم باندې په ذریعه دجسټری لاهورته ئې اولیږله،(طلاق

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۹۴ قبیل مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لا به)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فلغا قوله لاجنبیة ان زرت زیدا فانت طالق فنکحها فزارت ......

لعدم الملک والاضافة الیه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۳۷ باب التعلیق)



نامه ملفوفه ده) ایاپه دې صورت کښې طلاق واقع کیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدمحمدرشیدکهاوړکلا بهکر........۱۹۷۲ء۷\۲۳

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۱﴾بغیردتحلیل نه لاره نشته دې﴿۲﴾دتحلیل کیفیت دمقامی عالمانونه معلوم کړئ. وهوالموفق

## تحریری طلاق هم واقع کیږی زبانی وئیل ضروری نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدین دې مسئلې باره کښې چه اووه میاشتې مخکښې مادخپلې ښځې په نوم طلاق نامه رجسټری کړه دواپسې په رسیدباندې ددې ګوته موجودده درې میاشتې پس(دطلاق نه)ددې پلاریعنی ځماسخر چه پخپله یوغټ عالم دې تشریف راړواووې فرمائیل چه کله پورې خاوندخپلې ښځې ته په زبان سره طلاق اونه وائی تږهغه وخته پورې طلاق نه موثرکیږی ایا دکاغذپه تحریرسره طلاق کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شاهدبک ډپوضلع رحیم یارخان........۱۹۷۲ء۸\۱۴

**الجواب:** ددې تحریری طلاق نامې په بنیادباندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده﴿۳﴾ بغیردتحلیل نه لاره نشته دې....

﴿۱﴾ وفی الهندیة: بان کتب اما بعد فانت طالق فکما کتب هذا یقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۷۸ الفصل السادس فی الطلاق بالکتابة)

﴿۲﴾ قال العلامة مرغینانی: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة او ثنتین فی الامة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها.

(الهدایة ۲:۳۹۹ باب الرجعة کتاب الطلاق)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: کتب الطلاق ان مستبینا علی نحو لوح وقع ان نوی وقیل مطلقا ولو علی نحو الماء فلا مطلقا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۶۵ قبیل باب الصریح)

صرف تجدید دنکاح ناکافی دي﴿۱﴾ د ناوقفئ دوجه نه دجماع کولو کفاره توبه او استغفار دي صدقه ورکول مستحب دی. وهو الموفق

## په خپله لیکلو یا په بل چا لیکلو سره طلاق واقع کیږی خواه که ښځه ئې اولولی یا نه

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښي چه تقریباشپږمیاشتي مخکښي ځماواده دمرادخان سره اوشوبیائي زه دخپلي مورسره پریخودم، دوه ورځي پس په ورځ دجمعي ماله راغلو او ځماپه مخامخ ئې یو کاغذ باندي مندرجه ذیل عبارت اولیکلو او زه ئې مجبوره کړم چه دا ځماپه مخامخ دري ځل اووائی ماهغه پړهاؤکړونو عبارت داسي وو: مامسمی مرادخان خپلي ښځي نسیم بی بی دختر فلاني ته طلاق ورکړو په دویم او دریم سطر کښي ئې هم دغه الفاظ لیکلی وو او په آخر کښي دهغه دستخط وو. اوس سوال دادي چه طلاق اوشو یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نسیم بی بی اسلام آباد......۱۹۸۴ء۱۹/۸/۱

**الجواب**: چونکه په خپله لیکلو یا په بل لیکلو سره هم طلاق واقع کیږی لهذا که چرته ستا خاوند دا الفاظ لیکلي وی نو په تا باندي طلاق شوي دي خواه که ته مجبوره وې یا غیرمجبوره او خواه که تا دا کاغذ لوستي وی یا نه وی لوستي هندیه﴿۲﴾. وهو الموفق

## ساده کاغذ باندي طلاق نامې لیکل او ورکولو سره هم طلاق واقع کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښي چه یو سړی خپله لور د یو

﴿۱﴾ وفی الهندیة: لا یحل للرجل ان تتزوج حرة طلقها ثلاثا قبل اصابة الزوج الثانی. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۸۲ القسم التاسع المحرمات بالطلاق)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان کانت (الکتابة) مرسومة یقع الطلاق نوی اولم ینو ثم المرسومة لا تخلو اما ان ارسل الطلاق بان کتب اما بعد فانت طالق فکما کتب هذا یقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۸ الفصل السادس فی الطلاق بالکتابة)



څو روپو په عوض باندي یو ظالم سړی ته په نکاح باندي ورکړه لیکن د جینئ مرضی نه وه. راضی نامه په دي باندي اوشوه چه خاوند اووئیل که چرته ما جینئ ته څه تکلیف اورسولو نو دا په ما باندي دریو شرطونو سره طلاقه ده. لیکن هلک جینئ سره واده کولو سره پردیس کښي په دي باندي ظلم شروع کړو آخر دي خاوند یو ساده کاغذ باندي طلاق لیکلو لو سره ښځي ته ورکړو او په دي کاغذ کښي دګواهانو نومونه نشته دي په دي حالت کښي یو بل سړی په دوه زره روپئی باندي واخسته. اوس دا ښځه نه دمور پلار سره تلل غواړي او نه د سابقه خاوند سره بلکه د ددي اخستلو والا سره دنکاح خواهش لری او سابقه خاوند تقریبا شپږو میاشتو نه ددي دراوستلو کوشش اونه کړو آیا په دي صورت کښي دا ښځه ددویم خاوند سره نکاح کولي شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حسین جاوید بیروټ راولپنډی......۱۴۰۱/۷/۲۰ھ

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت مضمون هذا دا جینئ په اولنی خاوند باندي مطلقه شوي ده او په دویم ځائ کښي باقاعده نکاح کولي شی. کمافی الهندیه ۲: ۳۶۵ اذا اضافه الی الشرط وقع عقیب الشرط﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ویرولو د پاره دهمکئ ورکولو د پاره د طلاق نامې دروغ خبرو کولو وغیره حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین دي مسئلي باره کښي چه ځما د عزیز څه ذاتی وجوهاتو په بنیاد باندي دخپلي ښځي سره ناچاری اوشوه د ښځي څه قصور نه وو. لیکن عزیزمونږ سره دصلح خبرو کولو په دوران کښي څو ځله اووئیل چه زه فلاني نه ساتم ماهغې ته طلاق ورکړي دي او ما طلاق نامه اولیکله او ددې د مورپلار کورته مې او غورزوله او زه راغلم. وغیره وغیره. حالانکه د طلاق نامې لیکلو او غورزولو څه ثبوت ملاؤنشو. بالاخر په مفاهمت کښي زه کامیاب شوم اوس هغه خاشحالئی سره اوسیږی اوس په حیثیت دمسلمان ځما په زړه

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان واذا)

کښې داخبره راځی چه خدانخواسته دعزیزانو طلاق خوبه واقع شوي نه وي؟
بینوا توجروا

المستفتی: تاج محمد سواتی ایبټ آباد........۷/۱۰/۱۹۸۹ء

**جواب:** که چرته دې خاوند دوېرولو دهمکئ وغیره په خاطر کذب بیانی کړې وی نودا ښځه مطلقه شوې نه ده﴿۱﴾ اوکه چرته دا حقیقت وی چه هغه تحریری طلاق نامه مرتب کړې وی نو په ده باندې ښځه مطابق دتحریر مطلقه شوې ده﴿۲﴾او معامله الله تعالی سره ده. وهوالموفق

## ښځې ته د طلاق ورکولو په صورت کښې د دربو نوټسو د لیکلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی په دې طریقې سره طلاق ورکړو نوټس نامه داده جناب ډپټی کمشنرصاحب راولپنډی چه ما فلانی خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې ځکه ددې دوینامطابق بیماریم او ددې دسنمبهالولونه قاصره یم دویم نوټس طلاق ماخپلې ښځې ته طلاق ورکړې دی چه کوم اولنې نوټس مې درکړې دې دریم نوټس: دوه نوټسه مې اول درکړی دی اودریم داچه کاروائی مکمل شی دربواړه نوټسونه په یو وخت تقریباشپږمیاشتې پس مانه موصول شول یونین کونسل کښې ددې څه ریکارډ نشته. دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمودالحسن آستانه قاضی صاحب راولپنډی...۱۴۰۱/۷/۵ء

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: نقل عن البزازية والقنية لو اراد به الخبر عن الماضی کذبا لا يقع ديانة وان اشهد قبل ذلک لايقع قضاء ايضا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۹ قبيل مطلب فی تعريف السکران وحکمه)

﴿۲﴾ قال القاضی خان: ان ارسل الطلاق بان کتب اما بعد فانت طالق فلما کتب هذا وقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة.

(فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندية ۱: ۴۷۱ فصل فی الطلاق بالکتابة)



**الجواب:** ښځې ته نسبت کولو سره طلاق واقع کیږی خواه خطاب دیته وی یا اجنبی ته﴿۱﴾ او په ظاهره دې نوټس نه دامعلومه شوه چه دا ښځه صرف یو طلاق سره مطلقه شوې ده په دې بنیادباندې عدت تیرولونه پس دویم ځائی کښې نکاح کولې شی اود سابقه خاوند سره هم نکاح کولې شی دحلالې ضرورت نشته دې ځکه چه دویم اودریم نوټس کښې دسابقه طلاق یادهانی شوې ده تاسیس او انشاء دطلاق نه خالی دی﴿۲﴾ وهوالموفق

## طلاق درې ځله اولیکی او نیت د یو طلاق وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی په هوش اوپه حواس کښې اولیکل چه زه خپلې ښځې فلانې ته طلاق ورکوم طلاق ورکوم طلاق ورکوم دتحریر بالا لیکلونه پس ئې اووئیل چه په دې سره ځمانیت دیو طلاق ووباقی دوه مې صرف دوېرولواو دهمکئ ورکولو دپاره لیکلی ووچه دا د غلطو حرکاتونه منع شی په داسې صورت کښې به کوم طلاق واقع وی؟
بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټرعبدالرشیدخان اټک.......۲۲/۱۲/۱۹۸۷ء

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله او لم ينو شيئا) لما مر ان الصريح لا يحتاج الی النية ولکن لا بد فی وقوعه قضاء وديانة من قصد اضافة لفظ الطلاق اليها عالما بمعناه ولم يصرفه الی ما يحتمله کما افاده فی الفتح وحققه فی النهر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۷ مطلب فی قول البحر ان الصريح يحتاج فی وقوعه)

﴿۲﴾ وفی الهندية: ولو قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها او قال قلت هی طالق فهی واحدة فی القضاء کذا فی البدائع.

(فتاویٰ عالمگيرية ۱: ۳۵۵ مطلب اذا کرر الطلاق علی المرأة المدخول بها ونوی الاخبار)

**الجواب:** طلاق ليکلو يا په بل چا د ليکلو سره هم واقع کيږي،شامی﴿۱﴾ هندية،﴿۲﴾ البته کله چه څوځله دطلاق الفاظ اووائی يا اوليکی اونيت صرف ديو وی نوصرف يوطلاق به واقع وی. کمافی شرح التنوير علی هامش ردالمحتار ۲:۶۳۲ کررلفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکيددين.وفی ردالمحتاروکـذااذا اطلق﴿۳﴾ په يوطلاقې رجعی کښې زبانی مراجعت کافی دې﴿۴﴾ وهوالموفق

## د يوطلاق بائن د ليکلوني اووئيل ليکلو والادرې اوليکل نودا صحيح نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه ماستامپ نويس ته اووئيل چه څمادښځې په نوم يوطلاق بائن اوليکه.ځکه چه زمونږ په مينځ کښې اختلاف وواوزه شناختی کارډاخستلوله تللې وم هغه ددووګاهانوپه مخامخ درې طلاقه اوليکل کله چه زه واپس راغلم هغه اووئيل چه په دې باندې دستخط اوکړه ماواوکړوځماخيال ووچه داخويوليکلې شوې دې اوس زه اوځمابښځه راضی يونوايامونږدوباره نکاح کولې شوو؟بينوا توجروا

المستفتی: محمداسلم فيصل آباد.......۱۲۷جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: قال فی الهندية الکتابة علی نوعين...... بان کتب اما بعد فانت طالق فکما کتب هذا يقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۵ مطلب فی الطلاق بالکتابة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگيرية ۱:۳۷۸ الفصل السادس فی الطلاق بالکتابة)

﴿۳﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۹۹ قبيل فروع باب طلاق غير المدخول بها)

﴿۴﴾ وفی الهندية: فاذا راجعها بالقول نحو ان يقول لها راجعتک او راجعت امرأتی ولم يشهد علی ذلک او اشهد ولم يعلمها بذلک الخ.

(فتاویٰ عالمگيرية ۱:۴۶۸ الباب السادس فی الرجعة وفيما تحل به المطلقة)



**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په تاباندې ښځه مطلقه مغلظه شوې نه ده. کما فی الهندية ۳:۶۶۹ رجل قال لغيره طلق امرأتی فطلقها الوکيل ثلاثا فان کان الزوج نوی الثلث يقع الثلاث والا لم يقع شيئ فی قول ابی حنيفة وفی قول صاحبيه تقع واحدة﴿۱﴾. وهوالموفق

## بغير د زور او اکراه نه يوطلاق ليکلو سره طلاقې رجعی واقع کيږی

**سوال:** څه فرمائی علماءدين دې مسئلې باره کښې چه يوکس اغواشوې وو هغه داذيتونود وجه نه داسې قسمه خط ليکلې وو.ماسره انتهائی ظلم کيږی داسې ښکاری چه زه دڅو ورځومهمان پاتې شوې يم کيدې شی دې نه پس زه الله تعالی ته خوښ کړې شم څمادطرفنه څمابښځې ته طلاق دې ددې وجه نه چه زه دڅوورځومهمان پاتې شوې يم هغه دې سره واده اوکړو.....زه خود غلطئ سره راغلم څمانه غلطی اوشوه مادپلارصاحب نه معافی اوغوښتله کيدې شی هغه معافی نه وی کړې الخ.ددې بالاالفاظونه دطلاق څه حکم دې؟ بنيواتوجروا

المستفتی: محمودصرافه بازارراولپنډی.....۱۳\۱جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که چرته دامکتوب ددې د خاوندوی اودې خاونددیته بغير د زور او اِکراه نه ليکلې وی نوپه ده باندې دابښځه يوطلاقې رجعی سره طلاقه شوې ده﴿۲﴾ دعدت تيريدلونه مخکښې زبانی رجوع کافی ده البته عدت تيريدلونه

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگيرية ۳:۶۱۱ الفصل الثانی فی الوکالة بالطلاق والخلع باب الوکالة)

﴿۲﴾وفی الهندية: وان کانت مرسومة يقع الطلاق نوی او لم ينو ثم المرسومة لا تخلو اما ان ارسل الطلاق بان کتب اما بعد فانت طالق فلما کتب هذا يقع الطلاق وتلزمها العدة من وقت الکتابة...... وبعد صفحة...... رجل اکره بالضرب والحبس علی ان يکتب طلاق امرأته فلانة بنت فلان بن فلان فکتب امرأته فلانة بنت فلان بن فلان طالق لا تطلق امرأته کذا فی فتاویٰ قاضی خان. (فتاویٰ عالمگيرية ۱:۳۷۸،۳۷۹ الفصل السادس فی الطلاق بالکتابة)

پس تجدید دنکاح کافی دي(۱). وهو الموفق

**کله چه طلاق نامه باندې دستخط موجود وی نو طلاق به واقع وی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې په مستئی کښې راغلو او دیوې جینئی سره ئې نکاح اوکړه د جینئ والاخلق ډیرې بدنامې او بدکارې کښې مشهور دی او بالخصوص دا جینئ ډیره عیاشه ده او کوم سړی چه نکاح کړې ده دده تقریبا یو درځن بچی دی چه هغه ډیر په مشکله سره ساتی دده اولنئی ښځه ډیره شریفه او دشریفې کورنئی سره تعلق لری چه په هغې کښې کوم قسم نقص یا قصور نشته دې لیکن دې جینئ والا خلقو په څه طریقې سره په دې سړی باندې جال واچولو او ګیرئې کړو کله چه اولنې ښځې ته پته اولګیده نو دې دخپل خاوند نه پوښتنه اوکړه چه څه معامله ده او ډیر ملامته ئې کړو کله چه ددې سړی سوچ او سمجهـ برابر شو چه ما ډیره غټه غلطی کړې ده نو ده طلاق نامه اولیکله او جینئ ته ئې ارسال کړه. روستو د جینئ والاخلق ده ته راغلل او معلومه ئې. کړه چه تا طلاق ولې ورکړې دې نو دا سړې د طلاق نه منکر شو او دوی ته ئې اووئیل چه دا طلاق نامه نه ده بلکه یو کاغذ دې چه دا مې سابقه ښځې ته ددهوکې دپاره لیکلې دې طلاق نامه کښې ئې دا لیکلې وو چه زه دا طلاق نامه په هوش او حواس سره لیکم دا ښځه په ما باندې حرامه ده او دې ته ما طلاق ورکړې دې او په آخر کښې ئې په دې باندې خپل دستخط هم کړې دې آیا دا طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالقیوم پشاور صدر...... ۱۹۷۲ء/۱۲/۲۱

**جواب:** په دې سړی باندې ښځه مطلقه شوې ده. فی ردالمحتار: وان کانت مرسومة یقع الطلاق نوی اولم ینو (۲:۵۸۹)(۲) وهو الموفق

---

(۱) قال العلامة اکمل الدین البابرتی: فما دامت العدة باقیة کانت ولایة الرجعة باقیة واذا انقضت من غیر رجعة بانت. (العنایة علی هامش فتح القدیر ۳:۳۵۲ باب ایقاع الطلاق)

(۲) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۴۶۵ مطلب فی الطلاق بالکتابة)



**خاوند په خپله دوه طلاقه ورکړی دی مجسټریټ درې لیکلی دی ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید د حاکم وخت مجسټریټ په مخکښې ښځې ته دوه طلاقه ورکولو سره خاموشی اختیار کړه. حاکم وخت د طلاق نامې په تحریر کښې درې طلاقه ورکول اولیکل او وې لوستل، دزید بیان دادې چه ما دغم او پریشانئ په تخیل کښې درې طلاقه ورکول اوریدلو کښې ته راغلل دې نه پس د حاکم دوئیلو مطابق تحریر شوې طلاق نامې باندې دستخط اوکړو او س په دې صورت کښې درې طلاقه واقع شوې دی یا دزید دوینا مطابق دوه طلاقه شوی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......

**الجواب:** که چرته دا وئیل صحیح وی او هغه یقین قلبی سره دا منی چه ما دریو طلاقو لفظ نه دې اوریدلې او نه ددې تصدیق کوی. او دطلاق ورکولو تصدیق په حکم حاکم کوی نو په داسې حالت کښې دوه طلاقه کیږی. ددریم الزام صحیح نه دې البته حاکم دظاهر مطابق چه درې اوریدلې شوی دی او دستخط اخستلې شوې دی دریو واقع کیدلو فیصله به کوی. لیکن دیانة فیمابینه وبین الله بس دوه طلاقه واقع شوی دی او وجه داده چه اورؤلو دپاره اوریدل لازم کړې شوی نه دی چه مخاطب په څه غم او فکر کښې مبتلا وی او بعض الفاظو طرفته توجه نه وی ذهن کښې رانشی ددې ډیر قرائن دی(۱) څه خلق جهری قرات امام پسې آوری لیکن دهیان ئې نه وی چه امام څه څه اووئیل. حافظ په تراویح کښې دقرآن تلاوت کوی سامع ډیر الفاظ نه اوری بالخصوص کله چه توجه کښې فرق راشی(۲) علماء معانی تاکید لفظی د جاءنی زید زید په فوائدو کښې لیکلی دی چه زید ته مکرر وئیلې شی چه کیدې شی اول لفظ مخاطب نه وی اریدلې دده توجه دې طرفته نه وی بیا مکرر کوی چه متنبه شی واوری. قالوا فائده التاکید دفع غفلة سماع السامع

## په ما خور مورئې په ما طلاقه ئې او ورزه.. حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې خپلې ښځې ته اووائی،، ته په ما خور مور ئې ته ما طلاقه ئې او ورزه،، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: بوساطت مولانا عبدالحلیم دیروی مدرس حقانیه ۱۴۰۱/۵/۱۸ھ

**الجواب:** ښځې ته خور، مور او ترور بلاتشبیه وئیل مکروه دی مگر د موجب طلاق نه دی، لما فی شرح التنویر: والاینوشینا او حذف الکاف لغا، هامش ردالمحتار ۲: ۷۹۴ ﴿۱﴾ او،، ته په ما طلاقه ئې،، موجب د طلاق رجعی دې ﴿۲﴾ او،، ورزه،، د کنایاتو نه دې چه دهغې دارمدار په نیت باندې دې، کما فی ردالمحتار ۲: ۶۳۶ قوله قضاء قید به لانه لایقع دیانة بدون النیة ولو وجدت دلالة الحال ﴿۳﴾ پس بهر حال دا ښځه مغلظه نه ده، رجوع یا تجدید سره که چرته نیت د طلاق وی نو څه لاره راوتلې شی. وهوالموفق

## ما پریخودلې. پریخودلې. پریخودلې.ئې وغیره الفاظو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی په غصه کښې راتللو سره خپلې ښځې ته ئې په یو ساکښې پریمیښې پریمیښې پریمیښې څو ځلې اووئیل بیا د کورنه په وتلو سره هم په هغه حالت کښې اووئیل چه پریښودلو سره راغلې یم د کاندار د هغه نه پوښتنه اوکړه چه څه پریښودلو سره راغلې ئې. هغه اووئیل چه ښځې نه مې طلاق ورکړو او کاغذ باندې مې هم ورته لیکلی دی د تحقیق نه پس معلومه شوه.چه کاغذ ئې نه وو

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۲۲ قبیل باب الکفارة باب الظهار)
﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: الصریح هو کانت طالق ومطلقة وطلقتک فهذا یقع به الطلاق الرجعی ولا یقع به الا واحدة وان نوی الاکثر. (هدایة ۲: ۳۶۰ باب ایقاع الطلاق)
﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۰۲ باب الکنایات)



ورکړې او په یو تقریب کښې ئې درې ځلورو سړو ورانډې هم اووئیل چه پریښودلو سره راغلې یم طلاق ورکولو سره راغلې یم دې سره طلاق واقع شو یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ حبیب الهی جهلم...۱۹۷۹ء/۷/۲۵

**الجواب:** ښکاره دې وی چه لفظ پریښودل د بعضې علماؤ په نزد طلاق صریح دې او په ظاهره دا د کنایاتو نه دې. دا لفظ په طلاق او غیر طلاق دواړو کښې استعمالیږی. کما لایخفی علی من راجع الی المحاورات ﴿۱﴾ او بهرحال په دې سره طلاق بائن واقع کیږی. اما علی الثانی فظاهرو اما علی الاول فلانه

﴿۱﴾ په فتاوی عالمگیری کښې دی:
والاصل الذی علیه الفتوی فی زماننا هذا فی الطلاق بالفارسیة انه اذا کان فیها لفظ لا یستعمل الا فی الطلاق فذلک اللفظ صریح یقع به الطلاق من غیر نیة اذا اضیف الی المرأة وماکان بالفارسیة من الالفاظ ما یستعمل فی الطلاق وفی غیره فهو من کنایات الفارسیة فیکون حکمه حکم کنایات العربیة فی جمیع الاحکام کذا فی البدائع. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۹ الفصل السابع فی الطلاق بالالفاظ الفارسیة)
اوددې نه پس ئې ددې دوه مثالونه ذکر کړی دی:
اذا قال الرجل لامرأته بهشتم ترا اززنی (ترکتک من الزوجیة) فاعلم بان هذه اللفظة استعملها اهل خراسان واهل عراق فی الطلاق وانها صریحة عند ابی یوسف رحمه الله تعالیٰ حتی کان الواقع به رجعیا ویقع بدون النیة...... واذا قال بهشتم ترا ولم یقل اززنی (ترکتک ولم یقل من الزوجیة) فان کان فی حالة غضب ومذاکرة الطلاق فواحدة یملک الرجعة وان نوی بائنا او ثلاثا فهو کما نوی (محوله بالا) وقال العلامة ابن عابدین: فان سرحتک کنایة لکنه فی عرف الفرس غلب استعماله فی الصریح فاذا قال رها کردم ای سرحتک یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضا وما ذاک الا لانه غلب فی عرف الفرس استعماله فی الطلاق.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۰۳ باب الکنایات)
وقد رأیت علی نسخة الشامیة لشیخی بقلم ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

تعورف به البائن مثل لفظ الحرام فليراجع الى كنايات ردالمحتار﴿۱﴾ نیز ښکاره دي وی چه تکرار سره کله مقصود تاکید او اصرار وی او کله تاسیس او تعود وی او کله نیت نامعلوم وی﴿۲﴾ پس اول او ثالث کښې صرف يو طلاق واقع کیږی او ثانی کښې کله متعدد واقع کیږی ای اذا كان صريحاً او کله يو

(بقیه حاشیه)سیدی وشیخی ومولائی المحدث الكبير والفقيه النبيل المفتى الاعظم مولانا مفتی محمد فرید دامت برکاتهم العالية حيث قال: اعلم ان قول السليمانيين "پرے مے خوده" ای ترکتها (چھوڑدیا) ومثله كناية فى العربية كذا فى السليمانية لانه يستعمل شائعا فى غير الطالق ويراد به الطلاق عند القرائن الخارجية فالظاهر انه كناية فى السليمانة ايضا فاذا كرره فيقع به الواحدة لان البائن لا يلحق البائن ولو سلم انه صريح فالمتعارف به وقوع البائن لانهم يقصدون ذلك فافهم.

(هذا من افادات شيخنا المعظم مدظله العالی) ......(ازمرتب)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله على الحرام فيقع بلا نية للعرف) اى فيكون صريحا لاكناية بدليل عدم اشتراط النية وان كان الواقع فى لفظ الحرام البائن لان الصريح قد يقع به البائن كما مر لكن فى وقوع البائن به بحث سنذكره فى باب الكنايات...... كما افتى المتأخرون فى انت على حرام بانه طلاق بائن للعرف بلا نية مع ان المنصوص عليه عند المتقدمين توقفه على النية الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۹ مطلب قولهم على الطلاق على الحرام)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: كرر لفظ الطلاق وقع الكل وان نوى التاكيد دين، قال ابن عابدين: اى ووقع الكل قضاء وكذا اذا طلق اشباه اى بان لم ينو استينافا ولا تاكيدا لان الاصل عدم التاكيد.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۹۹ فروع قبيل باب الكنايات)



واقع کیږی. ای اذا كان بائناً لان البائن لايلحق البائن كما صرحوا به﴿۱﴾ پس ددې قواعدو په بنا باندې دې سړی باندې تجدید دنکاح ضروری دی د تحلیل ضرورت نشته دی. هذا ما عندى ولعل عندى غيراحسن منه، وهوالموفق

**"ځما د کټ نه لرې شه په خپل کټ کښې اوده شه.. وغیره الفاظو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه يو سړی دغصې په حالت کښې ښځې ته اووئیل چه ځما د کټ نه لرې شه خپل کټ کښې اوده شه.، یائې صرف دااووئیل چه ځما نه لرې شه او جدا شه. یا د غصې په حالت کښې ئې اووئیل چه الله تعالى دې مالره ستاسو نه خلاصې راکړی. دا ټول الفاظ دڅه ناراضګئ په وجه باندې خاوند خپلې ښځې ته اووائی او یقینی طور باندې د طلاق نیت بالکل نه ووا و نه مذاکره د طلاق موجوده وه، په دې الفاظو کښې د طلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ هیبت خان حقانی...۱۹۷۵ء۱۴۱۲۳

**الجواب:** صورت مسئوله کښې د عدم نیت د وجه نه هیڅ قسمه طلاق نه دې واقع شوې، كما فى الدرالمختار: لاتطلق بها قضاء الا بنية او دلالة الحال، وفى ردالمحتار ۲: ۶۳۶ قوله قضاء: قيد به لانه لايقع ديانة بدون النية ولو وجدت دلالة الحال﴿۲﴾ وهوالموفق

**ما ته پرینبودلې ئې...... طلاق نامه یوسه... وغیره حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه يو سړی خپلې ناراضه شوې ښځې ته پیغام واستولو چه ما ته پرینبودلې ئې خپل پلار راوستې وې دپاره ددې چه ستا دپاره طلاق نامه یوسی. دا الفاظ ئې په څوکرته اووئیل څه موده پس صلح اوشوه او خپله ښځه ئې کور ته راوستله او په خوشحالئ

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۵۱۰ باب الكنايات)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۰۲ باب الكنايات)

ږره اوسیدل، ایا په دې الفاظو سره د دواړو په مینځ کښې طلاق نه دې واقع شوې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری ضیاء الرحمٰن بړهنه مانسهره....۱۸رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب**: چونکه دا الفاظ غالباً د طلاق دپاره استعمالیږی لهذا دا سړې دې زبانی مراجعت باندې اکتفانه کوی، تجدید دنکاح دې اوکړی، ونظیره لفظ الحرام والتفصیل فی ردالمحتار ۳: ۳۰۰ باب الکنایات﴿۱﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: وقد مر ان الصریح ما لم یستعمل الا فی الطلاق من ای لغة کانت لکن لما غلب استعمال حلال الله فی البائن عند العرب والفرس وقع به البائن ولولا ذلک لوقع به الرجعی، والحاصل ان المتأخرین خالفوا المتقدمین فی وقوع البائن بالحرام بلا نیة حتی لا یصدق اذا قال لم انو لاجل العرف الحادث فی زمان المتأخرین فیتوقف الآن وقوع البائن به علی وجود العرف کما فی زمانهم واما اذا تعورف استعماله فی مجرد الطلاق لا بقید کونه بائنا یتعین وقوع الرجعی به کما فی فارسیة سرحتک ومثله من وقوع الرجعی بقوله سن بوش او بوش اول فی لغة الترک مع ان معناه العربی انت خلیة وهو کنایة لکنه غلب فی لغة الترک استعماله فی الطلاق...... ثم ظهر لی بعد مدة ما عسی یصلح جوابا وهو ان لفظ حرام معناه عدم حل الوطء ودواعیه وذلک یکون بالایلاء مع بقاء العقد وهو غیر متعارف ویکون بالطلاق الرافع للعقد وهو قسمان بائن ورجعی لکن الرجعی لا یحرم الوطء فتعین البائن وکونه التحق بالصریح للعرف لا ینافی وقوع البائن به فان الصریح قد یقع به البائن کتطلیقة شدیدة ونحوه کما ان بعض الکنایات قد یقع به الرجعی مثل اعتدی واستبرئ رحمک وانت واحدة والحاصل انه لما تعورف به الطلاق صار معناه تحریم الزوجة وتحریمها لا یکون الا بالبائن.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۰۴ قبیل مطلب لااعتبار بالاعراب هنا)



## .. ما خپلې ښځې لره پرېښودلې ده.. ددې درې خطونه مختلفو خلقو ته د لیکلو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بنده د کورنۍ چارو په وجه ښځې ته د طلاق په ارادې سره یوخط یونین کونسل ته لیکلې وو چه ما خپله ښځه پرېښودلې ده ددې نه پس دویم خط ئې خپل ورور او دریم خط ئې خپل پلار ته لیکلې ووچه ما خپله ښځه پرېښودلې ده هغه د کور نه اوباسئ. پلار صاحب ته چه کله خط ملاؤ شو نو فوراً ماته راغلو او وې وئیل چه تاسو داسې مه کوئ او طلاق نامه مه لیکئ، بالآخر د پلار صاحب په وینا سره ما دوباره رجوع اوکړه چه کوم خط ما یونین کونسل ته لیکلې وو په هغې کښې مې د طلاق شرطونه نه وولیکلی، بعضې علماؤ نه مې چه دلته ددې مسئلې پوښتنه اوکړه نووائی چه تاسو درې خطونه چه یونین کونسل پلار او ورور ته لیکلی دی نو دا درې د طلاق شرطونه جوړیږی تاسو صاحبان جواب راکړئ چه په دې مسئله کښې درې طلاقه دی یا زه رجوع وغیره کولې شم؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالله میاں والی....۱۹۷۹ء۱۲۱۴۱

**الجواب**: که چرته تاسو په خطونو کښې دا جمله لیکلی وی چه ما ښځه پرېښودلې ده نو تاسو هغه ښځې ته دوباره رجوع کولې شئ﴿۱﴾ اګرچه داسې

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: فان سرحتک کنایة لکنه فی عرف الفرس غلب استعماله فی الصریح فاذا قال رها کردم ای سرحتک یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۰۳ باب الکنایات)

وفی الهندیة: والاصل الذی علیه الفتوی فی زماننا هذا فی الطلاق بالفارسیة انه اذا کان فیها لفظ لا یستعمل الا فی الطلاق فذلک اللفظ صریح یقع به الطلاق من غیر نیة اذا اضیف الی المرأة,

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۹ الفصل السابع فی الالفاظ الفارسیة)

خط تاسو درې یا د دریو نه زیاتو اشخاصو ته لیکلې وی﴿۱﴾ او که چرته تاسو دا جمله لیکلی وی چه ما درې طلاقه ورکړی دی یا په دریو شرطو سره طلاق دې نو تاسو د تحلیل نه بغیر هغې لره ښځه نه شئ جوړولې﴿۲﴾ ستاسو د لیکلې شوی خط نه دا معلومیږی چه تاسو عدد نه دې لیکلې لهذا تاسو رجوع کولې شئ. وهوالموفق

**ښځه ئې نه جوړوم، ته ماته نه ئې پکار، ښځه ځما نه آزاده ده.. الفاظو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د زید ښځه هنده د دریو کالو راسې جدا ده د څه د وجه نه هغه بوتلل نه غواړی او په دومره مده کښې ئې د خرچې دپاره یو کاثیره هم نه ده ورکړې او د جماعت کثیر په وړاندې ئې داسې قسم الفاظ وئیلی دی: یو ځل ئې اووئیل چه که چرته راغلې نو ناسته به ئې مګر ښځه به دې نه جوړوم که چرته رانه غله نو ماته نه ده پکار دویم ځل ئې اووئیل چه ځما ښځه ځما نه آزاده ده او زه د هغې نه آزاد یم په دې الفاظو سره په هنده باندې طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم..........................

**الجواب:** ښکاره دې وی چه زه به ئې ښځه نه جوړوم وعید دې (زورنه ده) انشاء د طلاق نه دې او ته ماته نه ئې پکار داهم د طلاق الفاظ نه دی، هندیه ۱: ۴۰۰

﴿۱﴾وفی الهندية: فی المنتقی لو كتب كتابا فی قرطاس وكان فيه اذا اتاک كتابی هذا فانت طالق ثم نسخه فی كتاب آخر او امر غيره ان يكتب نسخة ولم يملل هو فاتاها الكتابان طلقت تطليقتين فی القضاء اذا اقر انهما كتاباه اوقامت به بينة واما فيما بينه وبين الله تعالیٰ فيقع عليها تطليقة واحدة...... لانهما نسخه واحدة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۹ الفصل السادس فی الطلاق بالكتابة)

﴿۲﴾ وفی الهندية: وان كان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها كذا فی الهداية.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۳ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)



ولوقال لاحاجة لی فيک ينوی الطلاق فليس بطلاق﴿۱﴾ او دا الفاظ چه ماته آزاده ئې اګر چه بظاهر صریح دی لان الصريح مالم يستعمل الا فيه ای غالبا ولو بالفارسية كما فی ردالمحتار ۲: ۵۹۰﴿۲﴾ لیکن دا الفاظ چه زه د هغې نه آزاد یم تقاضا کوی چه د آزادئ نه یو داسې تعلق مراد دې چه د زوجینو په مینځ کښې مشترک وی مثلاً حقوق نکاح، پس دا لفظ به هم په هغه تقدیرباندې د کنایاتو نه وی چه په هغې کښې بغیر د نیت نه طلاق نه واقع کیږی، کما صرح به فی ردالمحتار ۲: ۶۳۶﴿۳﴾ وهوالموفق

**د خاوند ښځې لره د کور نه د ویستلو او د مختلفو الفاظو وئیلو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د مسائلو ذیل په باره کښې چه (۱) یو سړی خپلې ښځې لره د لاس نه نیولو سره د کورنه اوویستله ښځه وائی چه ماته ئې طلاق راکړې دې سړې وائی چه نه ما طلاق ورکړې دې او نه مې په زړه کښې د هغې نیت کړې دې بلکه محض زورنه مقصود وه. (۲) سړې وائی چه نه ما د کور نه ویستلې ده نه مې د طلاق لفظ وئیلې دې بلکه صرف دامې وئیلی دی چه د ښځې په شان ګزاره کوه(۳) په ژبې سره ئې صرف دا وئیلی وی چه اوزه. (۴) ښځه وائی چه زه په ګواهانو سره ثابت کولې شم چه زه ئې د کور نه ویستلې یم لیکن سړې انکار کوی. (۵) ښځه وائی چه زه په ګواهانو سره ثابت کولې

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الكنايات)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۶۵ باب الصريح)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: انت حرة اختاری امرک بيدک سرحتک فارقتک لا يحتمل السب والرد ففی حالة الرضا ای غير الغضب والمذاكرة تتوقف الاقسام الثلاثة تاثيرا علی نية للاحتمال، قال العلامة ابن عابدين: لما ذكرنا من ان كل واحد من الالفاظ يحتمل الطلاق وغيره والحال لا تدل علی احدهما فيسئل عن نيته ويصدق فی ذلک قضاء بدائع.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۰۴ مطلب لا اعتبار بالاعراب هنا)

شم چه د کور نه ویستلې هم یم او ورسره ئې دا هم وئیلی دی چه زه تا نه غوارم لیکن سړې انکار کوی مندرجه بالا صورتونو کښې کوم یو طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ظاهر بنون

**جواب:** (۱) د ښځې د کور نه ویستل طلاق نه دې لعدم الرکن (ماخوذ از شامی) ﴿۱﴾ (۲)، د ښځو په شان ګزاره کوه، نه صریح دې او نه کنایه بلکه نصیحت دې (ماخوذ از شامی) ﴿۲﴾ (۳)، اوزه، کنایه دې په دې سره د نیت نه بغیر طلاق نه واقع کیږی (شامی) ﴿۳﴾ (۴) نه ویستل طلاق دې او نه، اوزه، بغیر د نیت نه طلاق دې (شامی) ﴿۴﴾ (۵) زه تا نه غوارم، نه صریح دې او نه کنایه (هندیه ۱: ۴۰۰) ﴿۵﴾ وهو الموفق

## ،، ځما نه ښځه پاتې شوې ده پاتې شوې ده،، ددې شرعی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ځما ښځه ځما د تره لور

﴿۲،۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة على معنى الطلاق من صريح او كناية فخرج الفسوخ على مامر واراد اللفظ ولو حكما ليدخل الكتابة المستبينة الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

﴿۴،۳﴾ قال العلامة الحصكفى: والكنايات ثلاث ما يحتمل الرد او ما يصلح للسب اولا ولا فنحو اخرجى واذهبى وقومى تقنعى تخمرى استترى انتقلى انطلقى اغربى اعزبى يحتمل رد او نحو خليه برية بائن الخ. (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۳ باب الكنايات)

﴿۵﴾ وفى الهندية: ولو قال لا حاجة لى فيك ينوى الطلاق فليس بطلاق.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فى الكنايات)



هم ده دخپل مورپلار کور ته بباعث ناچاقئ تلې وه دهغې په غیر موجودګئ کښې ځما دهغې ورور سره تلخ کلامی اوشوه، ما په هغه دوران کښې په غصه کښې اووئیل چه ځما نه ځما ښځه پاتې شوې ده پاتې شوې ده، داسې مې نهه یا لس ځلې اووئیل. ځما سخر ماته اووئیل چه ایا تاته طلاقه ده؟ نو ماته فوراً احساس اوشو چه زه طلاق نه ورکوم دراصل ځما په زړه کښې دا ووچه ځما ښځه دې د مورپلار په کور کښې اوسیږی کورته به ئې نه راولم آیا په دې الفاظو سره ځما په نکاح باندې څه اثر پریوتلې دې یا نه؟ شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: کمال خان حائل سعودیه عربیه.... ۱۴۰۱ه ۱۸\۴\۱۸

**الجواب:** ښځه ځما پاتې شوې ده نه صریح دې نه کنایه په دې سره ښځه مطلقه نه کیږی چه کله نیت او اراده د طلاق هم نه وی ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د کور نه لاړه شه ځما نه فارغه شه خاوند اوکړه وغیره الفاظو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې ته دا الفاظ وئیلی دی ته ځما د کور نه لاړه شه ځما نه فارغه ئې. زه بل خاوند اوکړه، اوس زه تا د ښځې په حیثیت سره ساتل نه غوارم. درې ځلې ئې دا الفاظ استعمال کړی دی او ډیر بې دردئ سره ئې په بد شان ښځه وهلې ده او دائې هم وئیلی دی زه به ستا د پلار نه مبلغ پنځه زره روپئ د واده خرچه اخلم، اوس د طلاق څه حکم دې؟ واقع دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: میرعبدل ډهوک...... ۱۹۷۶ء ۲۹\۹\۱

**الجواب:** که چرته خاوند دا الفاظ د طلاق په نیت او ارادې سره وئیلی وی نو دا

﴿۱﴾ وفى الهندية: قد اتفقوا جميعا انه لو قال والله ما انت لى بامرأة او لست والله لى بامرأة فانه لا يقع شئ وان نوى ولو قال لاحاجة لى فيك ينوى الطلاق فليس بطلاق.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فى الكنايات)

شم چه د کور نه ویستلې هم یم او ورسره ئې دا هم وئیلی دی چه زه تا نه غوارم لیکن سړې انکار کوی مندرجه بالا صورتونو کښې کوم یو طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ظاهر بنوں

**جواب:** (۱) د ښځې د کور نه ویستل طلاق نه دې لعدم الرکن(ماخوذ از شامی) ﴿۱﴾ (۲)،، د ښځو په شان ګزاره کوه،، نه صریح دې او نه کنایه بلکه نصیحت دې (ماخوذ از شامی)﴿۲﴾ (۳)،،اوزه،، کنایه دې په دې سره د نیت نه بغیر طلاق نه واقع کیږی (شامی)﴿۳﴾ (۴) نه ویستل طلاق دې او نه،، اوزه،، بغیر د نیت نه طلاق دې(شامی)﴿۴﴾ (۵) زه تا نه غوارم،، نه صریح دې او نه کنایه (هندیه ۱: ۴۰۰)﴿۵﴾ وهو الموفق

## ،، ځما نه ښځه پاتې شوې ده پاتې شوې ده پاتې شوې ده،،

## ددې شرعی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ځما ښځه ځما د تره لور

﴿۱، ۲﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة فخرج الفسوخ علی مامر واراد اللفظ ولو حکما لیدخل الکتابة المستبینة الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

﴿۳، ۴﴾ قال العلامة الحصکفی: والکنایات ثلاث ما یحتمل الرد او ما یصلح للسب اولا ولا فنحو اخرجی واذهبی وقومی تقنعی تخمری استتری انتقلی انطلقی اغربی اعزبی یحتمل رد او نحو خلیه بریة بائن الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۳ باب الکنایات)

﴿۵﴾ وفی الهندیة: ولو قال لا حاجة لی فیک ینوی الطلاق فلیس بطلاق.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)



هم ده د خپل مورپلار کور ته بباعث ناچاقئ تلې وه دهغې په غیر موجودګئ کښې ځما دهغې ورور سره تلخ کلامی اوشوه. ما په هغه دوران کښې په غصه کښې اووئیل چه ځما نه ځما ښځه پاتې شوې ده پاتې شوې ده، داسې مې نهه یا لس ځلې اووئیل. ځما سخر ماته اووئیل چه ایا تاته طلاقه ده؟ نو ماته فوراً احساس اوشوچه زه طلاق نه ورکوم دراصل ځما په زړه کښې دا ووچه ځما ښځه دې د مورپلار په کور کښې اوسیږی کورته به ئې نه راولم آیا په دې الفاظو سره ځما په نکاح باندې څه اثر پریوتلې دې یا نه؟ شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: کمال خان حائل سعودیه عربیه.... ۱۴۰۱هـ ۱۸\۴۱\۱

**الجواب:** ښځه ځما پاتې شوې ده نه صریح دې نه کنایه په دې سره ښځه مطلقه نه کیږی چه کله نیت او اراده د طلاق هم نه وی﴿۱﴾ وهوالموفق

## د کور نه لاړه شه ځما نه فارغه شه خاوند اوکړه وغیره الفاظو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې ته دا الفاظ وئیلی دی ته ځما د کور نه لاړه شه ځما نه فارغه ئې. زه بل خاوند اوکړه. اوس زه تا د ښځې په حیثیت سره ساتل نه غوارم. درې ځلې ئې دا الفاظ استعمال کړی دی او ډیر بې دردئ سره ئې په بد شان ښځه وهلې ده او دائې هم وئیلی دی زه به ستا د پلار نه مبلغ پنځه زره روپئ د واده خرچه اخلم. اوس د طلاق څه حکم دې؟ واقع دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: میرعبدل ډهوک..... ۱۹۷۶ء ۲۹\۹\۱ ×

**الجواب:** که چرته خاوند دا الفاظ د طلاق په نیت او ارادې سره وئیلی وی نو دا

﴿۱﴾ وفی الهندیة: قد اتفقوا جمیعا انه لو قال والله ما انت لی بامرأة او لست والله لی بامرأة فانه لا یقع شئ وان نوی ولو قال لاحاجة لی فیک ینوی الطلاق فلیس بطلاق.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

ښځه مطلقه شوه او د عدت نه پس باقاعده بل ځائ واده کولې شی، کمـا فی شرح التنویر لاتطلق بها قضاء الابنیة او دلالة الحال، وفی ردالمحتار: قول قضاء قید به لانه لایقع دیانة بدون النیة ولو وجدت دلالة الحال: ۱ ۶۳۶ ﴿۱﴾ وهوالموفق

## ښځې ته په ''خه'' ویلو سره د طلاق مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه ما ښځې ته وئیلی وو چه ته ډیره غټه ئې، نوهغې اووئیل چه نرئ مې کړه، نوما جواب ورکړو چه ''خه''، او معمولی وقفې سره مې وئیلی ووچه دا تا نوې خبره اوکړه حالانکه د طلاق وغیره مې بالکل نیت نه وو، آیا په ''خه''، لفظ سره طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام سرور ډاك شبینه راوالپنډی.... ۱۸۱۹۱۱۹۷۰

**الجواب:** په مسئوله صورت کښې دطلاق نیت نه کیدوپه وجه په نکاح باندې څه اثر نه پریوځی. لان الکنایات لایقع بها الطلاق الا بالنیة کما فی ردالمحتار ۲:۶۳۶ ﴿۲﴾ وهوالموفق

## که......زما په ښځه باندې څه حق نه وی. دا الفاظ کنایه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید دخپلې منکوحې په مخکښې دا الفاظ اووئیل په دې حال کښې چه دځ دطلاق اراده کړې وه لیکن د ګواهانو منع کولو سره ئې طلاق ورنکړل بیائې دا الفاظ اووئیل که چرې زهٔ ددې کوهی نه د دوه درې ورځو په ارادې سره د منکوحې د اجازت نه بغیر چرته لاړم نوبیا به زما په هغې باندې هیڅ حق نه وی، بیا زید په پټه د

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۰۲ باب الکنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فالکنایات لا تطلق بها قضاء الا بنیة او دلالة الحال.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۱،۵۰۲ باب الکنایات)



منکوحې د اجازت نه بغیر چرته لاړهٔ، او یوکال پورې غائب اوسیدلو، آیا طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالهادی ګندف صوابی.... ۱۲۱۲۱۱۹۷۴

**الجواب:** دا لفظ چه زما به ښځې باندې څه حق نه وی، لا سبیل لی علیك سره برابر دې اودا لفظ د کنایاتو نه دې. کما صرّح به فی الهندیة ۱:۴۰۰ ﴿۱﴾ پس دې لفظ سره یعنی زما به په ښځه باندې څه حق نه وی، طلاق بائن واقع شو په دې شرط چه خاوند په دې لفظ سره طلاق مراد اخستې وی.

**کما فی ردالمحتار ۲:۶۳۶ قوله قضاء قید به لانه لا یقع دیانة بدون النیة ولو وجدت دلالة الحال ﴿۲﴾. وهوالموفق**

## ''ماته ستا ضرورت نشته'' الفاظ کنایه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید خپې ښځې ته اووئیل چه ماته ستا ضرورت نشته، ښځه خپل مورپلار کره لاړه، درې میاشتې تیرې شوې نود زید پلار د زید سخرګنئ کره لاړهٔ اوخپله اینګورئې کورته راوستله. اوس عرض دادې چه د پورته ذکر شوو الفاظو په وجه زید ښځې ته رجوع کولې شی؟ آیا دا مطلقه بائنه شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عنایت الاسلام بلیتهنګ کوهاټ.... ۵۱۹۱۱۹۷۰

﴿۱﴾ وفی الهندیة: والحق ابو یوسف رحمه الله تعالیٰ بخلیة وبریة وبائن وحرام اربعة اخریٰ ذکرها السرخسی فی المبسوط وقاضی خان فی الجامع الصغیر وآخرون وهی لا سبیل لی علیک لاملک لی علیک.
(فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۰۲ باب الکنایات)

**الجواب:** چونکه دا الفاظ د کنایاتو نه دی لهٰذا که خاوند د طلاق نیت او ارادې سره وئیلي وی نو یو طلاق بائن واقع شو. اوکه د طلاق ورکولو ارادې سره نه وی، د توهین وغیره ارادې سره وی نو طلاق به نه کیږی.

فی الدر المختار: **کنایته مالم یوضع له واحتمله وغیره فالکنایات لا تطلق بها قضاء الا بنية او دلالة الحال، قال العلامة الشامی: قيد به لانه لا يقع ديانة بدون النية (ردالمحتار ۲:۶۳۶)﴿۱﴾**

بلکه د بعضې عباراتو نه معلومیږی چه دا الفاظ د طلاق نه نهٔ دی لهٰذا د نیت باوجود هم دې سره طلاق نه واقع کیږی. قالوا فی الهندیة ۱:۴۰۰ ولو قال لا حاجة لی فیك ینوی الطلاق فلیس بطلاق ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د ``ما پریخوده،، الفاظو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء ددین دې مسئلې باره کښې چه ``ما پریخوده،، دا الفاظ په طلاق کښې څه حکم لری؟ بینوا توجروا

المستفتی: ........ نامعلوم ........

**الجواب:** واضحه دې وی چه دا لفظ یعنی ``پریخودل،، په طلاق اوغیرطلاق دواړو کښې کثرت سره استعمالیږی، د قرائنو په وجه د یو تعین کیږی، پس په ظاهره به دا لفظ د ``ترکتها،، په شان دکنایاتو نه وی، چه په دې کښې د نیت نه بغیرطلاق نه واقع کیږی. دغسې دا لفظ که چرې په طلاق کښې مشهوروی نو په طلاق بائن کښې به مشهوروی، داهل عرف په نزد بینونت مراد اخستلې شی. **والصریح قد یقع به البائن کما فی ردالمحتار ۲:۶۳۹﴿۳﴾ والصریح لا یقع به الطلاق دیانة عند عدم النیة کما فی**

﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۵۰۱،۵۰۲ باب الکنایات)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

﴿۳﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۹، ۵۰۴ قبیل مطلب لااعتبار بالاعراب هنا باب الکنایات)



ردالمحتار ۲:۵۹۳﴿۱﴾ **نعم اذا کان هازلا فیقع طلاقه لکونه ناویا زجرا﴿۲﴾ وللحدیث المشهور﴿۳﴾ فافهم. وهوالموفق**

## ``ښځه زما نه آزاده ده زهٔ دهغې نه آزاد یم،، په بائن کښې مشهور دی

**سوال:** څه فرمائی علماء ددین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د زید ښځه د دریو کالونه جدا ده په دې موده کښې زید یوه پیسه هم دخرچې دپاره نه ده ورکړې. اونه ئې دا توجه کړې ده چه دا زما ښځه ده. د کلي جماعت په مخکښې ددهٔ نه دوه قسمه الفاظ اوریدلی شوی دی. یوځل ئې اووئیل چه که کورته راغله نو ناسته به وی خو ښځه به ترې نه جوړوم. که رانغله نو زما نه ده

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله غیر عالم بمعناه) کما لو قالت لزوجها اقرأ علی اعتدی انت طالق ثلاثا ففعل طلقت ثلاثا فی القضاء لا فیما بینه وبین الله تعالیٰ اذا لم یعلم الزوج ولم ینو بحر عن الخلاصة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۱ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۲﴾قال العلامة الشامی: (قوله هازلا) ای فیقع قضاء ودیانة...... بانه مکابر باللفظ فیستحق التغلیظ وکذا فی البزازیة...... وبعد صفحة...... (جعل هزله به جدا) لانه تکلم بالسبب قصدا فیلزمه حکمه وان لم یرض به.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۵۹،۴۶۱ مطلب فی تعریف السکران وحکمه)

﴿۳﴾قال رسول الله ﷺ: ثلاث جدهن جد وهزلهن جد النکاح والطلاق والرجعة وفی روایة والعتاق وفی روایة والیمین، وقال علی کرم الله وجهه: ثلاثة لا لعب فیهن الطلاق والعتاق والنکاح. (رواه الخمسة (احمد واصحاب السنن) الا النسائی عن ابی هریرة وقال الترمذی حدیث حسن غریب واخرجه الحاکم وصححه والدارقطنی وفی اسناده ابن ازدک وهو مختلف فیه.

(نیل الاوطار ۶:۲۳۴ وما بعدها نصب الرایة فی الهامش ۳:۲۲۳)

پکار، دویم ځل ئې اووئیل چه زما ښځه زما نه آزاده ده او زهٔ دهغې نه آزاد یم، کثیر جماعت ددې الفاظو شاهد دې، آیا دې سره طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری عبدالرؤف هائی سکول ډاګئ...۱۹۷۵ء۱۹۱۸۲

الجواب: واضحه دې وی چه دا لفظ زما نه آزاده ده پخپله کنایه دی لیکن زمونږ په عرف کښې دا لفظ په طلاق بائن کښې مشهوردی لهٰذا بشرط صدق وثبوت دې سره طلاق (بائن) واقع کیږی.

فلیراجع الی ردالمحتار ۲:۶۳۸،۶۳۹ ففیه ذکر بعض نظائره﴿۱﴾. وهوالموفق

## ته زما هیڅ نه کیږې. زهٔ ذهنی طور باندې ددې نه فارغ یم. الفاظ کنائی دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید په مزاق (ټوقو) کښې خپلې ښځې ته اووئیل چه ''زما هیڅ نه کیږې،، ددې کلام په وخت کښې دزید نیت دطلاق یا ښځې سره د تعلق ختمولو وغیره نه وو، آیا دې سره په نکاح باندې څه اثر پریوځی؟ دغسې یوسړی دخپلې ښځې باره کښې اووئیل چه ''زهٔ ذهنی طورباندې ددې نه فارغ یم،،اوریدونکی اووئیل چه آیا

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقد صرح البزازی اولا بان حلال الله علی حرام بالعربیة اوالفارسیة لا یحتاج الی نیة حیث قال ولو قال حلال ایزد بروی او حلال الله علیه حرام لا حاجة الی النیة وهو الصحیح المفتی به للعرف وانه یقع به البائن لانه المتعارف ثم فرق بینه وبین سرحتک فان سرحتک کنایة لکنه فی عرف الفرس غلب استعماله فی الصریح فاذا قال رها کردم ای سرحتک یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضا وما ذاک الا انه غلب فی عرف الفرس استعماله فی الطلاق وقد مر ان الصریح ما لم یستعمل الا فی الطلاق من ای لغة کانت لکن لما غلب استعمال حلال الله فی البائن عند العرب والفرس وقع به البائن...... فیتوقف الآن وقوع البائن به علی وجود العرف...... وکونه التحق بالصریح للعرف لا ینافی وقوع البائن به فان الصریح قد یقع به البائن الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۰۳،۵۰۴ قبیل مطلب لا اعتبار بالاعراب هنا)



ستا ددې نه طلاق مراد دې؟ هغه په جواب کښې اووئیل چه زما نیت او مراد فی الحال دطلاق نه دې، البته په آئنده کښې مې دطلاق ورکولو اراده ده، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اکرم کویت.......۱۹ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په دې دواړو صورتونو کښې ښځه نه طلاقه کیږی.ځکه چه کنایاتو کښې نیت د طلاق موجود کیدل ضروری دی او دلته نیت موجود نه دې.(کما فی الشامیة ﴿۱﴾ والهندیة﴿۲﴾ والبحر ﴿۳﴾.وهوالموفق

## ''ماته ددې حاجت نشته بل ځائې کښې ددې نکاح اوکړه،، دې سره د طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړی اووئیل چه ''ماته ددې (ښځې) حاجت نشته بل ځائې کښې ددې نکاح اوکړه،، آیا دې دواړو الفاظو سره طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید ایس وی لدها ډی آئی خان

**الجواب:** دا لفظ چه ''ماته ددې حاجت نشته،، د طلاق د الفاظونهٔ دی، او

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: فالکنایات لا تطلق بها قضاء الا بنیة او دلالة الحال، قال ابن عابدین: (قضاء) قید به لانه لا یقع دیانة بدون النیة ولو وجدت دلالة الحال.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۵۰۱،۵۰۲ باب الکنایات)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: الکنایات لا یقع بها الطلاق الا بالنیة او بدلالة حال کذا فی الجوهرة النیرة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۷۴ الفصل الخامس فی الکنایات)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله لا تطلق بها الا بنیة او دلالة الحال) ای لا تطلق بالکنایات قضاء الا باحدی هذین لانها غیر موضوعة للطلاق بل موضوعة لما هو اعم منه.

(البحر الرائق ۳:۲۹۸ باب الکنایات)

دا لفظ چه ''بل ځائي کښې ددې نکاح اوکړه،، د طلاق د الفاظو نه دی، کله چه د طلاق نیت او ارادې سره وئیلې شوې وی (هندیة) ﴿۱﴾ وهوالموفق

**''ځوک ښهٔ سړې اوګوره د خپلې لور رشته ورسره اوکړه،، ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د نابالغ جینئ اوهلك نکاح شوې وه کله چه هلك بالغ شو، د اختلاف په وجه ئې د جینئ مورپلار ته کراچئ ته دخط په ذریعه اولیکل چه تاسو وایئ چه ته خپل مور پلار پریږده نو هله به مونږ رشته درکؤو ګنی نه ئې درکؤو، اوس خوما وادهٔ هم نه دې کړې نو زما پلار زما نه جدا کوئ، کله چه زهٔ وادهٔ اوکړم نو بیا به مو څه رویه وی، زهٔ قطعاً ستاسو د لور کومه چه زما منکوحه ده دهغې خواهش مند نه یم، تاسو ځوک ښه سړې اوګورئ دخپلې لور رشته ورسره اوکړئ زما دطرفه اجازت دې او زما سامان کوم چه ما دنکاح په وخت جینئ نه ورکړې وو هغه واپس زما کورته راؤرسوئ او زما خلاف عدالت کښې قانونی کاروائی مه کوئ اوپه قومی جرګه کښې کینئ ماسره لین دین ختم کړئ وغیره، ددې الفاظو او دخط څه حکم دې آیا طلاق واقع شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: رفیق محمد هری پور ....... ۱۹۷۱ء/۱۲/۲۰

**الجواب:** که خاوند دا الفاظ چه ''ځوک ښهٔ سړې اوګورئ دخپلې لور رشته ورسره اوکړئ،، دنکاح ختمولو ارادې سره ئې وئیلې وی نودا جینئ طلاقه شوې ده ګنی نه ده طلاقه شوې، ونظیره ما فی الهندیة ۱:۴۰۰ وبابتغی الازواج

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وبابتغی الازواج تقع واحدة بائنة ان نواها او اثنین وثلاث ان نواها هکذا فی شرح الوقایة...... ولو قال لا حاجة لی فیك ینوی الطلاق فلیس بطلاق...... ولو قال لها اذهبی فتزوجی تقع واحدة اذا نوی.

(فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۳۷۵، ۳۷۶ الفصل الخامس فی الکنایات)



تقع واحدة ان نواها الخ ﴿۱﴾. وهوالموفق

**''طلاق ورکړه نو ته آزاد ئې، جواب کښې ئې اووئیل زهٔ آزاد یم،،**

**دا طلاق بائن دې**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه مثلاً د زید نکاح په ماشوم والی کښې د زینب (نابالغې) سره شوې وه، د زید د بالغ کیدونه پس پلار هغهٔ ته په یواځې والی کښې اووئیل چه اوس مونږ ستا دښځې رخصتی کوو او کورته ئې راوستل غواړو. زید اووئیل چه زهٔ وادهٔ نه کوم، ددهٔ مراد زینب سره وادهٔ نه کول وو. پلار ئې اصرار کولو اوهلك انکار، بیا ورته پلار اووئیل چه ښه بیا طلاق ورکړه، هلك اووئیل چه زه طلاق ورکوم، دا خبرې اترې په کمره کښې کیدلې خلق بهر په انتظار کښې وو، پلار خوی ته اووئیل چه ښه بهرته راشه دخلقو په مخکښې طلاق ورکړه، بهرته د راتلونه پس داسې خبرې اوشوې چه پلار اووئیل طلاق ورکړه ته آزاد ئې، زید اووئیل زه آزاد یم، ددغسې الفاظو د دواړو طرفې نه څوځل تکرار اوشو، بیا پلاراووئیل چه آیا ته لا تعلق ئې زید اووئیل چه زه لا تعلق یم، په دې لیکلې شوی صورت کښې کوم طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رمضان کندیان میانوالی.... ۱۹۷۲ء/۹/۳۰

**الجواب:** په زید باندې خپله منکوحه مطلقه بائنه شوې ده،

**لان هذین اللفظین من الکنایات لان الکنایة ما لم یوضع للطلاق واحتمله وغیره وحکمها وقوع الطلاق عند النیة والارادة ﴿۲﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: کنایة (الطلاق) ما لم یوضع له ای الطلاق واحتمله وغیره فالکنایات لا تطلق بها قضاء الا بنیة او دلالة الحال.

(الدرالمختار هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۱ باب الکنایات)

# باب تعلیق الطلاق

**په تعلیقي طلاق کښې شرط که اصالةً پوره کړی یا وکالةً حنث واقع کیږی**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید اووئیل چه په ما باندې زما منکوحه په دریو شرطو سره طلاقه وی که زهٔ دخپلې لور رشته خورئی ته ورکړم، اوس که زید دخپلې لور اختیار ترهٔ یا نیا ته ورکړی چه هغه چاته غواړی زما لور ورکړی، اوس که ترهٔ یا نیا ددې جینئ رشته هغه هلك ته ورکړی دچا قسم چه زید کړې دې نوآیا په دې صورت کښې به زید باندې طلاق راځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سلیمان بابر ګړهی حبیب الله

**الجواب:** زید که دا لور اصالةً یا وکالةً خورئی ته په نکاح کښې ورکړه، نو په ده باندې به ښځه مطلقه مغلظه شی، لوجود الشرط ﴿۱﴾ لهٰذا د زید داطلاع نه بغیر اودهغه د اختیارنه بغیر دې نور رشته داران مثلاً ترهٔ یا پلار یا نیا عقد دنکاح اوکړی اود جینئ نه دې اجازت واخلی که بالغه وی، ګنی داجازت نه بغیر دې عقد دنکاح اوکړی﴿۲﴾ مختصر داچه په دې نکاح کښې دې زید هیڅ مداخلت نه کوی.﴿۳﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال الامام ابوالليث السمرقندی: والفاظ الشرط ستة...... فمتى ما وجدت هذه الشرائط انحلت اليمين وانتهى الامر. (خزانة الفقه ۱۱۹ مبحث الفاظ الشرط)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: حلف لا يتزوج فزوجه فضولی فاجاز بالقول حنث وبالفعل ومنه الكتابة خلافا لابن سماعة لا يحنث به يفتى خانية. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱۵۰:۳ مطلب حلف لا يتزوج فزوجه فضولی)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: فلو حلف لا يتزوج فعقده بنفسه اْو وكل فعقد الوكيل حنث. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱۲۹:۳ مطلب حلف لا يتزوج)



**اراده د تعلیقی طلاق وه لیکن د غفلت په وجه تنجیزی صادرشو**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زید خپل پلار ته اووئیل چه یا خو زما تنخواه د درې سوه نه زیاته کړه پنځه سوه ئې کړه، یا ما دخپل ځان نه جدا کړه، لیکن د زید پلار نه منی، زید طلاق د وسلې په طور د استعمالولو اراده اوکړه په دې وجه ده خپل زړه کښې دا الفاظ تیارکړل ''فلانئ نن ته دخپل مورپلار کورته لاړه شه ګنی تاته درې طلاقه اوکه زما داجازت نه بغیر راغلې نوبیا هم تاته درې طلاق،، کافی وخته پورې په دې الفاظو باندې غورکولو چه چرته دا الفاظ خطرناك نه وی، دکافی سوچ او فکرنه پس زید دې نتیجې ته اورسیدهٔ چه څه دا الفاظ خطرناك نه دی ځکه که پلار صاحب راله تنخواه زیاته کړه نو خپله ښځه به واپس راولم، بهرحال زید دا الفاظ څو ځله زړه کښې واړول، اوښه ئې یاد کړل لیکن ددې باوجود ئې دطلاق ورکولو په وخت په غلطئ او جلتئ کښې دا الفاظ اووئیل ''فلانئ نن ته دخپل پلار کورته لاړه شه تاته درې طلاق،، دومره وئیلو سره دهٔ ته دخپلې غلطئ احساس اوشو چه ده خو لفظ ''ګنی،، استعمال نه کړو، لهٰذا د وقفې نه بغیر ئې فوراً الفاظ صحیح کړل اوداسې ئې اووئیل ''فلانئ نن ته دخپل مورپلار کورته لاړه شه ګنی تاته درې طلاق،، د زید ښځه دغه وخت د مورپلار کورته لاړه، دوه ورځې پس د زید پلار په تنخواه زیاتولو باندې راضی شو بیا زید خپلې ښځې ته کورته د راتلو اجازت ورکړو. اوس سوال دادې چه آیا د زید دخطا په وجه یعنی لفظ د ''ګنی،، نه استعمالولو په وجه اګرچه ده دوباره الفاظ صحیح کړی دی آیا په زید باندې خپله ښځه حرامه شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محبوب الرحمٰن..........۱۹۷۵ء۱۲\۴\۱۲

**الجواب:** بشرط صدق دې خاوند (زید) باندې خپله ښځه مطلقه شوې نه ده، ځکه چه ده اراده دتعلیق کړې وه لیکن دغفلت په وجه دتنجیز الفاظ صادرشول، **یدل علیه ما فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۸۴ او مخطئا بان اراد التکلم بغیر الطلاق فجری علی لسانه الطلاق (الیٰ ان قال) یقع ..........**

قضاء فقط بخلاف الهازل واللاعب فانه يقع قضاء وديانة فافهم ﴿١﴾.

**نوټ:** ..... که دې خاوند منجز عمداً ذکرکولوسره معلق مراد اخستې وی نوپه ده باندې به ښځه مطلقه مغلظه وی. ﴿١﴾ وهوالموفق

## په يمين بتعليق الطلاق کښې کفاره ورکولوسره کارنه جوړيږی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دين دې مسئلې باره کښې چه زيد دخپل خوی نه خفه شوې دې اووائی چه که زۀ ستا نه راضی شم يا څه تعلق درسره اوساتم نو په ما باندې زما ښځه او ستا مور درې شرط سره طلاقه ده، اوس که مسمیٰ زيد په څه وجه دهلك نه راضی شی نو قسم به لازم وی يا نه؟ اوکفاره به لازم وی يا نه؟ که کفاره لازم شی نو څه او څومره، لږ وضاحت غواړو؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی جميل احمد امام مسجد کها ايبټ آباد.. ١٢|١١|١٩٧٤ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه يمين مذکوره يمين بالله نه دې چه کفارې سره کارجوړشی بلکه دايمين بالتعليق دې ﴿٣﴾ په دې وجه که دا سړې زيد دخپل

---

﴿١﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٤٦١ کتاب الطلاق)

﴿٢﴾ وفی الهندية: ولو قال انت طالق ثم ان دخلت الدار فانه يقع الطلاق ولو نوی التعليق لا تصح نيته اصلا. (فتاویٰ عالمگيرية ١: ٤٢١ الفصل الثالث فی تعليق الطلاق)

﴿٣﴾ قال العلامة الحصكفی: اليمين عبارة عن عقد قوی به عزم الحالف علی الفعل اوالترک فدخل التعليق فانه يمين شرعا، قال العلامة ابن عابدين: لانه يقوی به عزم الحالف علی الفعل فی مثل ان لم ادخل الدار فزوجته طالق وعلی الترک فی مثل ان دخلت الدار...... وبعد صفحة...... (وحکمها البر اوالکفارة) ای البر اصلا والکفارة خلفا کما فی الدر المنتقیٰ وانت خبير بان الکفارة خاصة باليمين بالله تعالیٰ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ٣: ٤٩، ٥٠ کتاب الايمان)



ځوی نه راضی شی يا دځوی سره تعلق اوساتی نوپه ده باندې به ښځه مطلقه مغلظه شی. لان المعلق بالشرط يجب ثبوته عند ثبوت الشرط کما فی شرح المجلة ٥٤ ﴿١﴾ اوس تدبير دادې چه دا شرط لګونکې (زيد) دې ښځې ته يو طلاق بائن ورکړی او د عدت تيريدو نه پس دې ځوی سره راضی نامه اوکړی او تعلق دې ورسره اوساتی ددې نه پس دې تجديد د نکاح اوکړی. صرح بها فی الهندية ٦: ٤١٠ ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د طلاق تفويض، عزل وکيل، اوپه دې کښې دګواهئ وغيره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې لاندېنو مسئلوباره کښې:

(١) زيدپه دې الفاظوخپل پلارته دحق طلاق تفويض اوکړو چه کله غواړې اوڅنګه غواړې ځماپلاره ځماښځې ته طلاق ورکولې شی اوبيا دا اختيار واپس اخلی نوآيا دااختيار واپس دخپل پلارنه اخستلې شی؟ (٢) دزيد پلار طلاق ددی خبری سره معلق کړوکه چرته دزيدښځه زمونږه دمرضې نه بغير چرته لاړه شی يادچاسره لاړه شی نوديته شرعی طلاق مغلظه دی ليکن ددې خبری علم زيدته هم نشته اونه دزيدښځی ته شته که چرته دزيدښځه ددې شرط خلاف اوکړی نودعدم علم باوجود آيا طلاق واقع شو؟ که چرته طلاق واقع کيږی نوايا زيددوباره نکاح کولې شی؟ (٣) دزيد پلارطلاق معلق کړی داوائی که چرته دشرط خلاف ورزی وی نوشرعاطلاق مغلظه، اوددې سره ئې دبل کوم لفظ يانيت اظهار نه ووکړې نوايا په دی سره طلاق واقع شو؟ (٤) کله چه زيداصرارکوی چه مادخپل پلار نه دطلاق اختيار دده دطلاق نافذيدوڅه مخکښې اخستې وو نوآيا دزيددپلارسره دطلاق ورکولواختيار بياباقی پاتې کيديشی؟ (٥) زيدپه دې خبره کلک دې چه ځمانه دتفويض په کاغذ

---

﴿١﴾ (شرح المجلة للآتاسی ١: ٢٣٢ مادة: ٨٢)

﴿٢﴾ وفی الهندية: اذا حلف بثلاث تطليقات ان لا يکلم فلانا فالسبيل ان يطلقها واحدة بائنة ويدعها حتی تنقضی عدتها ثم يکلم فلانا ثم يتزوجها کذا فی السراجية. (فتاویٰ عالمگيرية ٦: ٣٩٧ کتاب الحيل الفصل السابع فی الطلاق)

په دې وخت ددې الفاظو په مطلب باندې جبرا دستخط اخستلې شویدې او په دې وخت ددې الفاظو په مطلب باندې نه پوهیدلم لیکن د زید پلار دوه داسې ګواهان پیش کړه چه دا ګواهې ورکوی چه زید په خوښه او بغیر د جبر او اکراه نه دستخط کړی لیکن دا دوه ګواهان د زید د پلار ملازمان دی په دې صورت کښې به د ګواهانو سره د زید خبره قابل ترجیح وی او که نه د زید د پلار؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ادریس c\o ناظم مدرسه نصرة العلوم ګجرانواله ۱۲ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**جواب**: که چرته دا تفویض یعني توکیل بالطلاق مسلم یا باقاعده مبرهن وی او دی ځوئ ددې عزل مزعومه نه پلارته باقاعده خبر نه وی کړې نو ددې وکیل (والد) ورکړئ شوې طلاق نافذ او منظور دی ګڼنی کالعدم دې مختصر جوابات لاندینی دې: (۱) دا موکل دا وکیل معزولولې شی لیکن دې وکیل ته به باقاعده دا طلاع کولو نه مخکښې عزل نامنظوروی (هندیه ۲:۶۳۸) ﴿۱﴾- (۲) دا تعلیق صحیح دې او د تحقق په وخت کښې به دا ښځه مطلقه مغلظه وې (هدایه ۲:۳۶۵) ﴿۲﴾- (۳) که چرته دا وکیل تعلیم یافته نه وې نو د بینونت خفیفه احتمال قوې احتمال دې ﴿۳﴾-

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ومنه عزل الموکل ایاه ولصحة العزل شرطان احدهما علم الوکیل به لان العزل فسخ للعقد فلا یلزم حکمه الا بعد العلم به کالفسخ فاذا عزله وهو حاضر انعزل وکذا لو کان غائبا فکتب الیه کتاب العزل فبلغه الکتاب وعلم بما فیه انعزل...... وان عزله الموکل واشهد علی عزله وهو غائب ولم یخبره بالعزل احد لا ینعزل ویکون تصرفه قبل العلم بعد العزل کتصرفه قبل العزل فی جمیع الاحکام.
(فتاویٰ عالمگیریة ۳:۶۳۷ الباب التاسع فیما یخرج به الوکیل عن الوکالة)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا اضافه الی شرط وقع عقیب الشرط مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق وهذا بالاتفاق. (هدایة ۲:۳۸۵ باب الایمان فی الطلاق)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ولو قال انت طالق اقبح الطلاق او افحشه او اخبثه او اسوأه او اغلظه او اشره او اطوله...... ولم ینو شیئا او نوی واحدة او ثنتین فی غیر الامة کانت واحدة بائنة وان نوی ثلاثا فثلاث کذا فی التبیین.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۷۲ الفصل الثالث فی تشبیه الطلاق ووصفه)



(۴) وکیل ته دا طلاع ورکولو نه مخکښې دا عزل کالعدم ګرځي ﴿۱﴾- (۵) بینه اکراه ته به په بینه طوع باندې ترجیح ورکولې شی (درمختار ۴:۵۳۵) ﴿۲﴾- وهو الموفق

## ځوئ خپل پلار ته تفویض طلاق کولې شی او وکیل هم جوړولې شی

**سوال**: څه فرمائي علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو کس خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو حق خپل پلار ته داسې تفویض کړو. چه فلان بن فلان په بلوغ او عقل او هوش په خوښه بلاجبر او اکراه خپلې ښځې ته د خپل طلاق ورکولو مکمل حق خپل پلار فلان ته تفویض کومه هغه چه کله غواړی ځما منکوحې ته طلاق ورکولې شی. لاندې دستخط او د دوو ګواهانو نومونه هم دی ایا دا پلار ددې هلک منکوحې ته طلاق ورکولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالله مدرسه تعلیم القران خانیوال ۱۲ ذی قعده ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: دا توکیل او تفویض صحیح او نافذ دې دا پلار د ځوئ ښځې ته هر وخت او هر قسم طلاق ورکولې شی او ځوئ پلار معزول کولې هم شی. یدل علی ذالک مافی شرح التنویر: واذا قال لرجل ذلک لم یقید بالمجلس لانه توکیل فله الرجوع ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ومنه عزل المؤکل ایاه...... وان عزله الموکل واشهد علی عزله وهو غائب ولم یخبره بالعزل احد لا ینعزل ویکون تصرفه قبل العلم بعد العزل کتصرفه قبل العزل فی جمیع الاحکام. (فتاویٰ عالمگیریة ۳:۶۳۷ الباب التاسع، کتاب الوکالة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وبینة الاکراه فی اقراره اولی من بینة الطوع.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴:۴۳۱ قبیل باب الاختلاف فی الشهادة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: واما فی طلقی ضرتک وقوله لاجنبی طلق امرأتی فیصح رجوعه منه ولم یقید بالمجلس لانه توکیل محض.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۱۷ باب تفویض الطلاق)

## د قسم او طلاق معلق یوصورت

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یوکس دخپلې لور رشته خپل وراره ته ورکړه د خفګان پیداکیدونه وروسته ده په دې الفاظو سره انکارا وکړو چه (۱) زه که چرته مذکوره وراره ته خپله لور واده کړم نوزه به قران مجیدنه فارغ یم. (۲) زه که چرته مذکورته جینۍ ورکړم نو په ما باندې ښځه طلاقه (یوځلې وئیلی دی). (۳) په جرګه کښې چه کله هغه خلقو مجبور کړو اود اصرار په موقع باندې یوکس هغه ته اووئیل چه کله رشته شوي وی هغه په اصل شریعت کښې (بمعنی نکاح) شو په دې باندې ده جواب ورکړو چه زه دا شریعت (بمعنی نکاح) نه منم. اوس خلقو شورشروع کړیدې چه ده دشریعت نه انکار وکړو ځکه چه داهرڅه ده ناواقفی دوجې نه شوی دی اوس شریعت کښی ددې سړی څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حنیف الرحمٰن معلم دینیات پرائمری سکول مری

**جواب:** (۱) داقسم دې په دې باندې نه کافر کیږې ﴿۱﴾ -(۲) داطلاق معلق دی که چرته ده جینۍ ورکړله نو دده ښځه په یو طلاق رجعی باندی طلاقیږی ﴿۲﴾ لیکن ددې حکم اسان دې یعنی ښځې ته رجوع کولې شی ښځې ته به اووائی چه ماتاته رجوع اوکړه ﴿۳﴾-(۳) ده تاویل دوجی نه

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو قال ان فعلت کذا فانا بریٔ من القرآن اوالقبلة اوالصلاة او صوم رمضان فالکل یمین هو المختار...... وکذا کل ما یکون البراء ة عنه کفرا کذا فی الخلاصة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲: ۵۳ الباب الثانی فیما یکون یمینا وما لا یکون الفصل الاول)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: واذا اضاف الطلاق الی شرط وقع عقیب الشرط اتفاقا.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک او لم ترض لقوله تعالیٰ فامسکوهن بمعروف من غیر فصل. (هدایة ۲: ۳۷۳ باب الرجعة)



کافر نه دې ﴿۱﴾ اوهمداسې صرف رشته (بغیرایجاب وقبول) نکاح هم نه ده ﴿۲﴾ خلاصه داده که چرته ده خپله لور په نکاح ورکړه نو کافر نه دې یو کفاره به دقسم ورکوی اوښځې ته به رجوع اوکړی ـ وهوالموفق

## د طلاق بشرط تعلیق یا بطور تاکید مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه د پرویزه بی بی د خپل خاوند غلام سره جګړه وشوه د صلح دپاره ثالث دکلی نمبردار د پرویزه پلار زورآور ته اوازاوکړو هغه حاضر شو نو غلام ثالث ته اووئیل چه زورور او دده ښځی دواړونمبر دار ته سختې کنځلې کړیدی په دې باندی زورور او دهغه سره یو څو ګواهانو اووئیل چه مونږ ټول موجودوو اودوئ نمبر دار ته هیڅ کنځلې نه دی کړی نوغلام د خپلې ښځې پرویزه او ددې ده پلار نیکه نوم واخستلواو درې ځلې ئې طلاق واچولو چه ځما ښځه د زورور لور اود فتح خان نوسئې په ماباندې په درې طلاقو حرامه ده چه زورور نمبر دار ته کنځلې کړیدی نوزورور (دجینۍ پلار) هم قران او طلاق واچولواووئې وئیل چه مانمبردار ته بالکل کنځلې نه دی کړی اوهمداسی دزورور ښځی هم قران قسم اوکړو اوانکار کوې.ددې نه علاوه یو څونور کسان چه په یوڅوقدمه فاصله کښی موجود وو هغوی هم قران اوطلاق اچوی اووائې چه مونږ بالکل کنځلې وغیره نه دی اوریدلې په دې صورت کښی چه غلام کوم طلاق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر ووجه واحد یمنع فعلی المفتی ان یمیل الی ذلک الوجه کذا فی الخلاصة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲: ۲۸۳ قبیل الباب العاشر فی البغاة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن البزاز الکردری: النکاح ینعقد بلفظ النکاح والتزویج کان علی وجه الخبر عن الماضی...... بمحضر من الشهود فیقول الرجل قبلت الخ.
(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۱: ۳۲۱ کتاب النکاح الفصل الاول)

اچولي دي په دې باندې دده ښځه پرویزه بی بی طلاقه او حرامیږی او که نه؟

بینوا توجروا

المستفتی: فتح محمد تله گنگ کیملپور.......... ۲۲\۸\۱۹۶۹

**الجواب:** که چرته د طلاق په ذکر کولو باندې د غلام مراد تاکیدوو نو ښځه په ده باندې مطلقه مغلظه شویده او که چرته مقصودئې تعلیق وی یعنې دامراد وی چه که چرته دوئې کنځلې نه وی کړی نو په مابانډې فلانه طلاقه ده نو ښځه مطلقه شوې نه ده کله چه دا اصرار کوی. بیشکه کله چه کنځل نه کول ثابت شول نو دغلام په اقراریا دښځی په قسم باندې (حاکم یا د ثالث په مخکښې د طلاق د دعوې نه پس) نو ښځه مطلقه مغلظه کیږی ﴿۱﴾ قلت: ونظیرکونه تعلیقامافی ردالمحتار لوقال انت طالق لدخلت، وعلی الطلاق لا افعل کذا (۲: ۲۸۷) ﴿۲﴾ لیکن عرف کښی په جوړ نظر باندې معلومیږی چه تعلیق مراد دې. وهوالموفق

## په جرګه کښې په طلاق ثلاثه باندې دقسم اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ددوو ډلو په مینځ کښی دځمکې جهګړه وه ددې فیصله په جماعت کښی کیناسته دجرګې په موجودګئې کښې قران پاک په مینځ کښې کیخو دو د یو اقرار نامې په

﴿۱﴾ قال العلامة الخالد الآتاسی: المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط. (شرح المجلة ۱: ۲۳۲ مادة: ۸۲)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: قلت وقد یکون الکلام متضمنا للتعلیق بدون تصریح باداته کما مر فی قوله ویکفی معنی الشرط الخ ومنه ما فی البحر حیث قال وفی المحیط وعن ابی یوسف لو قال انت طالق لدخلت فهذا یخبر انه دخل الدار او اکده بالیمین فیصیر کانه قال ان لم اکن دخلت الدار فان لم یکن دخل طلقت ولو قال انت طالق لا دخلت الدار بتعلق بالدخول ثم قال ولو قال انت طالق والله لا افعل کذا فهو تعلیق ویمین ولو قال انت طالق والله لا افعل کذا طلقت للحال ذکرهما فی جوامع الفقه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۴۲ مطلب مایکون فی حکم الشرط باب التعلیق)



ذریعه او شوه چه په هغې کښې ئی اوویل شوچه کومه ډله ددې اقرار نامې نه واوړیده دا ښځه په هغه باندې په دریو طلاقه طلاقه ده څه زمانه تیریدلو نه پس یوه ډله دد ې وعدې نه واوړیدله اوس په دې ډلې باندی دطلاق د واقع کیدو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم.......... ۲۶\۸\۱۹۷۵

**الجواب:** که چرته دې ډلی دې تعلیق باندې رضا مندی ښکاره کړې وی نو په دې ډلې باندې ښځه مطلقه کیږې او دخاموشی په صورت کښې په دې ډلې باندې ښځه نه مطلقه کیږی. کمافی الدرالمختار: جماعة یتحدثون فی مجلس فقال رجل منهم من تکلم بعد هذا فامرته طالق ثم تکلم الحالف طلقت امراته، وفی ردالمحتار ۲: ۶۳۵ سکت عما اذا تکلم غیره والظاهر انه لایقع لان تعلیق المتکلم لایسری حکمه الی غیره الااذا قال الغیر وانا کذالک مثلا فافهم ﴿۱﴾. وهوالموفق

## که چرته بیع معلق بالطلاق کښې اقاله اوکړی نو دوباره د سره نوې بیع کښې حانث کیدل نه راځی

**سوال:** څه فرمائ علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید دخپل پلار نه جدا اوسیږی هغه په پلار باندی دغوئی خرڅولو خبره وکړه یو زر روپې باندې بیع وشوه لیکن کله چه هغه بل ورور خبر شو نو هغه انکار او کړو او پلار ته ئی اوویل چه تا زیات قیمت مقرر کړیدې مونږ ښو په نهه سوه روپې دا غوئی اخلو پلار او ځامنو کښې په دې خبره داتفاق راغلو بیا پلار ټولې پنځه سوه روپې ورکړې او بقایا څلور سوه روپې دورکولو ئې اوئیل نو دی ځوئ زید اووئیل چه که چرته دې پنځوسوو روپو نه علاوه نور رقم واخلم نو خپله ښځه به مطلقه ساتم یعنی دائې اووئیل.. چه طلاقه به ئې بساتم.. اوس که چرته پلار ځوئ ته بقایا پیسې ورکړی نو ښځه مطلقه کیږې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا احمد شاه پشاوری.......... ۶\۳\۱۹۷۴

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۰۱ قبیل باب الکنایات)

... الفاظ د طلاقه به ئې ساتم.. طلاقه به ئې ساتم.. الفاظ د

**الجواب:** واضحه دې وی چه اول دا الفاظ.. طلاقه به ئې ساتم.. الفاظ د طلاق نه دي اودویم که چرته دا خبره اومنلې شی نو طلاق رجعی دې په کوم کښې چه صرف رجوع کافی ده اوتجدید د نکاح ته ضرورت نشته پس داخرڅونکې که چرته زیات رقم و اخلې نو هغه رجوع کولې شی﴿۱﴾ اوکه چرته ددی بیع اقاله اوکړی او غوئی واپس واخلی اوددې نه پس دوباره عقد وکړی نو دیکښې څه حرج نه راځی﴿۲﴾ ـوهوالموفق

## په نکاح نامه کښې د طلاق د تعلیق د شرط د ثبوت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه زرخیز په وخت دو اده کښې دا شرط دخپلې ښځې په فارم نکاح کښې لیکلی ووچه ناجائز تکلیف

﴿۱﴾قال العلامة القهستانی: وصریحه ما استعمل فیه دون غیره مثل انت طالق ومطلقة وطلقتک...... ویقع به ای بمثل ما ذکر طلقة رجعیة لا یحتاج الی تجدید النکاح ولا رضاء المرأة الخ. (جامع الرموز ۱: ۵۵۸ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: اعلم ان التعلیق یبطل بزوال الحل لا بزوال الملک...... وبفوت محل البر کان کلمت فلانا او دخلت هذه الدار فمات او جعلت بستانا کما بسطناه فیما علقناه. قال ابن عابدین: (قوله وبفوت محل البر) نقله فی البحر عن الثانی لکن بلفظ ومما یبطله فوت محل الشرط کفوت محل الجزاء کما اذا قال ان کلمت فلانا الخ والتمثیل المذکور لفوات محل الشرط فان الشرط هو کلمت ودخلت ای مضمونهما وهو الکلام والدخول ومحلهما هو فلان والدار المشار الیها وفوت محل الجزاء کموت المرأة التی هی محل الطلاق فان بفوت هذین المحلین یبطل التعلیق لان التعلیق لا بد ان یکون علی امر علی خطر الوجود وقد تحقق عدمه ولا یقال یمکن حیاة زید بعد موته واعادة البستان دارا لان یمینه انعقدت علی حیاة کانت فیه کما قالوا فی لیقتلن فلانا وما اعید بعد البناء دار اخریٰ غیر المشار الیها کما صرحوا به ایضا فی لایدخل هذه الدار تامل.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۳۹، ۵۴۰ قبیل مطلب فی مسئلة الکوز)



ورکړم کور نه ئې اوباسم یائی مورپلار کره اولیږم نو دا ښځه مذکوره په ما باندې مثلثه طلاقه شرعا ګرځیږی وروسته دواده نه دوه میاشتې پس زرخیز خپله ښځه واپس دپلار په کور کښې شپږو کالو نه پریخودلې ده او کوندې مور اودیتیمانانو بچوسره خرچه کوی اوزرخیزمذکور نه خرچه ورکوی اونه ئې کورته راولی نو آیا په موجب د شرط مذکورطلاق کیږی؟ بلکه ددی خبرې ګواه هم موجود دې اوشرط مذکورپه نکاح فارم خانه نمبر ۱۷ کښې هم موجوددی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد اکبر مولیاکوهاله مری.....۱۹۲۹ء۱۵۱۰۲

**الجواب:** که چرته دا شرط نکاح د(ایجاب اوقبول) کولو نه پس لیکلې شوې وې نو دا ښځه په خاوند باندې مطلقه مغلظه شویده او که چرته دنکاح نه مخکښې لیکلې شوې وی نو دنکاح طرفته اشاره نه کولو سره لغوه دې او ښځه مطلقه نه ده﴿۱﴾ وهوالموفق

## خربوزه راوړلو باندې طلاق معلق اووائی. د خټکی راوړلو څه حکم دې؟ او ددینه د وتلو حیله

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی ښځې ته اووئیل که چرته ما دو باره خربوزه کور ته راوړله نو ته په ماباندی طلاقه ئې داسې ئې درې ځلې اووئیل که چرته دا کس دخربوزی په ځائې خټکې کورته راوړی ددې څه حکم دې؟ ځکه چه خربوزه اوخټکی کښې فرق دې ایا ستاسو په نزد په خربوزه او خټکی کښې فرق شته اوکه نه؟ چه په دې باندې

﴿۱﴾ وفی الهندیة: واذا اضاف الطلاق الی النکاح وقع عقیب النکاح...... واذا اضافه الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق ولا تصح اضافة الطلاق الا ان یکون الحالف مالکا او یضیفه الی ملک والاضافة الی سبب الملک کالتزوج کالاضافة الی الملک فان قال لاجنبیة ان دخلت الدار فانت طالق ثم نکحها فدخلت الدار لم تطلق کذا فی الکافی.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان واذا وغیرهما)

حکم مرتب شی اوس دا کس څه حیله اختیار کړی چه ددې یمین د طلاق نه بری شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: دولت خان نریاب......۱۹۷۸ء ۱۱۱۹۱

**جواب**: که چرته ددې کس ده درې ځل مکررو ئیلو سره ددرې طلاقو تعلیق مراد وی. تاکیدئی مراد نه وی نو د خربوزی د راوړلو په وخت په ده باندې ښځه مطلقه مغلظه کیږی. کمافی شرح التنویر: لوقال ان دخلت الدار فانت طالق ان دخلت الدار فانت طالق ان دخلت الدار فانت طالق وقع الثلث، وفی ردالمحتار ۲: ۷۰۹ والظاهر انه ان نوی التاکید دین«۱» باقی داچه خربوزه او ختکئ یو دا دی او که بیل بیل؟ په دیکښې ستاسو عرف معتبر دې. کما فی ردالمحتار ۳: ۷۲ (قوله وعندنا علی العرف) لان المتکلم انما یتکلم بالکلام العرفی«۲» او ددریو طلاقو دواقع کیدلو په صورت کښې مخرج او تدبیر دادې چه دا سړې دې ښځې ته یو طلاق (بائن) ورکړی. او د عدت تیریدو نه پس دې کورته دې خربوزه راوړی او بیا دې تجدید د نکاح وکړی. کما فی الدرالمختار ۲: ۶۹۰ فحیلة من علق الثلث بدخول الدار ان یطلقها واحدة ثم بعد العدة تدخلها فتنحل الیمین فینکحها، فلیراجع«۳» وهو الموفق

## دچا سره د خبرو نه کولو طلاق باندې د قسم په صورت کښې دخبرې تعین د عرف نه کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید عمرو ته اوئیل که چرته ماتا سره خبرې وکړې نو په ما باندې خپله ښځه په دریو کانړو باندې

«۱» (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۵۹ بعید مطلب فیما لوتعدد الاستثناء)

«۲» (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۸ مطلب الایمان مبنیة علی العرف)

«۳» (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۴۵ قبیل مطلب اختلاف الزوجین فی وجود الشرط)



طلاقه ده اوس که چرته زید عمرو ته بغیر دارادی نه اواز اوکړو یا ئې د شپې په تیاره کښې خبرې وکړی لیکن ذید ته علم نه وو چه دا عمرو دې یا په غټ جماعت باندې عمرو سلام وکړو ذید هم ناست وو- هغه اوو ئیل وعلیکم السلام نو ایا طلاق واقع شو؟ ایا ددی طلاق ثلاثه نه دبچ کیدو څه حیله شته؟ یا دا رنګې زید او عمرو دواړو چائې روټئ پخول زید یوه ورځ غصه شو اووې وئیل که چرته څوک شرکت کوی نو هغه به غټ طلاقی وی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اقبال حسین بی اید نوشهره......۱۹۸۸ء ۱۱۱۲۱

**الجواب**: دخبرو کولو او نه کولو متعلق تعین دعرف نه کیږی«۱» پس کومو الفاظو ته چه عرف کښې خبرې کول وئیلې شی نو هغې سره طلاق ثلاثه واقع کیږی«۲» برابره خبره ده که په ارادې سره وی یا بغیر ارادې سره وی چه په هغې کښې باقاعده حلاله کول ضروری دی«۳»- لیکن که چرته زید ښځې ته یو طلاق بائن ورکړی او دعدت تیریدو نه پس عمرو سره خبرې وکړی او ددې نه پس تجدید نکاح وکړی ددې تجدید نه پس ائنده د پاره هر قسمه خبرې به ضرر رسان نه وی«۴» همدا رنګې کوم کارونو ته چه عرف کښې ......

«۱» قال العلامة ابن عابدین: (قوله وعندنا علی العرف) لان المتکلم انما یتکلم بالکلام العرفی اعنی الالفاظ التی یراد بها معانیها التی وضعت لها فی العرف کما ان العربی حال کونه بین اهل اللغة انما یتکلم بالحقائق اللغویة فوجب صرف الفاظ المتکلم الی ما عهد انه المراد بها فتح. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۸ مطلب الایمان مبنیة علی العرف)

«۲» قال العلامة المرغینانی: واذا اضافه (ای الطلاق) الی شرط وقع عقیب الشرط. (هدایة ۲: ۳۶۴ باب الایمان فی الطلاق)

«۳» قال العلامة الغینمی المیدانی: واذا کان الطلاق ثلاثا فی الحرة...... ولو قبل الدخول لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ای یطأها ثم یطلقها او یموت عنها وتنقضی عدتها منه. (اللباب فی شرح الکتاب ۲: ۱۸۳ کتاب الرجعة)

«۴» وفی الهندیة: اذا حلف بثلاث تطلیقات ان لایکلم فلانا فالسبیل ان یطلقها واحدة بائنة ویدعها حتی تنقضی عدتها ثم یکلم فلانا ثم یتزوجها کذا فی السراجیة. (فتاویٰ عالمگیریة ۶: ۳۹۷ کتاب الحیل الفصل السابع فی الطلاق)

شرکت وئیلې شی﴿۱﴾ نو هغه موجب دطلاق رجعی ګرځی کوم کښې چه زبانی واپسی(رجوع)کافی ده﴿۲﴾ وهوالموفق

## "که چرته ته ناراضه ئې نو داطلاق نامه واخله الخ"

## تعلیق دطلاق دې نه چه تحقیق د طلاق

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی واده وکړو یو هفته پس ئې کاغذ باندې طلاق نامه ولیکله الفاظ صرف داؤو چه که چرته ته ناراضه ئې نوخپلو طرفه دا دطلاق نامې پرچه واخله. ښځه په دې کاغذ باندې پریشانه شوه،ده کاغذ واپس واخستلو اوکاغذ ئې اوشلؤلو ده په خوله باندې طلاق نه وه وئیلې اوس ددی سړی دوه ځامن اویوه لورهم ده آیا طلاق واقع شویدې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل محمود دهوبیان صوابی.........۱۲۸رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په ظاهره باندې ددې لیکلو نه مقصود تعلیق دې تحقیق دطلاق نه دې﴿۳﴾ لهذا په دې لیکلو سره طلاق نه واقع کیږی.لعدم وجود الشرط وهو عدم رضا ها بالزوجیة﴿٤﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (تخریج سابق الایمان مبنیة علی العرف)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک او لم ترض.

(هدایة ۲: ۳۷۳ باب الرجعة)

﴿۳﴾یدل علیه ما فی الهندیة: واذا کتب الطلاق واستثنی بلسانه او طلق بلسانه واستثنی بالکتابة هل یصح لا روایة لهذه المسئلة وینبغی ان یصح کذا فی الظهیریة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۸ الفصل السادس فی الطلاق بالکتابة)

﴿۴﴾ قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلی: فاذا علق الطلاق بشرط وقع عقیبه وانحلت الیمین وانتهت الافی کلما.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۸۲ والفاظ الشرط فصل کنایات الطلاق)



## ټول اهل شهر ته طلاق معلق اچول اوپه ټول اهل شهر باندې د وقوع یا عدم وقوع مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه دوه شهرونه بصره او کوفه دی ددواړو په مینځ کښې عداوت او اختلاف پیداشو تردې پورې چه د اهل بصری نه یو سړې پاسیدواو ټولې اهل بصری ته ئې اووئیل چه که چرته ما په خپله یا اهل بصره والو ددې اهل کوفی والوسره تلل راتلل وکړل یا ئې ورسره غم اوښادې کښې شرکت وکړلو نو په ما باندې به خپله ښځه طلاق ثلثه وی او په ټولې اهل بصره باندې به هم طلاق ثلاثه وی.دې نه پس اهل کوفې والا دهغوی نه معافی وغوښته. اوپه خپلو مرو کښې رسئې واچولې اوپه خوله کښې ئې ګیاونیوله او د معافې درخواست ئې اوکړو اوس بعض خلقوهغوئ سره تعلقات قائم کړیدی نو ایا په دوی باندې ښځې طلاقې کیږی؟ همدغه رنګې داهم عرض دې چه د اهل بصره والوزمکه کومه چه جغرافیائی لحاظ سره د اهل بصره والو ملکیت دې یعنی اخوا دیخوا کوم چه یویودوه دوه مکانات دی داهم په اهل بصره کښې داخل دی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانامنهاج الدین مدرس دارالعلوم عربیه ګجرات مردان۱۹۷۴ء۶۱۲۱۴

**جواب:** که چرته دې بصرې سړی سره دیمین بالتعلیق(یعنې که چرته داهل بصره والو نه کوم یو سړی داهل کوفه والو سره په غم یا ښادې شرکت وکړو نو په هغه باندې ښځه مطلقه مغلظه شوه) په وخت نوروااهلیان د بصری والو ددی سړې تائیدکړې وې نو ددې نه پس شرکت کونکی باندې ښځه مطلقه مغلظه شوه څوک چه هم وی اوکه چرته دی اهلیانو یعنی ټولو یابعض سکوت کړې وی نو ددې سکوت کونکو په شرکت باندې طلاق نه واقع کیږی،

ونظیره ما فی الدرالمختارورد االمختار :جماعة یتحدثون فی مجلس فقال رجل منهم من تکلم بعد هذا فامراته طالق ثم تکلم الحالف طلقت امراته قال العلامة الشامی :سکت عما اذا تکلم غیره والظاهر انه لایقع لان تعلیق المتکلم لایسری فی حکمه الی غیره الا اذا قال الغیر وانا کذلک(۲: ٦۳۵ قبیل الکنایات﴿۱﴾ داهل بصره کیدلو او نه کیدلودارو مداربه په عرف باندې وی،

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۰۱ قبیل باب الکنایات)

للاصل المشهور :العادة محكمة﴿۱﴾ قلت :ولو قال الحالف ان شارک احد من اهل البصرة فنساء جميع اهل البصرة مطلقة طلقت امراة الحالف عند وجود الشرط وکذا نساء سائر اهل البصرة لو يسکتو افافهم.وهوالموفق

## راضی نامه نه کولو باندې طلاق وئیل بیا بل ځا راضې نامه وکړه

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه ځمامشرځوئ خپله ښځه اووهله ښځه پلار اوورونو کره لاړه اوهغوې ئی راوپرول ځماپه کشر ځوئ اوما باندې کورته راغلل اوپه مونږ باندئې حمله وکړه عام خلق په مینځ کښې راغلل اوخلاصې ئې اوکړو.لګ وخت پس دوئې ځمونګ دکریانې دوکان ته لاړل ځمامشر ځوئې یواځی بیاموندلوپه چاقوئې لس ګزاره اووهلو اوهغه بیهوشه شر ماهغه هسپتال ته یوړواوپه دوې باندې مې فوجداری مقدمه دفعه ۳۰۷ درج کړه.پولیس والومانه په ذریعه دقسم وعده واخسته چه د مقدمې مکمل کیدونه پس ددوئی سره راضې نامه نه کوې نومااووئیل چه په مابانډې دې ښځه طلاقه وی که چرته مادوئې سره راضې نامه وکړه، کله چه مې مشرځوئ جوړ شوکورته راغلو نو هغه دخپلې ښځې سره ددی ده پلارپه کور ملاقاتونه شروع کړل. ماهغه پوهه کړوچه ته دې ښځې ته طلاق ورکړه نو هغه اووئیل چه څه خپله ښځه دصدرایوب په وینا باندې هم نه طلاقه کوم نه څوک ئ؟ دلته فریق مخالف دکلی دټولو مشران په ذریعه باندې دصلح کوششونه شروع کړی. خلاصه داده چه دې مشر ځوئ راضی نامه ولیکله.حلانکه ځمادناراضګې باوجود هغه په خپله مدعی جوړ شولو اوپه راضی نامه کښې ئي کوشش اوکړوچه خپله ښځه واپس کورته راولی ددې نه پس فریق مخالف بلکه په خپله ځماځوی ماسره سخت بغض لری ځکه چه هغه دخپلې ښځې اوسخرخبره وحې ګنړی اوس ددې قسم راضې نامې سره ځما دقسم به څه جوړیګی ایا ځما ښځه طلاقه شوه؟ بینوا توجرو

المستفتی: دوست محمدسول بازار کیمل پوره..... ۱۹۷۰ء۱۰۱۱۱

---

﴿۱﴾ (الاشباه والنظائر ۹۳ القاعدة السادسة) و (شرح المجلة للآتاسی ۱:۷۸ المادة: ۳۶)



**الجواب:** چونکه تاراضې نامه نه ده کړې اونه په دې خوشاله ئې لهذا په تاباندې ښځه نه ده طلاقه شوې﴿۱﴾ اوکه چرته تا کله راضې نامه وکړله نو په تا باندې به ښځه په یوطلاق رجعی سره مطلقه اوګرځی﴿۲﴾ چه دهغې حکم اسان دې یعنې ته ښځې ته رجوع کولې شی په عدت کښې دننه.اوکه چرته په عدت کښې دننه تازبانی یاعملی رجوع ونه کړله نوپه تاباندې صرف تجدید نکاح کول دی﴿۳﴾-وهوالموفق

## د طلاق ثلاثه د معنٰی نه د ناخبره سړی د معلق طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوڅوکسان دڅه معاهدې دپخولو په خاطردطلاق ثلاثه قسم اوکړی اووروسته د نورو معاهدو نه دطلاق ثلاثه لفظ لرې کړی اوددې نه پس ددوئ نه څه کسان ددې معاهدی نه مخالفت اوکړی اوبعض داغذرپیش کړې چه مونږ د طلاق ثلاثه دمعنی نه ناخبره ؤوددې متعلق شرعې حکم څه دې؟بینواتوجرو

المستفتی: نامعلوم.......۱۹۸۸ء۱۲۱۱۲۷

**الجواب:** کوموکسانوچه په معاهده اوله باندې دستخط کړي وی نو په هغوې باندې طلاق ثلاثه عائد اونافذ دې﴿۴﴾اګرچه دې کسانو دمعاهدې اولنی نه

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: ان لم تجیئ بفلان او ان لم تردی ثوبی الساعة فانت طالق فجاء فلان من جانب آخر بنفسه واخذ الثوب قبل دفعها لا یحنث. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۶۲ بعید مطلب لا یدع فلانا یسکن فی هذه الدار)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: وتنحل الیمین بعد وجود الشرط مطلقا.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۴۴ مطلب زوال الملک لا یبطل الیمین)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک او لم ترض. (هدایة ۲:۳۷۳ باب الرجعة)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: واذا اضافه (ای الطلاق) الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)

د معنی د واپسئ نیت کړي وی، او په دوئي کښې که چرته څوک د طلاق ثلاثه نه ناخبره ؤ ونو په هغوی باندی دري طلاقه نه نافذ کیږی نه صرف یو طلاق رجعی پرې عائد کیږی، یدل علیه ما فی فتح القدیر ٤:٤ باب ایقاع الطلاق: ولا بدمن القصد بالخطاب بلفظ الطلاق عالما بمعناه....ولو قال لقوم تعلمت ذکرا بالفارسیة فقولوه معی فقال زن من بسه طلاق، فقالوه لم یحکم علیهم بالحرمة﴿۱﴾ وفی شرح التنویر علی ردالمحتار ۳: ۲٤۱ کتاب الطلاق :اوتلفظ به غیر عالم بمعناه ای یقع فی القضاء دون مابینه وبین الله تعالی﴿۲﴾ البته کومو کسانو چه صرف د دویمې معاهدې دستخط کړي وی نو په دوئ باندې څه طلاق نه واقع کیږی. وهوالموفق

## د یمین طلاق باوجود د دروغو گواهی ورکړی، کښې د طلاق حکم.

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی درې طلاقه اووئیل او دې باوجودئې د دروغو گواهی ورکړه، ایا دده ښځه مطلقه مغلظه کیږی؟ ددې باوجود هم دا د خپلې ښځې سره اباددې، ایا دا سړې مسلمانانو سره د جنازی مونځ وغیره کښې شرکت کولې شی یا مسلمانانو ته دده نه بچ کیدل پکاردی ځکه چه مذکوره سړې باقاعده د گواهانو په مخکښې درې طلاقه اووئیل او د دروغو گواهی ورکړیده؟ بینوا توجرو

المستفتی: غلام رضاء کیمل پور.......۱۹۷۵ء۱۶۱۹

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې کس ښځه مطلقه مغلظه شویده، للاصل

﴿۱﴾ (فتح القدیر ۳: ۳۵۱، ۳۵۲ باب ایقاع الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: او تلفظ به غیر عالم بمعناه، قال ابن عابدین: کما لو قالت لزوجها اقرأ علی اعتدی انت طالق ثلاثا ففعل طلقت ثلاثا فی القضاء لا فیما بینه وبین الله تعالیٰ اذا لم یعلم الزوج ولم ینو بحر عن الخلاصة.

(الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۱ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)



المشهوران المعلق بالشرط یجب ثبوته عندثبوت الشرط، شرح المجلة ٥٤﴿۱﴾ دداسې بې دینه سره ترک موالات ضروري دي تردې چه توبه گار شی﴿۲﴾-وهوالموفق

## که چرته ښځې خما د خبرې جواب راکړو نو درې شرطونو باندې طلاقه ده..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید د خپل مور پلار، او خور ورونو اود سخر په مخکښې اووئیل چه ځما ښځه که چرته ځما د خبرې جواب راکړی نو په مابانده په درې شرطونو طلاقه ده او څه به داداسې اووهم چه ددې مور به ئې ډډې په ډډې اوگوری. څه ورځې پس د زید ښځې هغه ته د څه خبرې جواب ورکړو چونکه زید خپله ښځه داسې اووهله چه د هغې پښتې ماتې شوی ایا طلاق واقع شواو که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی محمد ابراهیم واه کینټ راوالپنډی......۱۹۷۵ء۱۵۱۳

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې سړی زید باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده، کما فی شرح المجلة :المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط(٥٤) ﴿۳﴾. وهوالموفق

## که چرته په ما باندې دفلانکی سړی د قرضې رقم ورکول وی نو په ما باندې ښځه په دریو شرطونو طلاقه ده ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه مسمیٰ افسر قرضدار ؤو

﴿۱﴾ (شرح المجلة للآتاسی ۱: ۲۳۲ مادة: ۸۲)

﴿۲﴾ قال العلامة الطرابلسی: والتعزیر لا یختص بفعل معین ولا قول معین فقد عزر رسول الله ﷺ بالهجر وذلک فی حق الثلاثة الذین ذکرهم الله تعالیٰ فی القرآن العظیم فهجروا خمسین یوما لا یکلمهم احد بهم وقصتهم مشهورة فی الصحاح وعزر رسول الله ﷺ بالنفی فامر باخراج المخنثین من المدینة ونفاهم وکذلک الصحابة من بعده.

(معین الحکام ۱۹۴ فصل فی التعزیر)

﴿۳﴾ (شرح المجلة لسلیم رستم باز ۱: ۵۴ مادة: ۸۲)

اوډیره موده پس انکاری شو. تهانړه کښې رپورټ درج کړو. هلته داقرارنه پس بیا انکاری شو بالاخر بیا تهانیداره پورې خبره ورسیده. تهانیدارده ته اووئیل چه ته په قران قسم اوخوره ده اووئیل چه زه طلاق کوم اووئې وئیل چه په ماداکرم (دائن) هیڅ رقم وغیره قرضه ورکول نشته که چرته په مابانده قرضه وی نوپه ماباندې خپله ښځه په دریو شرطونو طلاقه ده. یوځل بیا کاڼړی واخستل اواوئی وئیل دویم ځل ئی بیا اوئیل. بیاتهانیدار هغه ته اووئیل چه دښځې نوم واخله اوطلاقه ئې کړه. هغه دښځې نوم واخستلودری طلاقه ئې ورکړل. ددې شرعې حکم څه دې لیکن اوسه پورې هغه ښځه نه ده جدا کړې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نعیم حقانی اټک........ ۱۹۸۵ء۱۳۱۱۳

**جواب:** که چرته مسمٰی افسر ښتونې نه وی یعنې په ده باندې داکرم رقم وغیره وی نوپه ده باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده ﴿۱﴾ ټول بااثرحکام اوعوامو باندې ضروری ده چه یاپه ده باندی حلاله وکړی یاښځه دده نه جدا کړی ﴿۲﴾- وهوالموفق

**خپله خورکه فلانی ته واده کړی نوخپله ښځه به مثلثه طلاقه وی.. ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې یوسړی اوئیلی چه که

﴿۱﴾ قال العلامة الحداد الیمنی: (قوله واذا اضاف الی شرط وقع عقیب الشرط مثل ان یقول ان دخلت الدار فانت طالق) هذا بالاتفاق لان الملک قائم فی الحال والظاهر بقاؤه الی وقت الشرط ولانه اذا علقه بالشرط صار عند وجود الشرط کالمتکلم بالطلاق فی ذلک الوقت. (الجوهرة النیرة ۲:۱۱۰ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا بد من سترة بینهما فی البائن لئلا یختلی بالاجنبیة ومفاده ان الحائل یمنع الخلوة المحرمة. قال ابن عابدین: ای مفاد التعلیل ان الحائل یمنع الخلوة المحرمة ویمکن ان یقال فی الاجنبیة کذلک وان لم تکن معتدته الا ان یوجد نقل بخلافه بحر. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲:٦۷۵ قبیل فصل فی ثبوت النسب)



چرته ماخپله خورمسمٰی فلانی ته واده کړله نوپه ماباندې دې خپله ښځه مثلثه طلاقه وی. تقریبادوه میاشتې پس ده خپله خور هغه سړې ته واده کړله او ورئې کړله. په دې کارباندې درې ځلور ګواهان موجوددی اوس دې سړی ته شریعت کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عزیزالرحمٰن کوهاله براه کوه مری

**الجواب:** که معامله هم دغومره وی اوکمې زیاتې په دې کښې نه وی نوپه دې سړی باندې خپله ښځه مطلقه مغلظه شوې ده ﴿۱﴾ دتحلیل نه بغیر لاره نشته. اوکه دهٔ دا وادهٔ اصالةً یا وکالةً نه وی کړې، نوبیا طلاق نه دې واقع شوې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

**که فلانی ته د لوررشته ورکړم نوزمابنځه به په ما باندې مطلقه مغلظه وی**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه مسمّٰی سیدعلی دخپلې لور مسمّاة زرینه بالغې رشته غلام اسلم ته په عام اجلاس کښې ایجاب وقبول اوکړو ددې نه پس ئې هم دغه رشته بل ځائې کښې ګل اکبر ته ورکړله او څه موده پس دخبرې نه واؤریدهٔ اووې وئیل چه کهٔ زهٔ ګل اکبر ته رشته ورکړم نو زما ښځه به په ما باندې مطلقه مغلظه وی. ددې باوجود دهٔ ګل اکبر ته رشته ورکړله، اوس د طلاق واقع کیدلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحمان شاهین بکهړپو کوهاله مری.... ۱۹۷۲ء۱٤۱۳

**الجواب:** بشرط صدق مستفتی په دې کس سیدعلی باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده، لوجود.........

﴿۱﴾ قال العلامة الخالد الآتاسی: المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط. (شرح المجلة ۱:۲۳۲ مادة: ۸۲)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: حلف لا یزوج عبده او امته یحنث بالتوکیل والاجازة لان ذلک مضاف الیه متوقف علی ارادته لملکه وولایته وکذا فی ابنه وبنته الصغیرین لو لایته علیهما. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳:۱۲۹ مطلب حلف لا یزوج عبده کتاب الایمان)

الشرط﴿۱﴾.وهوالموفق

## .. که چرته څپله لور بل ځائې کښې ورکړم نو په ما باندې څپله ښځه په درې شرطونو طلاقه ده..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې په باره کښې چه یو سړی د خپلې بالغې لور نکاح دلورداختیارنه بغیروکړی اوباقاعده ایجاب اوقبول اوشی کله چه جینې خبره شوه کورکښې کېړې وغیره شلوی اودنکاح چه واوریدل ژاړی بیاده هلک دطرفه بارباراوقارخلق په جرګه کښې دواده دپاره راځي لګه موده پس جینۍ انکارکوی ددې نه پس ددې پلاراووئیل که چرته دا جینۍ څه دویم ځائې کښې ورکړم نوپه ماباندې خپله ښځه په درې شرطونو طلاقه ده، اوس که چرته داسړې داولې نکاح دنه کیدوپه وجه داجینۍ دویم ځائې کښې ورکړی یابل کس ته اووائې چه ځمادلور نکاح بل ځائې وکړه نو آیا په مذکوره والدباندې ښځه طلاقه شوه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدطیب غرشین اټک......۱۱\رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دامخکښې نکاح فاسداوکالعدم ده. کما فی الهندیه ۱:۲۸۷ ولا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحةالعقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکرا کانــت او ثیبا فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذا فی السراج الوهاج﴿۲﴾ اوپه دویم عقدکښې پلار مشوره ورکولې شی لیکن په خپله ایجاب اوقبول نشی کولې جینۍ اودجینۍ وروریاماما وغیره ایجاب اوقبول کولې شی دجینۍ په اجازت باندې ﴿۳﴾-وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: واذا اضافه (ای الطلاق) الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾ قال العلامة الشامی: (قوله ولا الانکاح) ای التزویج...(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## .که ما دې سره نکاح وکړه نو په دې درې طلاقه دی..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی ګواهانوته مخامخ اووئیل که ما دخپلې کویژدن شوې فلانې سره نکاح وکړه نوځما د طرفنه په دې باندې درې طلاقه دې بیائې نکاح دهغې سره وکړه. ایاپه ده باندې درې طلاقه واقع کیږې اوکه نه؟طلاق ورکونکې په خپله اقرار نه کوې البته دا الفاظ ئې دګواهانو په مخامخ وئیلې دی؟بینوا توجروا

المستفتی: حافظ عبدالخالق چودهواډی آئ خان......۱۹۷۲ء۱۷\۱\۲۰

**الجواب:** بشرط صدق مستفتی په دې سړې باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده، لیکن بشرطیکه دایمین باقاعده فسخ شوې نه وی﴿۱﴾ اوبشرطیکه دې سړې دقبول بالفعل حیله نه وې کړې﴿۲﴾ فی الدرالمختار :وتنحل الیمین بعد وجودالشرط مطلقا لکن ان وجدفی الملک طلقت الخ،هـامش ردالمحتار ۲: ۶۹۰﴿۳﴾.وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) فلا یحنث به الا بمباشرته وهذا فی الولد الکبیر او الاجنبی لما فی المختار وشرحه حلف لا یزوج عبده او امته یحنث بالتوکیل والاجازة لان ذلک مضاف الیه متوقف علی ارادته لملکه وولایته، وکذا فی ابنه وبنته الصغیرین لولایته علیهما وفی الکبیرین لا یحنث الا بالمباشرة لعدم ولایته علیهما فهو کالاجنبی عنهما فیتعلق بحقیقة الفعل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۱۲۹ مطلب حلف لا یزوج عبده)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولوقال کل امرأة اتزوجها فهی طالق فتزوج فاذا حکما شافعیا فحکم ببطلان الیمین صح. (الاشباه والنظائر ۳۹۹ الفن الخامس الحیل الفصل السابع فی الطلاق)

ومثله فی الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۵۳۸ مطلب فی فسخ الیمین المضافة الی الملک)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ای اذا قال کل امرأة اتزوجها طالق والحیلة فیه ما فی البحر من انه یزوجه فضولی ویجیز بالفعل کسوق الواجب الیها الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۳۷ باب التعلیق)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۴۲ باب التعلیق)

## که د ښځې په ژوندون کښې مې دویم واده وکړو نو هغه دویمه ښځه به طلاقه وی..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی خپلې ښځې ته دا لیکل ورکړل چه که چرته دا ددې ښځې په ژوندون کښې دویم واده کوی نو هغه دویمه ښځه به په ده باندې طلاقه وی. څه زمانه پس ده دویم واده وکړو نو ایا دا دویمه ښځه اوس په ده باندې طلاقه کیږی او که نه؟ د طلاق واقع کیدو په صورت کښې که چرته دا بیا دا ښځه ښځه جوړوې نو ددې څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالنبی جامعه مدنیه کیمپل پوره...... ۸۱۱۲۱،۱۹۷۴

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دوجودالشرط په وجه باندې دا دویمه ښځه مطلقه شویده﴿۱﴾ په ظاهره تجدید د نکاح کافې دې. بشرطیکه د واده نه پس دخاوند په کور کښې دوباره نکاح نه وې کړې شوې ګینې تجدید د نکاح ته هم ضرورت نشته﴿۲﴾- وهوالموفق

---

﴿۱﴾ **وفی الهندیة: اذا اضاف الطلاق الی النکاح وقع عقیب النکاح نحو ان یقول لامرأة ان تزوجتک فانت طالق او کل امرأة اتزوجها فهی طالق.**

**(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان واذا)**

﴿۲﴾ چونکه دلته اضافت د طلاق تزویج او نکاح طرف ته دې لهٰذا نکاح کیدو سره به طلاق واقع کیږی او دا طلاق به قبل الدخول وی او په مذکوره صورت کښې تفریق د طلاق په وجه یو طلاق بائن واقع کیږی

**کما فی الهندیة: فان فرق الطلاق بانت بالاولیٰ ولم تقع الثانیة والثالثة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۳ الفصل الرابع فی الطلاق قبل الدخول)**

چه په دې کښې تجدید د نکاح کافی کیږی

**کما فی الهندیة: اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یزوجها فی العدة وبعد انقضائها.**

**(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۷۲ فصل فیما تحل به المطلة وما یتصل به)**

او زمونږ په بعضې علاقو کښې دا رواج دې چه د کوېژدن په ورځ د جینۍ د مور پلار په کور نکاح کولې شی بیا د وادهٔ نه پس دخاوند په کور دوباره نکاح کولې شی پس که دا دوباره نکاح شوې وی نو دا به د نکاح د تجدید قائم مقام وی د تجدید ضرورت به نه وی وهوالموفق (از مرتب)



## د ښځې په موجودګئ کښې دویم واده کولو باندې د طلاق معلق تفصیلی مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید مشکوک کس ؤو ددې وجې نه د واده په وخت کښې دده نه دا سې قسم لیکل اخستې ؤو لیکل دا لاندې دی:

"زه د فلانې په موجودګې کښې به دویم واده نه کوم. البته په صورت د نه کیدو د اولاد په رضامندې د پلار او یا ورور او یا زوجه ام. نکاح ثانی یعنی دویم واده به کوی. که چرته د پاس صورت نه بغیر دویم واده وکړم نو نور څو مره ودونه چه وکړم نو په ما باندې به طلاق ثلاثه واقع وی، او شرعې طور باندې په ما باندې به حرامه وی، زیاة لیکل کؤم چه کله هم دویم واده کؤم نو هغه په ما باندې په روئې د شرعې حرامه وی،،-

نو ایا که زید خپلې اولنې ښځه طلاقه کړی دویم واده کولې شی که نه دده دویم واده په مطابق د اخری قول (چه کله هم دویم واده الخ) حرام متصور کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیر احمد ایم اے دنده شاه بلال میان والی... ۱۹۷۰ء ۱۳۱۹۱

**الجواب:** په ظاهر د اخری قول چه مراد هم دا دی چه ده مسما فلانې په موجودګئ کښې کله چه هم الخ. لهذا د فلانې د مطلقه کیدو نه پس په دویم واده کښې څه حرج نشته﴿۱﴾ یعنې دویمه ښځه نه مطلقه کیږی د زیاة احتیاط د پاره دې د زید نه استفسار وکړیشی چه د اخری کلام نه ستا څه مراد وو تقید مراد وو او که نه اطلاق دې مراد وو﴿۲﴾ نو د شق ثانی په بناء باندې دا خاوند دویم واده په

---

﴿۱﴾ **وفی الهندیة: واذا اضافه (الطلاق) الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا.**

**(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)**

﴿۲﴾ **وفی الهندیة: ان من قال لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق یتعلق الطلاق بالدخول ولو قال ان دخلت الدار انت طالق یقع الطلاق للحال الا اذا قال عنیت به التعلیق فحینئذ یدین فیما بینه وبین الله تعالیٰ.**

**(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان الخ)**

یو وخت کښې هم نه نښي کولې﴿۱﴾-بینوا توجروا

**که چرته ځماواده دسنت مطابق نه وی نوښځه مې طلاقه ده..ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې که چرته یوکس دا اووائی..که چرته ځماواده دسنت مطابق نه وی نوښځه مې طلاقه ده..که چرته بالفرض دده واده کښې فائرنګ وی یا پالنګ باندې یانشانه ویشتل یاډهول وغیره.نوددې په باره کښې څه حکم کیږی؟بینوا توجروا

المستفتی: زبیرجان افریدی........۱۲۱۱۲۱ء۱۹۹۰

**الجواب:** که چرته دې سړې دنیت اضافت کړې وې اونکاح ئی مخکښې دبناء یعنې د واده نه کړې وې نو دده منکوحه باندې یوطلاق واقع کیږی ګینې نه.

**تنبیه:**.........دروطنے که ایجاب وقبول سه بارمکروه کرده مے شوند ،به مرت دوم وسوم نکاح عقدخواهد شد ،فافهم _ وهوالموفق .

**کومې ښځې چه دروازې نه سربهر کړیدې هغې ته درې طلاقه.. کورکښې دوه ښځې وې ددې مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړی کورته راتللو چه دده دوه ښځو نه یوې ددروازې نه سر بهر کړې وو .هغه کورته راغلو او وې وئیل چه کومې یوې سر بهر کړې وه هغې ته درې طلاقه دی.دکوردواړو ښځو د سر بهر کولونه منکرې شوې اوس دې سړې ته ددې ښځوپه حق کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفتی محمد سردار دارالعلوم ټل......۲۹۱۷۱ء۱۹۸۶

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفى: كلما على التزوج نحو كلما تزوجت فانت كذا لدخولها على سبب الملک وهو غير متناه. قال ابن عابدين: (قوله لدخولها على سبب الملک)اى التزوج فكلما وجد هذا الشرط وجد ملک الثلاث فيتبعه جزاؤه بحر. (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ۲:۵۴۳ مطلب المنعقد بكلمة كلما ايمان منعقدة للحال)



**جواب:** که چرته دې کورکښې صرف دادوه ښځې وې نورې ښځې نه وې نو دواړه ښځې په ده باندې حرامې دی مطلقې نه دی﴿۱﴾-وهوالموفق

**یو هلک ته لوراو خور ورکولو باندې ئی د طلاق قسم وکړو بیا هغه ددې باوجود وتختیده.. ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائ علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه د زیدلوراود خالدخور ده، زید اوخالد باندې دلیکلو په طورداشرط ولګؤلوچه که چرته دې جینئ دمرضئې نه حلاف عارف سره نکاح وکړله نو زیداوخالددواړوباندې به ښځې طلاق ثلاثه باندې حرامې وی اوس هغه جینئ عارف سره نکاح باندی کلکه ده اودهغه سره لاړله،نوایاددی جینئ دعارف سره دتللو په وجه زید اوخالدباندې ښځی مطلقې کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی :محمداسرائیل کوه مری راولپنډی......۲۵۱۱۲۱ء۱۹۷۵

**جواب:** که چرته دې پلاراوځوئ دالیکل شوې قسم(طلاق معلق) هزلا یا اکراها کړې وې نو دوې باندې ښځی نه مطلقې کیږی. کمایشیرالیه ما نقله العلامة الشامی عن البحر:فلو اكره على ان يكتب طلاق امراءته فكتب لا تطلق لان الكتابة اقيمت مقام العبارة باعتيار الحاجة(اى حاجة التطليق)ولاحاجةههنا كذا فى الخانية.ردالمحتار ۲: ۵۷۹﴿۲﴾ اوكه چرته په طیب خاطرسره ئې کړې وی نو

﴿۱﴾وفى الهندية: ولو طلق احدى نسائه الاربع ثلاثا ثم اشتبهت وانكرت كل واحدة ان تكون هى المطلقة لا يقرب واحدة منهن لانه حرمت عليه احداهن ويجوز ان تكون كل واحدة وقد قال اصحابنا رحمهم الله تعالیٰ كل ما لا يباح عند الضرورة لا يجوز التحرى فيه والفروج من هذا الباب.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱ :۳۶۴ قبيل الفصل الثانى فى اضافة الطلاق الى الزمان)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ :۴۵۷ مطلب فى الاكراه على التوكيل بالطلاق والنكاح)

مطلقات مغلظات کیږي (ای بشرط الحمل)﴿۱﴾.وهوالموفق

**که چرته خورئي فلان ته په نکاح ورکړه نوطلاق**

**بیا هغه جینئ په خپله دهغه سره لاړله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددي مسئلي باره کښي چه زید اووئیل چه څما پلار که چرته څماخور فلان ته په عقدنکاح ورکړله نو څمابښځه ماباندي طلاقه ده اوس هغه خور په خپله دهغي فلانی سره لاړله اونکاح ئي وکړله، اوس دطلاق څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدروشن کوهاله مری......۱۵جمادی الثانی ۱۳۹۵

**الجواب:** که چرته الفاظ همداوي چه که چرته څماپلاردا جینئ فلان الخ نوطلاق واقع نه دي او که چرته داالفاظ وی چه که چرته د فلان په نکاح کښي راغلله نوالخ نوپه دي صورت کښي یو طلاق رجعي دی﴿۲﴾ پس په عدت کښي دننه زباني واپسی ده.تجدیدد نکاح یاتحلیل ته ضرورت نشته دي﴿۳﴾ بینوا توجروا

---

﴿۱﴾قال العلامة المرغینانی: واذا اضافه الی شرط وقع عقیب الشرط مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق وهذا بالاتفاق لان الملک قائم فی الحال والظاهر بقاؤه الی وقت وجود الشرط.

(هدایة علی صدر فتح القدیر ۳: ۴۴۳ باب الایمان فی الطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة عبد الغنی الغینمی: واذا اضاف الطلاق الی النکاح وقع الطلاق عقیب النکاح...... واذا اضافه ای الطلاق الی وجود شرط وقع عقیب وجود الشرط وذلک مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق وهذا بالاتفاق لان الملک قائم فی الحال والظاهر بقاؤه الی وقت الشرط ویصیر عند وجود الشرط کالمتکلم بالطلاق فی ذلک الوقت.

(اللباب فی شرح الکتاب ۲: ۱۷۴ کتاب الطلاق)

﴿۳﴾قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک اولم ترض. (هدایة ۲: ۳۷۳ باب الرجعة)



**که چرته اته ورځو کښي دننه ستا نه طلاق نامه وانخلم نو څما ښځه په ما باندي طلاقه ده.ددي حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددي مسئلي باره کښي چه وړوکي ورور مشر ورور ته دیو څو کسانو په مخامخ داالفاظ اووئیل چه دخپل ځوئ سره بدګوئی وکړه اوخپل ته داوایه چه که چرته اته ورځوکښی دننه ستانه طلاق نامه وانخلم نوځمابښځه په ما باندي طلاقه ده.اوس دسخردوینامطابق اته ورځي تیري شوي،نواوس دده دوینانه به څه جوړیګی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرحمان سوارګلی........۱۹۷۵ء۱۲۱۴۱

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دي سخرباندی ښځه طلاق رجعی سره طلاقه شویده﴿۱﴾ په کوم کښي چه زباني مراجعت کافي ده،دتجدیدنکاح ضرورت نشته﴿۲﴾-وهوالموفق

**که ګیره مي پرې نه خودله مونځ روژه مي ونه ساتله نو څما نکاح به باطله اوفسخ وی.دخلاف ورزي حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددي مسئلي باره کښي چه زیددخپلي لورچه د هغي عمر دوه یادری کاله وو بکر سره نکاح کړله دنکاح نه مخکښي ئي د زید نه اقراروا خستلوتحریری اوزباني په دي شرط چه که چرته مطابق دشرعي ئي ګیره پري نه خودله نوځما نکاح به باطله اوفسخ وی،بکر داشرط قبول کړلو،ددي نه پس بکر دخپل اقرار نه واوړیدو نه دروژی اومونځ پابنددي اونه ئي مطابق دشرعي ګیره پریخودله حالانکه منکوحه نوافل اوتهجدهم

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اذا اضافه (الطلاق) الی الشرط وقع عقیب الشرط.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک او لم ترض.

(هدایة ۲: ۳۷۳ باب الرجعة)

نه قضاء کوی، ازروئ شرع ددې اقرار نه پس دبکرنکاح باقی پاتې کیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرؤف قریشی مسکین پورشریف مظفرګړه ۲۵\۱۱\۱۹۶۹ء

**الجواب:** چونکه دالفظ چه ځمانکاح باطله وې یافسخ وې، دکنایاتو نه دي لهذا دشرط دتحقق په وجه باندې په دې سړې باندې ښځه مطلقه کیږې اوتجدید دنکاح به کافې وې. لان الظاهر ارادة الطلاق، فی الدرالمختار: کنایته عندالفقهاء مالم یوضع له واحتمله وغیره﴿۱﴾وفی الهندیه: ولو قال فسحت النکاح ونوی الطلاق یقع(۱: ۴۰۰)﴿۲﴾وفی الدر المختار: وتنحل الیمین بعد وجود الشرط مطلقا لکن ان وجدفی الملک طلقت وعتق والا لا، انتهٰی﴿۳﴾ قلت: هذاتعلیق الطلاق بفعل الزوج ولیس هذا تفویض الطلاق الی الزوجة وایضا لایجری فیه خیارالبلوغ لان العاقدهوالاب. وهوالموفق

## .که چرته ما فلانې سره خبرې وکړې نو ځماښځه طلاقه ده..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید اووئیل چه که چرته څه عمروسره خبرې وکړم نوځما ښځه طلاقه ده، اوس زید عمروسره خبرې کړیدې زید سعودی عرب کښې ده اودهغه ښځه افغانستان کښې ده شرعې لحاظ سره ښځه طلاقیږې اوکه نه؟ زیدارادې سره رجوع هم کړیده دده ښځه طلاقه شوه اوکه نه؟ اوکوم یو طلاق واقع شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عطاء محمد طائف سعودی عرب.......۳۰\۱۱\۱۹۸۵ء

---

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۱ باب الکنایات)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

﴿۳﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۴۴ مطلب زوال الملک لایبطل الیمین)



**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دحانث کیدلو په تقدیرباندې دانښځه یو طلاق رجعی باندې مطلقه شویده﴿۱﴾اوپه دیکښې په عدت کښې دننه دننه زبانې مراجعت کافی کیږی، که چرته په عدت کښې دننه ئې مراجعت اونه کړه نو تجدیددنکاح به ضرورې وې. (قران﴿۲﴾ حدیث ﴿۳﴾ معتبرات فقه)﴿۴﴾ وهوالموفق

## .که دې امام پسې مې مونځ وکړونوځما ښځه طلاقه ده..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه دیوسړې دمحلی د امام سره خفګان پیداشولو اووئی وئیل چه که چرته ماتاپسې مونځ اوکړو نو ځماښځه طلاقه ده، یوځل ئې داوئیل دې اوس ددې څه حل دې ځکه چه په امام پسې مونځ کول هم ضروری دی اوامام خفه کول نه دی پکار؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعیدالرحمٰن رستم مردان...........۱۴۰۱\۴\۲۲ھ

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: واذا اضاف الطلاق الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)

﴿۲﴾قال الله تعالیٰ: الطلاق مرتٰن فامساک بمعروف او تسریح باحسان، فان طلقها فلا جناح علیهما ان یتراجعا ان ظنا ان یقیما حدودا لله. (سورة البقرة آیت: ۲۲۹، ۲۳۰ رکوع:۱۳ پاره:۲)

﴿۳﴾عن رکانة بن عبد یزید انه طلق امرأته سهیمة البتة فاخبر بذلک النبیﷺ وقال والله ما اردت الا واحدة فقال رسول اللهﷺ والله ما اردت الا واحدة فقال رکانة والله ما اردت الا واحدة فردها الیه رسول اللهﷺ فطلقها الثانیة فی زمان عمر والثالثة فی زمان عثمان رواه ابوداؤد والترمذی وابن ماجة والدارمی الا انهم لم یذکروا والثانیة والثالثة.

(مشکواة المصابیح ۲: ۳۰۶ باب الخلع والطلاق)

﴿۴﴾قال العلامة المرغینانی: واذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلک اولم ترض لقوله تعالیٰ فامسکوهن بمعروف من غیر فصل. (هدایة ۲: ۳۷۳ باب الرجعة)

داسې دي چه امام پسې مونځ وکړی اودمونځ کولونه پس دې په

**الجواب:** داسې دي چه ماخپلی ښځې ته مراجعت اوکړو اووائ چه ماخپلی ښځې ته مراجعت اوکړو عدت کښې دننه دننه دالفاظ اوطلاق نه واپس شوم﴿۱﴾قال الله تعالی: الطلاق مرتان فامساک بمعروف اوتسریح باحسان(الایة)﴿۲﴾.وهوالموفق

**ځما د اجازت نه بغير که چرته ته د مور**
**پلار کور ته لاړلې نو درې طلاقه دې**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړی خپلې ښځې ته اووئیل چه که چرته ته ځمادااجازت نه بغیر دخپل مورپلار کورته لاړلې نو ته په ماباندې په درې طلاقو طلاقه ئې.لیکن یومیاشت پس کله چه داسړې کور کښې موجود نه ؤونودده ښځه دخاونددااجازت نه بغیردخپل مور پلار کورته لاړه،اوس ددې مسئلې څه حکم دې،او ښځه حامله هم ده؟بینوا توجروا

المستفتی: محمدسعیدعباسی..........۱۲۷۱۱۲۱۶۱۹۷۴

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دا ښځه مطلقه مغلظه شویده، لوجود الشرط﴿۳﴾.اوس بغیرد حلالې نه بله څه چاره نشته دې-وهوالموفق

**که په مقرره موده کښې زه واپس نه شوم نو ځما**
**او د منکوحې په مینځ کښې به نکاح فسخ وې**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه زیددبالغې جینئ سره

---

﴿۱﴾قال العلامة السغدی: والفاظ الرجعی عند ابی حنیفة واصحابه اربعة احداها انت طالق وهذا منصوص...... والرجعة نوعان قولیة وفعلیة...... والرجعة القولیه ان یقول راجعتک الخ.

(النتف فی الفتاویٰ ۱:۲۰۵،۲۰۷ الطلاق الرجعی)

﴿۲﴾(سوزة البقرة آیت: ۲۲۹، رکوع:۱۳ پاره:۲)

﴿۳﴾قال العلامة عبد الغنی المیدانی: واذا اضافه ای الطلاق الی وجود شرط وقع عقیب وجود الشرط وذلک مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق وهذا بالاتفاق.

(اللباب فی شرح الکتاب ۲:۱۷۴ کتاب الطلاق)



نکاح وکړه هلک په صوبه سنده حیدرآباد کښې اوسیګی لیکن جینئ کلې کښې والدینوسره ده دجینئ والدینوزوم ته خطونه ولیکل اووئی وئیل چه راشه واده اوکړه، کله چه زیدراغلونو دجینئ دورثاءسره ئې فیصله وکړه چه (۱) مهرمبلغ پنځه زره روپې اداءکوې(۲)یومکان به ابادوی -(۳) اوسیدل به خپل کلې اختیاروی.ددې شرائطودپاره شپږ میاشتې موده مقرره کړې شوه اووئی وئیل چه که چرته مقرره موده کښې ځه واپس نه شوم نو ځما او ځماد منکوحې په مینځ کښې به نکاح فسخ وی،ددې شرطونو لیکل او همدارنګې دګواهانودستخط اودګوتو نشانونه ئې هم ولګول شول.اوس ناکح (زید) دیونیم کال دتکمیل دشرائطو دپاره رانغلواونه دخط اوکتابت جواب ورکوې نوایامذکوره لیکل اوشرائط دنه موجودیدلوپه وجه باندې نکاح فسخ کیږې اوکه نه؟ اخرې دوه شرائط دنکاح نه پس لګولې شوې؟بینوا توجروا

المستفتی: شیرین c/o مولوی محمدعاتق سرخ ډهیری صوابی ۱۹۷۲،۱۴۱۲۳

**الجواب:** په صورت مذکوره کښې په دې سړی باندې ښځه(منکوحه)مطلقه شویده.لان المعلق عندوجودالشرط کالمنجز﴿۱﴾وفی الهندیه۱: ۴۰۰ ولوقال فسخت النکاح ونوی الطلاق یقع﴿۲﴾.وهوالموفق

**"که چرته فلانی کار مې اوکړونو ځما ښځه**
**په سلو کانړو سره طلاقه ده.. طلاق مغلظه ده**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې اووئیل چه که

---

﴿۱﴾قال العلامة القهستانی: والفاظ الشرط ان واذا واذا ما...... ان وجد الشرط مرة فی الملک ینحل الی جزاء ای ینتهی التعلیق الی وقوع الطلاق فیجری مجری النظیر.

(جامع الرموز ۱:۵۳۲ فصل فی التعلیق)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۷۵ الفصل الخامس فی الکنایات)

چرته مافلان کاروکړونو په ما باندې ښځه سلوکانړو سره طلاقه ده، بیا زید هغه کاروکړلو، نوایا په زیدباندې درې طلاقه واقع کیږی اوکه نه یو؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګلزارمقام سیرئے......۱۹۷۵ء۱۹۱۹۱

**الجواب**: ددې سړې ښځه په درې طلاقو باندې مطلقه مغلظه شویده اوباقی لغوه دې، وهوقول الائمة الاربعة ﴿۱﴾ خلافا للطائفة السلفیة النجدیه﴿۲﴾ ولنا

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وذهب جمهور الصحابة والتابعین ومن بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع ثلاث قال فی الفتح بعد سوق الاحادیث الدالة علیه وهذا یعارض ما تقدم واما امضاء عمر الثلاث علیهم مع عدم مخالفة الصحابة له وعلمه بانها کانت واحدة فلا یمکن الا وقد اطلعوا فی الزمان المتأخر علی وجود ناسخ...... واما ثانیا فالعبرة فی نقل الاجماع نقل ما عن المجتهدین والمائة الف لا یبلغ عدة المجتهدین الفقهاء منهم اکثر من عشرین کالخلفاء والعبادلة وزید بن ثابت ومعاذ بن جبل وانس وابی هریرة والباقون یرجعون الیهم ویستفتون منهم وقد ثبت النقل عن اکثرهم صریحاً بایقاع الثلاث ولم یظهر لهم مخالف فما ذا بعد الحق الا الضلال. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۵ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال الشیخ البسام السلفی: وذهب جماعة من العلماء الی ان موقع الطلاق الثلاث بکلمة واحدة...... لا یقع علیهما الا طلقة واحدة...... منهم المجد عبد السلام بن تیمیة وکان یفتی بها سرا وحفیده شیخ الاسلام ابن تیمیة یجهر بها ویفتی بها فی مجالسه...... ومنهم ابن القیم الذی نصر هذا القول نصرا مؤزراً فی کتابیه الهدیٰ واغاثة اللهفان فقد اطال البحث فیها...... قال مجلس هیئة کبار العلماء: بحث مسئلة الطلاق الثلاثة بلفظ واحد وبعد الدراسة وتداول الرأی واستعراض الاقوال التی قبلت فیها ومناقشة ماعلی کل قول، توصل المجلس بالاکثریة الی اختیار القول بوقوع الطلاق الثلاث بلفظ واحد ثلاثا وخالف من اعضاء المجلس خمسة الخ. (التعلیق علی بلوغ المرام ۳۶۲، ۳۶۴ کتاب الطلاق)



روایات کثیر مذکورة فی مصنف عبدالرزاق﴿۱﴾ وهوالموفق

## که چرته ځمانښځه بد چلنه وی نوطلاقه ده.. یاکه چرته طلاق ورنه کړی نو..ددې حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې اووائی چه که چرته ځمانښځه دواده نه مخکښې بدچلنه وی نوهغه طلاقه ده. (ددی شهادت یا ثبوت نه وی اونه څه بل دلیل وی صرف د شک په بناء باندې اووائی) نو ایا په دې سره څه واقع کیږی؟ ځکه چه په شریعت کښې دشک په بناءباندې دې وئیل شووحروفو ته مبهم اوغیرواضح وئیلې شی اوچه ددې سره دده ښځه پاک دامنه هم ده؟ همدارنګې چه یو سړې اووائی چه که چرته مادیته طلاق ورنه کړونو......اوهمدارنګې نیمګړې خبرې اوائی. ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: امان الله شمسی رودمردان......۱۵صفر ۱۴۰۳

﴿۱﴾ ...... ☆ عن هارون بن عنزة عن ابیه قال کنت جالسا عند ابن عباس فاتاه رجل فقال یا ابن عباس انه طلق امرأته مائة مرة وانما قلتها مرة واحدة فتبین منی بثلاث ام هی واحدة؟ فقال بانت بثلاث وعلیک وزر سبعة وتسعین. (مصنف ابن ابی شیبة ۵: ۱۳)

☆ حدثنا سعید المقبری قال جاء رجل الی عبد الله بن عمر وانا عنده فقال یا ابا عبد الرحمن انه طلق امرأته مائة مرة قال بانت منک بثلاث وسبعة وتسعون یحاسبک الله بها یوم القیامة. (مصنف عبد الرزاق ۵: ۱۴)

☆ عن الحکم ان علیا وابن مسعود وزید بن ثابت رضی الله عنهم اجمعین قالوا اذا طلق البکر ثلاثا فجمعها لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره. (مصنف عبد الرزاق ۶: ۳۳۶)

☆ عن عبادة بن الصامت قال طلق جدی امرأته الف تطلیقة فانطلق ابی الی رسول الله ﷺ فذکر ذلک له فقال النبی ﷺ اما اتقی الله جدک، اما ثلاث فله واما تسع مأة وسبعة وتسعون فعدوان وظلم، ان شاء الله تعالیٰ عذبه وان شاء غفرله. (مصنف عبد الرزاق ۶: ۳۹۳)

**الجواب:** ښځه باندې تهمت لګول او اراده د طلاق ظاهر کول باندې طلاق واقع شوي نه دي په دې کښې د انشاء طلاق لفظ نشته دې نه صریح او نه کنایه_ وهوالموفق

**که چرته څه پشاور ته سبق ته لانه ړم نو ښځې ته درې طلاق..ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو طالب العلم خپل پلار ته ولیکل چه که چرته څه مثلاً پشاور ته سبق ته لانه ړم نو ماباندې خپله ښځه درې طلاق باندې مطلقه ده. اوس دې طالب العلم ته فورا پشاور ته تلل ضروری دی او که نه کله چه هم ځې نو طلاق ختمیږی. همدارنګې صرف تللو باندې سبق ته داحکم دتعلیق ختم کیږی یا هلته څه وخت پورې مقیم کیدل ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفتی محمد سردار دار العلوم عربیه ټل کوهاټ ۱۰۱۱۱۱ء۱۹۸۳

**الجواب:** که چرته دې حالف دفوراً تللو نیت نه وی کړې نو دمرګ نه مخکښې چه کله هم سبق ته لاړشی نو دحانث کیدلو نه بچ کیږی، برابره خبره ده که په پیښور کښې اقامت او کړی او که نه. ونظیره الحلف علی الفعل کمافی ردالمحتار ۳: ۱۸۲ فلیراجع(۱). وهوالموفق

**که چرته د زید کورته لاړو نو زر روپئ به صدقه کوی او**
**که چرته صدقه نې ونه کړله نو ښځه ئې طلاقه ده..ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړې قسم او خوړو چه که چرته زه دزید کورته لاړم نو زر روپې به دخدائې په نامه ورکوم، که چرته صدقه مې ونه کړله نو بیا ځما ښځه په ما باندې طلاقه ده. اوس که چرته دا

(۱) قال العلامة الحصکفی: ان رأیته لا ضربنه فعلی التراخی مالو ینوا الفور...... وبعد صفحتین...... ولو حلف لیفعلنه بربمرة. قال ابن عابدین: واذا لم یفعل لا یحکم بوقوع الحنث حتی یقع الیأس عن الفعل وذلک بموت الحالف قبل الفعل فیجب علیه ان یوصی بالکفارة...... وهذا اذا کانت الیمین مطلقة.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳: ۱۴۵، ۱۴۸ مطلب حلف لیفعلنه بربمرة)



سړې دزید په کورکښې داخل شی نوایادابه زرروپئ ورکوی او که لس مسکینانو ته به روټی ورکوی، که چرته زرروپې ئې ورنه کړې او لس مسکینانو ته روټې ورکړی نو ایا بیاهم طلاق واقع کیږې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مثل خان سانګړه...... ۱۲۲ جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** چونکه دې سړې دحانث کیدلو په صورت کښې په زرروپې نه ورکولو باندې طلاق معلق کړیدې نوله دې وجې نه په ده باندې دحانث کیدلو په صورت کښې په زرروپې نه ورکولو باندې ښځه مطلقه کیږې(۱)-وهوالموفق

**پلار او وئیلې.. که چرته ته مې د خاوند په حواله کړې**
**نو ما باندې خپله ښځه یو دوه درې او خور موربه وی.**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوه جینئ دخاوند د کور نه دپلار کره راغله ددی خاوندنه ئی بال بچ هم شته لیکن دجهګړې او فساد د وجې نه راغلې وه، پلار جینئ ته اووئیل چه که چرته ما دوباره ته میړه ته حواله کړې نو ماباندې خپله ښځه یو دوه درې کانړې او مورخوربه وی، اوس رشته دارو ددې جینئ سره دمصالحت نه پس دخاوند په حواله کړله لیکن پلار ئې په هغې باندې راضی هم نه دې، اوس دالفاظو مذکوره څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ګلفراز مدرسه عالیه زرګری کوهاټ ۱۲۴ محرم ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په دې الفاظو مسطوروسره په وقوع طلاق کښې تامل دې(۲) لیکن

(۱) قال العلامة عبد الله الموصلی: فاذا علق الطلاق بشرط وقع عقیبه وانحلت الیمین وانتهت لان الفعل اذا وجدتم الشرط فلا تبقی الیمین.
(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۸۱ فصل کنایات الطلاق)

(۲) چونکه یو دوه درې نه صریح دې او نه کنایه دې بلکه محض عدد او شمیردې او کله چه دې سره د طلاق الفاظ ذکرنه وی نو صرف نیت او اراده کافی نه وی، قال العلامة الشامی: ان من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لا صریحا ولا کنایة لا یقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره وکذا ما یفعله بعض سکان البوادی من امرها...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

احتیاط دادې چه دا ښځه دپلار داجازت نه بغیر اودموراووغیرهاپه اجازت سره خاوند کورته لاړه شی نو حنث نه به بچ شی﴿۱﴾-وهوالموفق

**.که چرته څه دفیصلې نه واوړیدم نو ما باندې دې ټول حلال حرام شی.. نه د طلاق حکم**

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید دکومې تنازعې په سبب جرګه کښې دابیان ولیکلوچه جرګې څه فیصله وکړه هغه ماته منظوره ده اوکه چرته ځه ددې فیصلې نه واوړیدم نوپه ما باندې دې ټول حلال حرام شی،اوس که چرته زید دفیصلې نه واوړیدواووتختې نوایازید باندې طلاق هم عائد کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی محمد اکبرپهګواړی راولپنډی..... ۱۹۷۰ء۳/۵/۱

**الجواب**: دالفظ څمونږپه کلواوزبان کښې په طلاق متعارف نه دې،ددې وجې نه غیرشادی شده هم دالفظ استعمالوی پس دې سړې یعنی زیدنه دی تپوس وشی چه دی الفاظو نه ستاڅه مراددې.صرف طلاق دی مرادؤوکه صرف ماکول اومشروب،یاماکول اومشروب اوجماع وغیره ټول مرادوو، پس څه چه مرادوو، بس هغه به منظور وی یعنې صورت اول کښې طلاق واقع

(بقیه حاشیه) بحلق شعرها لا یقع به طلاق وان نواه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

البته بعضې علماء په دې کښې اختلاف کوی چه دې الفاظوسره یعنی صرف یو دوه درې سره ښځه مبانه کیږی چه په دې کښې تجدید دنکاح کافی کیږی،او دویم لفظ ''خور مور،، کیږی سره دطلاق حکم ورکول دی.بې قاعدې امردې ځکه چه دې کښې حرف التشبیه نشته.

کما قال الحصکفی: والا ینوشیئا او حذف الکاف لغا وتعین الادنیٰ: قال ابن عابدین: والذی فی الفتح وفی انت امی لا یکون مظاهرا وینبغی ان یکون مکروها. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۶۲۶ باب الظهار)......ازمرتب

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ان لم تجیئ بفلان او ان لم تردی ثوبی الساعة فانت طالق فجاء فلان من جانب آخر بنفسه واخذ الثوب قبل دفعها لا یحنث.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۶۲ قبیل باب طلاق المریض)



کیږی،اوصورت ثانی کښې قسم اوپه صورت ثالثه قسم اوطلاق دواړه متحقق کیږی.یدل علیه مافی الفتح: ۴: ۲۶ والحاصل ان المعتبر فی انصراف هذه الالفاظ عربیةاو فارسیةالی معنی بلانیة التعارف فیه فان لم یتعارف سئل عن نیته فقط﴿۱﴾.وهوالموفق

**.که چرته خورمې ونه لیګله نوځما ښځه طلاق بائنه ده..ددې حکم**

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې خپله وادہ شوی خورپه ځان بوج کړله په خپل کورکښې غیرآباده پریخې وه اووعده ئې کړې وه چه فلان تاریخ اوفلان وخت به خپله خورسخرګنئ ته لیږی،که چرته ئې ونه لیګله نوځماښځه طلاق بائنه ده.اوس په دې تاریخ اووخت باندې دوه ورځی نورې هم تیرې شوې لیکن هغه خپله خورونه لیګله.اوس دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدان خان کوهاله مری....۱۹۲۹ء۲۰/۱۳/۱

**الجواب**: که چرته درې طلاقه مرادنه وی نوتجدیدنکاح کافی دی﴿۲﴾ځکه چه د تحقق د شرط دوجې نه طلاق واقع شویدې﴿۳﴾دتحلیل ضرورت نشته دی﴿۴﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ (فتح القدیر ۴: ۳۷۴ فصل فی الکفارة قبیل باب الیمین فی الدخول والسکنیٰ)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویقع بقوله انت طالق بائن او البتة...... واحدة بائنة فی الکل لانه وصف الطلاق بما یحتمله ان لم ینو ثلاثا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۸۷ فرع باب الصریح)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله فیقع بعده) ای یقع الطلاق بعد وجود الشرط فی المسئلتین سواء کان التعلیق فی الملک او مضافا الیه. (البحر الرائق ۴: ۸ باب التعلیق)

﴿۴﴾ قال العلامة الموصلی: وله ان یتزوج مطلقته المبانة بدون الثلاث فی العدة وبعدها لان حل المحلیة باق اذ زواله بالثالثة ولم توجد وانما لا یجوز لغیره فی العدة تحرزا عن اشتباه الانساب. (الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۹۳ باب الرجعة)

## .که ما په خپل سخرګنئ باندی سلام اوکړو نو ځما ښځه په طلاقه وی.. ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړې دوه ځله دا قسم اوخوړوچه که چرته ماپه سخرګنې باندی سلام اوکړونو ځمابښځه طلاقه ده، په دې سره کوم یوطلاق واقع کیږی؟بینوا توجروا

المستفتی: سیداغیارشاه......۱۰۱۱۰۱ء۱۹۷۵

**الجواب:** صرف سلام کولوباندې دوه طلاقه رجعی واقع کیږې، کما فی الهندیة ۲:۳۶۵ اذااضافه(الطلاق)الی الشرط وقع عقیب الشرط﴿۱﴾وقالوالصریح مالم یستعمل الا فیه ولوبالفارسیة کطلقتک الخ کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲:۵۹۰﴿۲﴾.وهوالموفق

## .که چرته تاسوتول مې قتل نه کړئ نوما باندې ښځه طلاقه ده.. ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې دویم کس ته غصه په حالت کښې اووئیل چه که چرته ماتاسوتول قتل نه کړی نوپه ما باندې ځمابښځه طلاقه ده، په هم دې مجلس کښې داالفاظ دوباره اووائی، اوس که چرته داسړې قتل اونه کړی نوښځه طلاقه کیږی اوکه نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مکرم خان صالح خانه نوشهره....۱۱۷۱ء۱۹۷۲

**الجواب:** دې سړې باندې فی الحال ښځه طلاقه نه ده کله چه داسړې قریب الموت شي اومړشي نوهغه وخت کښې په ده باندې ښځه په یوطلاق مطلقه کیږې یاکله چه داکسان(چاته چه دقتل دهمکی ورکړي شوې ده)نه یوکس مړشې نودې کس (زید) باندې ښځه یوطلاق باندې مطلقه کیږې، په کوم

﴿۱﴾(فتاوىٰ عالمگیریة ۱:۴۲۰ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان واذا)

﴿۲﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۶۵ باب الصریح)



کښې چه زبانی رجوع کافی ده دتجدیدنکاح ضرورت نشته دې، فی الدر المختار: ولوحلف لیفعلنه بربمرةوفی ردالمحتار۳: ۱۸۹ واذالم یفعل لایحکم بوقوع الحنث حتی یقع الیاس عن الفعل وذلک بموت الحالف قبل الفعل.....اوبفوت محل الفعل﴿۱﴾.وهوالموفق

## .ځما کلی ته راغلې تا لره مې قتل نه کړو نو ځما ښځه طلاقه ده..ددرې ځلی وئیلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه زیددعمر اوخې دې دواړو کښې په دې خبره جهګړه شوه چه زیدخپله وړه لورپیدل کلی ته بوتلل غواړې لیکن عمرچه دزیددښځې وروردې انکارکوې چه څه داپیدل نه پریږدم بلکه موټرسائیکل باندی ئې رسوم، لیکن زید فوراً جینئ بوتلل غواړی، زیدیودم جوش کښې راغلواوقسم ئې اوکړوچه که چرته ته ځماکلی ته راغلې اوځه تالره قتل نه کړم نوځمابښځه طلاقه ده درې ځلی داالفاظ تکرار کړل، زیدلاړو اوسخرپریشان شو، دشپې عمردیوبل کس سره دزیدکلی ته لاړل دواړوهلته روټې اوخوړه اوشپه ئې هم هلته تیره کړه، زیداووئیل ما په غصه کښې داالفاظ وئیلې ؤواوس ددې الفاظو څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی:مولاناغلام رسول مدرسه عربیه نظامیه تربت مکران۱۱۱۸۱ء۱۹۷۴

**الجواب:** که چرته دزیدددریوځلوتکرارنه درې طلاقه نه وی مرادبلکه اصرار او تاکیدئې مراد وې، یاخالي الذهن وی نوزیدباندې ښځه مطلقه مغلظه نه کیږی، کما فی ردالمختار۲: ۶۳۲ قبیل الکنایات﴿۲﴾اوکه چرته درې طلاقه مراد وی نوښځه مطلقه مغلظه شویده، اما حالا عند ارادة الفور وهو المتبادر

﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۱۴۸ مطلب حلف لیفعلنه برّبمرة کتاب الایمان)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: کرر لفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین، قال ابن عابدین: ای ووقع الکل قضاء وکذا اذا طلق اشباه ای بان لم ینو استینافا ولا تاکیداً لان الاصل عدم التاکید. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۹۹ فروع قبیل باب الکنایات)

واما عند الموت﴿۱﴾.وهوالموفق

**.که چرته په حقوق زوجیت اونان نفقه کښې**

**کوتاهی اوکړم نو درې طلاقه.. ددې مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه ځمادخورواده دماما ځوئ سره شویدې،دواده په وخت کښې ده لیکلی ووچه، .که چرته زه د خپلې ښځې حقوق زوجیت اونان نفقه کښې کوتاهی ا وکړم نوداپه ماباندی حرامه ده اوپه دری طلاقوباندی طلاقه ده. ،دواده نه پس به هلک دکورنه غائب وو چه دهغی دوجی نه دښځی اوخاوند په مینځ کښې جهګړه وشوه اوښځه ئې کورنه اوویستله څه موده پس روغې جوړی واله ضلح اوکړله اوځما خور دهغه کورته لاړله،څه موده پس بیاجهګړه وشوه اوبیائې ښځه دکورنه اوویستله لیکن روغی جوړی والوبیا اتفاق وکړواوښځه ئې دهغه کورته بوتلله،دریم ځل بیاده دښځې سره جهګړه اوکړله اوکورنه ئې ویستله.اته میاشتې کیږی نه څه خرچه ورکوې اوس روغی جوړې والابیادصلح خبرې کوی اوس دطلاق اوحرام کیدلوپه باره کښې دشریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: کبیرخان اسلام آباد......۲۷\۱شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که چرته دابښځه دې خاوند دکورنه ویستلې وی اودحقوقِ مسکنت نه ئې محروم کړي وی﴿۲﴾

---

**﴿۱﴾قال العلامة الحصكفي: ولو حلف ليفعلنه بربمرة لان النكرة فى الاثبات تخص والواحد هو المتيقن ولو قيدها بوقت فمضى قبل الفعل حنث ان بقى الامكان والا بان وقع اليأس بموته او بفوت المحل بطلت يمينه كما مر فى مسئلة الكوز.**

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۱۴۸ مطلب حلف ليفعلنه بربمرة)**

**﴿۲﴾وفى الهندية: تجب السكنى لها عليه فى بيت خال عن اهله واهلها الا ان تختار ذلك كذافى العينى.**

**(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۵۵۶ الفصل الثانى فى السكنىٰ)**



نودا ښځه په خاوندباندې مطلقه مغلظه شویده﴿۱﴾اوکه چرته دوهلونه پس دابښځه بلامرضی اوبلااخراج دخاونددکورنه راغلې وی نومطلقه شوې نه ده دغه خاوندسره اوسیدلې شی،لعدم وجودالشرط﴿۲﴾.وهوالموفق

**.که چرته دفلان فلان سره راضی نامه وکړم نو**

**په ما باندې یوطلاق دوه طلاق درې طلاق الخ.**

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې روغې جوړې واله سره دڅه ذاتی اختلاف په بناء باندې دنورو ملګروسره وعده وکړه چه که چرته څه ستاسوخلقونه جداشوم اودفلانې فلانې حضراتوسره مې خوراک سکاک وکړه نولګاتاردرې ځلې یویوکانړې اوچت کړواوځمکه باندې اوغورځول چه ماباندې ځمابښځه یوطلاق بیادویم ځل ئې دویم کانړی اوغورځلواووئې وئیل چه دوه طلاقه بیائې دریم ځلْ وکړلو اوئی وئیلِ دری طلاقه،ځمابښځه دې په ماباندې طلاقه وی که ماتاسوپریخودئې اوددې خلقو سره راضی نامه وکړم بیائې تقریبا دوه کاله پس هم دغه شان دخپل رور دواده په موقع باندې ددې خلقوپه مخامخ پرله پسې درې ځلې اووئیل چه ځمابښځه په ماباندې یوطلاق دوه طلاقه درې طلاقه ده چه څه ستاسونه جداشم اوفلانی فلانی سره راضی نامه وکړم،بیایوکال پس ده دخپل یو قریبی رشته دار په ویناباندې ددې ملګرودرضاءمندې نه بغیرراضی نامه دهغه کسانو سره وکړه دکوم متعلق چه ده طلاق وئیلې وو ددې وجې نه ایا دده ښځه دته جائزده؟ یادوباره تجدیدنکاح وکړی؟ همدارنګې کوم خلق چه دده سره خوری سکی دهغوې دپاره څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:الطاف حسین ملکوټ ایبټ اباد.....۱۹۷۵ء\۱۴\۱۱

---

**﴿۱﴾قال الحداد اليمنى: واذا اضاف الى شرط وقع عقيب الشرط مثل ان يقول ان دخلت الدار فانت طالق هذا بالاتفاق لان الملك قائم فى الحال والظاهر بقاؤه الى وقت الشرط ولانه اذا علقه بالشرط صار عند وجود الشرط كالمتكلم بالطلاق فى ذلك الوقت.**

**(الجوهرة النيرة ۲:۱۱۰ كتاب الطلاق)**

**﴿۲﴾المعلق بالشرط يجب ثبوته عند ثبوت الشرط. (شرح المجلة ۱:۲۳۲ مادة:۸۲)**

**الجواب**: په ظاهره په دې سړي باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده﴿۱﴾ بغیر د تحلیل نه چاره نشته دی﴿۲﴾د تحلیل نه مخکښې وزسره جماع حرامه ده﴿۳﴾ او دده سره دکتلو او ودریدلو اود غیرضروری تعلقاتو ساتلو والا هم ګناهګار دې﴿۴﴾- وهوالموفق

## د طلاق معلق یو صورت

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه دیو سړې دخپل سخر سره اختلاف پیداشوځه موده پس ئې دسخرپه کورکښې دواده پروګرام ؤو، سخرګنئ دهغه د راضی کولو ته جرګه ولیګله چه واده کښې شرکت وکړی،ده

﴿۱﴾قال العلامة الموصلی: فاذا علق الطلاق بشرط وقع عقیبه وانحلت الیمین وانتهت لان الفعل اذا وجدتم الشرط فلا تبقی الیمین.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۸۱ فصل کنایات الطلاق)

﴿۲﴾وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة.

(فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

﴿۳﴾وفی الهندیة: اذا طلقها ثلاثا او واحدة بائنة ولیس له الا بیت واحد فینبغی له ان یجعل بینه وبینها حجابا حتی لا تقع الخلوة بینه وبین الاجنبیة.

(فتاویٰ عالمګیریة ۱: ۵۳۵ الباب الرابع عشر فی الحداد)

﴿۴﴾قال العلامة الطرابلسی: والتعزیر تأدیب استصلاح وزجره عن ذنوب لم تشرع فیها حدود ولا کفارات...... والتعزیر لا یختص بفعل معین ولا قول معین فقد عزر رسول الله ﷺ بالهجر وذلک فی حق الثلاثة الذین ذکرهم الله تعالیٰ فی القرآن العظیم فهجروا خمسین یوما لا یکلمهم احدبهم وقصتهم مشهورة فی الصحاح وعزر رسول الله ﷺ بالنفی فامر باخراج المخنثین من المدینة ونفاهم وکذلک الصحابة من بعده.

(معین الحکام ۱۹۵ فصل من الزواجر الشرعیة والتعزیر)



جرګه واپس کړه او اوئې وئیل چه ما قسم بالطلاق کړیدې چه څه به دسخرګنې کورته نه ځمه، جرګې والو اووئیل چه دا قسم غلط دې قسم خودالله په نوم کیږی، طلاق باندې نه کیږی، دارواجی قسم دې، ده بیا اووئیل که چرته ماد سخرګنې سره په غم خوشحالې کښې شرکت اوکړو نو ما باندې ښځه طلاقه ده، ده داالفاظ اووئیل او سَحر واده وشو، هغه وخت دا سړی دسخرکره بیمار پُرسئ ته لاړو اته نهه ورځې پس ده خپله ښځه رخصت کړه چه په ما باندې طلاقه ده، بیاده دخبرو کولونه پس خپلې مورته اوئیل که چرته ستاشک وی نو زه ئې بیاوایمه چه فلانکئ په ما باندې په دریو کانړو باندې طلاقه ده او دویم ځل ئې بیاهم دغه رنګې اووئیل، ددې متعلق دشریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدضمیر استاذ ګمبت مردان........ ۱۹۷۲ء/۱۷/۳۱

**الجواب**: بشرط صدق مستفتی په دې سړي باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده بغیر دتحلیل نه چاره نشته دې﴿۱﴾ دتحلیل کیفیت دې دمقامی علماء نه معلوم کړیشی. وهوالموفق

## دوکانداری نه کولو باندې طلاق معلق کول کله چه مراد ئې په شرکت سره دوکانداری وی.. ددې حکم

**سوال**: څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړې اووئیل چه څه دوکان نه کوم که چرته مادوکان اوکړو نو په ما باندې خپله ښځه په درې طلاق مطلقه ده، دا قسم هغه دوجی د دشرکت نه خوړلې دې، چه که چرته شرکت وی نو دوکانداری به نه کوم، اوس که چرته ځانته ددوکانداری کاروکړی نو آیا طلاق واقع کیږی؟ لیکن هغه وائې چه ځمانیت دطلاق نه وو؟ بینوا توجروا

المستفتی: زاهدعلی باچاحقانی........ ۱۹۷۵ء/۱۲/۱۲۱

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الغنی الغنیمی: واذا کان الطلاق ثلاثا فی الحرة او ثنتین فی الامة ولو قبل الدخول لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ای یطأها ثم یطلقها او یموت عنها وتنقضی عدتها منه. (اللباب فی شرح الکتاب ۲: ۱۸۳ کتاب الرجعة)

**الجواب**: که چرته ده دشرکت کولونه قسم خوړلې وی نوبلاشرکت دوکان کولو باندې په ده ښځه نه مطلقه کیږی،اوکه چرته مطلق دوکانداری نه ئې قسم کړیوی﴿١﴾ نوبغیر دحیلې نه دوکانداری کول موجب تغلیظ دې یعنې موجب دطلاق مغلظ دې﴿٢﴾-وهوالموفق

## د مشت زنی کولوپه وجه باندې طلاق معلق واچوی او بیا ئې تفخیذ وکړو نو څه حکم دې؟

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې دمشت زنی عادت دې،ددینه دنجات موندلودوجی نه ده داووئیل چه که چرته ائنده مامشت زنی وکړه نوهره هغه ښځه چه دهغې سره څه نکاح کوم هغه طلاقه ده،ددینه پس دادشهوت نه مغلوبه شواوتفخیذئې شروع کړلودتکیه وغیره سره،اوس هغه دطلاق باره کښې وائې چه داپه مشت زنې کښې داخل نه دی، ځکه چه ده صرف دلاس دمشت زنې په صورت کښې طلاق وئیلې دې، نو آیاپه تفخیذوغیره سره درې طلاقه واقع کیږی اوکه بائن؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالخالق شادمان لاهور......١٤٠١\٦\٢٩هـ

**جواب**:دا تفخیذوغیره مشت زنی نه ده اګرچه په مقصد کښې دمشت زنی په شان ده اوحرام دې﴿٣﴾ پس دې سړی حالف باندې ښځه مطلقه شوې نه ده

---

﴿١﴾وفی الهندیة: واذا اضافه (ای الطلاق) الی الشرط وقع عقیب الشرط اتفاقا. (فتاویٰ عالمگیریة ١:٤٢٠ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق)

﴿٢﴾قال العلامة الحصکفی: وتنحل الیمین بعد وجود الشرط مطلقا لکن ان وجد فی الملک طلقت وعتق والا لا فحیلة من علق الثلاث بدخول الدار ان یطلقها واحدة ثم بعد العدة تدخلها فتنحل الیمین فینکحها.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٥٤٥ مطلب زوال الملک لا یبطل الیمین)

﴿٣﴾قال العلامة ابن عابدین: ان علة الاثم هل هی کون ذلک استمتاعا بالجزء کما یفیده الحدیث وتقییدهم کونه بالکف ویلحق به ما لو ادخل ذکره..(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



لیکن دمشت زنې دکولوپه صورت کښې په ده باندې ښځه په یوطلاق مطلقه کیږی﴿١﴾-وهوالموفق

## د مالی جرمانه نه ادا کولو په صورت کښې دطلاق معلق تفصیلی مسئله

**سوال**: څه فرمائی علمائې دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوسړې یوڅو کارونه ولیکل چه که چرته داپوره نه کړی نوپه ماباندې زرروپې مالی جرمانه لازمه ده،اوکه چرته مالی جرمانه مې ادانه کړه نوپه ماباندې ځما ښځه طلاقه ده،اوس که چرته دې سړی د شروط پوره والې ونه کړلواونقض عهد ئې اوکړلو نوایادمالی جرمانه په نه اداکولوباندې درې طلاقه کیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام عباس نقوی پشاور......١٢\ذی قعده١٣٩٧هـ

**الجواب**: مالی جرمانه اخستل یاورکول داامورمحرمه نه دې﴿٢﴾ لیکن دحرمت

---

(بقیه حاشیه) بین فخذیه مثلا حتی امنی ام هی سفح الماء وتهییج الشهوة فی غیر محلها بغیر عذر کما یفیده قوله واما اذا فعله لاستجلاب الشهوة الخ لم ارمن صرح بشیئ من ذلک والظاهر الاخیر لان فعله بید زوجته ونحوها فیه سفح الماء لکن بالاستمتاع بجزء مباح کما لو انزل بتفخیذ او تبطین بخلاف ما اذا کان بکفه ونحوه وعلی هذا فلو ادخل ذکره فی حائط او نحوه حتی امنی او استمنی بکفه بحائل یمنع الحرارة یأثم ایضا ویدل ایضا علی ما قلنا ما فی الزیلعی حیث استدل علی عدم حله بالکف بقوله تعالیٰ والذین هم لفروجهم حافظون، الآیة الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢:١٠٩ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

﴿١﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا اضافه (ای الطلاق) الی شرط وقع عقیب الشرط مثل ان یقول لامرأته ان دخلت الدار فانت طالق وهذا بالاتفاق لان الملک قائم فی الحال والظاهر بقاؤه الی وقت وجود الشرط فیصح یمینا او ایقاعا. (هدایة ٢:٣٦٤ باب الایمان فی الطلاق)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله لاباخذ مال فی المذهب) قال فی الفتح وعن ابی یوسف یجوز التعزیر للسطان باخذ المال وعندهما وباقی الائمة لا یجوز ومثله فی المعراج وظاهره ان ذلک روایة ضعیفة عن ابی یوسف قال فی الشرنبلالیة......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

باوجود په دې سره طلاق معلق کول درست اونافذدی، بخلاف النذر﴿١﴾ او چونکه داادامطلق ده موقت نه ده لهذاداعهدکونکې به په اخری لمحاتو د زندګئ کښې حانث شی، کمافی ردالمحتار ٣: ١٨٦ واذالم یفعل لایحکم بوقوع الحنث حتی یقع الیاس عن الفعل﴿٢﴾. وهوالموفق

## که چرته افیون اوخوری نوښځه به طلاقه وی، بیا د افیونو نه جوړه شوې دوا اوخوری نو..؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې اووئیل چه که چرته ما افیون اوخوړل نومابندی ښځه طلاقه ده، ناڅاپه داسړې بیمارشو

(بقیه حاشیة) ولا یفتی بهٰذا لما فیه من تسلیط الظلمة علی اخذ مال الناس فیاکلونه...... وافاد فی البزازیة ان معنی التعزیر باخذ المال علی القول به امساک شیئ من ماله عنه مدة لینزجر ثم یعیده الحاکم الیه لا ان یأخذه الحاکم لنفسه او لبیت المال کما یتوهمه الظلمة اذلا یجوز لاحد من المسلمین اخذ مال احد بغیر سبب شرعی...... وفی شرح الآثار التعزیر بالمال کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ والحاصل ان المذهب عدم التعزیر باخذ المال.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣: ١٩٥، ١٩٦ مطلب فی التعزیر باخذ المال)

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ان لا یکون معصیة لذاته) قال فی الفتح واما کون المنذور معصیة یمنع انعقاد النذر فیجب ان یکون معناه اذا کان حراما لعینه او لیس فیه جهة قربة فان المذهب ان نذر صوم یوم العید ینعقد ویجب الوفاء بصوم یوم غیره ولو صامه خرج عن العهدة ثم قال بعد ذلک قال الطحاوی اذا اضاف النذر الی المعاصی کله علی ان اقتل فلانا کان یمینا ولزمته الکفارة بالحنث.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣: ٧٤ مطلب فی احکام النذر)

﴿٢﴾ (ردالمحتار ٣: ١٤٨ مطلب حلف لیفعلنه بربمرة کتاب الایمان)



ډاکټرچه ده ته کومه دوائې ورکړه په هغې کښې افیون هم اچولی وویعنی د افیونونه جوړه شوې دوائی وه نوپه دې صورت کښې په ده باندې طلاق واقع شواوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: صاحبزاده اکبردارالعلوم مردان ١٥ رمضان المبارک ١٤٠٣ھ

**الجواب:** ددې مرکب دوایئ په خوراک کښې حنث نشته دې، الاان یریدالحالف، ماخوذ ازهندیه ٢: ٨٥ وعبارتها، سئل شیخ الاسلام الزاهدرحمةالله علیه عمن حلف لایاکل لحما وحلف الاخر لایاکل بصلا واخر لا یاکل فلفلا فاتخذمحشوا جعل فیه هذه الاشیاء کلها فاکلها الحالفون کلهم لم یحنث احد الاصاحب الفلفل لان الفلفل لایؤکل الا هکذا فانصرفت یمینه الیه﴿١﴾. وهوالموفق

## .که چرته څه د څوئ کور ته لاړم نو ښځه مې طلاقه ده.. ددې نه مراد د سکونت کوردې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زیدقسم خوړلې دې چه که چرته څه دخپل څوئ کورته لاړم نوځماښځه طلاقه ده یاکه چرته ځما د څوئ ښځه ځماکورته راغله نوبیاهم ځماښځه طلاقه ده. پس که چرته زید خپل کورهبه کړی اودهغه په نوم باندې ئې منتقل کړی. اوبیادزیدڅوئ خپل لور (د زید نوسی) ته ئې هبه کړو، اوس که چرته زیددې کورته لاړشی نو طلاق واقع کیږی اوکه نه؟ځکه چه دزیدڅوئ هم په دې کورکښې اوسیږی اوکه چرته دزیداینګوردزیدرهائشی کورته کوم چه اوس دزیددووځمنوپه نوم باندې موهوب دې راشی نودزیدښځه طلاقه کیږی اوکه نه؟بینوا توجروا

المستفتی: روح الامین ګړهی کپوره مردان............ ١٩٨٥، ١١، ١٢

**الجواب:** کوم کس چه داالفاظ اووائې، که زه دفلانی کره لاړم نوپه ماالخ. که ماکره فلانکی راغې نوپه ماالخ. نودعرف په بناء باندې ددې نه مراد د سکونت کوراومکان دې نه مملوکه کور. ومدارالایمان علی العرف، پس په دې بناء باندې په صورت اول کښې طلاق نه واقع کیږی. البته که چرته دا سړې

﴿١﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ٢: ٨٥، ٨٦ الباب الخامس فی الیمین علی الاکل والشرب وغیرهما)

(زید) دارمملوکه مراداخستلی وی نودوارو صورتونو کښې طلاق نه واقع کیږی﴿١﴾-وهوالموفق

## د طلاق معلق یو تفصیلی مسئله او متعدد استفسارات

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې باره کښې چه عبدالله یوملازم پیشه سړې دې کورته راغلې دې،دده دوه خوئینډې دی،دخوردواده متعلق ئې خبری کیدې،په څه خبره باندې دپلاراوعبدالله په مینځ کښې سخت کلامی وشوه،پلارئې هغه ته اووئیل چه داځمالورده ددې سره ستاڅه تعلق نشته دې په دې باندې عبدالله ته غصه ورغله چه څه دخویندومشر ورورېم که چرته ځماحق نه وی نوځمابښځه یودوه درې باندې طلاقه ده،که چرته ما د خویندو پوختنه هم وکړه(١)اوس هغه کوم حالات دی په کوم سره چه طلاق واقع کیږی عبدالله ته څه کول ممنوع شول ځکه ددوارو خوایندوکویژدنې هم شویدې؟(٢)که چرته طلاق واقع شی نوددې نه پس څه حل دې؟(٣)آیا د غصې په حالت کښې ده ته یمین متصورکولوسره کفاره کیږی اوڅه کفاره به ئې وی؟(۴)دوقوع طلاق په صورت کښې خاوند ملازم پیشه اود کورنه درې میاشتې بهرتیرولو په وجه دښځې په کورکښې اوسیدل جائز دی؟اوکه یا د والدینو کورته به ځی؟(۵)ښځه دده دترورلورده دواده نه مخکښې ئې هم

---

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله الايمان مبنية عندنا على العرف) لان المتكلم انما يتكلم بالكلام العرفى اعنى الالفاظ التى يراد بها معانيها التى وضعت لها فى العرف كما ان العربى حال كونه بين اهل اللغة انما يتكلم بالحقائق اللغوية فوجب صرف الفاظ المتكلم الى ما عهد انه المراد بها...... نعم ما وقع مشتركا بين اللغة والعرف تعتبر فيه اللغة على انها العرف فاما الفرع المذكور فالوجه فيه ان كان نواه فى عموم قوله بيتا حنث وان لم يحظر له فلا لانصراف الكلام الى المتعارف عند اطلاق لفظ بيت فظهر ان مرادنا بانصراف الكلام الى العرف اذا لم تكن له نية وان كان له نية شيئ واللفظ يحتمله انعقد اليمين باعتباره.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣: ٧٨ مطلب الايمان مبنية على العرف كتاب الايمان)



پرده نه کوله نوایابښځه به اوس دخاوندنه پرده کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حوالدارکلرک رحمان ګل کوئټه......١٩٦٩ء٩١٥١

**الجواب:** (١) د خوئیندو متعلق تپوس اودوې سره تعلقات ساتلو باندې طلاق واقع کیږی﴿١﴾ ددې وجی نه تپوس کول او تعلقات ساتل ده ته موجب طلاق دې او تپوس نه کول او تعلقات نه ساتل ګناه ده﴿٢﴾-(٢)ددې علاج تحلیل دې چه د هغې تفصیل دې دمقامی علماء نه معلوم کړیشی﴿٣﴾ دغصې په حالت کښې هم طلاق واقع کیږی-﴿٤﴾ لیکن دلته طلاق مغلظه واقع کیږی لهذا دتحلیل نه بغیرچاره نشته دې-(۴) ښځې ته دپلارکره تلل ضروری نه دی په دې کورکښې هم اوسیدلې شی-(۵)کله چه طلاق واقع شی نود جانبینو د طرف نه پرده کول ضروری دی﴿۵﴾-وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة الموصلى: فاذا علق الطلاق بشرط وقع عقيبه وانحلت اليمين وانتهت.

(الاختيار لتعليل المختار ٢: ١٨٠١ فصل كنايات الطلاق)

﴿٢﴾ عن ابى ايوب رضى الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا يحل لمسلم ان يهجر اخاه فوق ثلاث ليال يلتقيان فيعرض هذا ويعرض هذا وخيرهما الذى يبدأ بالسلام متفق عليه.

(بلوغ المرام ۴٨٠ باب البر والصلة)

﴿٣﴾ وفى الهندية: وان كان الطلاق ثلاثا فى الحرة لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها كذا فى الهداية.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ۴٧٣ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدين: والذى يظهر لى ان كلا من المدهوش والغضبان لا يلزم فيه ان يكون بحيث لا يعلم ما يقول بل يكتفى فيه بغلبة الهذيان واختلاط الجد بالهزل كما هو المفتى به فى السكران. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ۴٦٣ مطلب فى طلاق المدهوش)

﴿۵﴾ قال العلامة الحصكفى: ولا بد من سترة بينهما فى البائن لئلا يختلى بالاجنبية ومفاده ان الحائل يمنع الخلوة المحرمة...... قال ولهما ان يسكنا بعد الثلاث فى بيت واحد اذا لم يلتقيا التقاء الازواج ولم يكن فيه خوف فتنة انتهىٰ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٢: ٦٧۵ قبيل فصل فى ثبوت النسب)

## په دې جواب باندې دوباره استفسار

**سوال:** ستا سوال موصول شواودمعاملې تاسوته پوره پته لګيدلې ده،زيات داچه :(١)دخوئيندوسره تعلق ساتلوباندې کوم يوطلاق واقع کيږي ځکه چه تا سوصفاونه وئيل(٢)که چرته طلاق مغلظه شی لکه څنګه چه تاسوليکلی دی نوښځه کورکښې څنګه اوسيدلې شی،که چرته دې ته دويم کس سره نکاح کول وی حالانکه تاسوليکلي دی چه ښځه دې کورکښې اوسيږی دوتلو ضرورت نشته؟(٣)تاليکلی دی چه که چرته ښځه غواړی نودويم سړې سره دې نکاح اوکړی اوکه چرته ښځه نه غواړی اوهغه دعدت پوره کيدونه پس دخپل خاوندسره نکاح کول غواړی؟(۴)چونکه دقسم کولو په وخت دبحث مسئله دخوئيندوواده وودلته يومعززعالم صاحب چه په کوټه کښې امام اوخطيب دې هغه فرمائ چه عبدالله ته پکاردی چه دخوئيندودواده په معامله کښې بالکل دخل ونه کړی،اوکله چه ئې دخوئيندوواده وشی نوبيا عبدالله دخوئيندوسره تعلق ساتلې شی،طلاق نه واقع کيږی،ډيره مهربانی داهم لګ شان صفاکړه چه که چرته دخويندوپه واده کښې عبدالله بالکل غيرجانبداردې اودواده نه پس تعلقات اوساتی نوخيردې ځکه چه دده والدصاحب په دې خبره باندې غصه شوي وو چه ته دخويندود واده ذمه وار نه ئې داځماکاردې،اوعبدالله دخويندودرشتې نه مجبوروومګردغلطې نه خبره اووتله-(۵) په دې تعلقاتونه ساتلوکښې کومې،کومې خبرې شاملې دی ځکه کورکښې اوسيدو سره بعضې خبرې کيږی يا صرف دواده متعلق خبرې؟ بينوا توجروا

المستفتی: حوالدارکلرک رحمان ګل کوټه کينټ.........١٩٦٩ء١٧١٦١

**الجواب:** (١) دخويندوسره تعلقات ساتلو باندې درې طلاقه(طلاق مغلظ) واقع کيږې ځکه چه عبدالله وئيلی دی،، که چرته ځماحق نه وی نوځماښځه يودوه



درې باندې طلاقه ده اوکه چرته مادخويندوتپوس هم اوکړو،،﴿١﴾-(٢) د شريعت حکم دادې چه د عدت په ورځوکښې دخاوندپه کورکښې سکونت ضروری دې ليکن دخاوندنه به پرده ضرورکوی،(فی الهنديه ٢: ٤٠٨)وعلی المعتدة ان تعتدفی المنزلةالذی يضاف اليها بالسکنی حال وقوع الفرقة والموت لقوله تعالی:ولاتخرجوهن الاية....ثم ان وقعت الفرقة بطلاق بائن اوثلث لابد من سترةبينهما ثم لاباس لانه معترف بالحرمة الا ان يکون فاسقا﴿٢﴾.(٣)دعدت پوره کيدونه پس دخپل خاوندسره هيڅ کله نکاح نه شی کولې تردې پورې چه تحليل نه وی شوې،يعنې دويم خاوندسره دجماع کولونه پس که چرته هغه اوغواړی طلاق ورکړې اودطلاق نه پس کله چه عدت تير شی نواول خاوندسره تجديددنکاح وکړی﴿٣﴾-(۴)که چرته دعبدالله مراددې الفاظونه،، که چرته مادخويندوتپوس هم اوکړو،،،که صرف دواده د امور متعلق تپوس وی نونورتعلقات ساتلې شی ليکن دامعامله ئې دالله تعالی سره ده دروغ نه وئيل ضروری دی ځکه چه په ظاهره په دې الفاظوباندې قطع دټولو تعلقاتو داخوت مراد ده﴿٤﴾-(۵)داسوال دې دعبدالله نه اوشی چه دده ددې الفاظونه څه مرادوومطلق تعلقات ئې مرادوواوکه نه دواده متعلق. وهوالموفق

﴿١﴾ وفی الهندية: واذا اضافه (ای الطلاق) الی الشرط وقع عقيب الشرط اتفاقا.
(فتاویٰ عالمگيرية ١:٤٢٠ الفصل الثالث فی تعليق الطلاق بکلمة ان)

﴿٢﴾ (هداية ٢:٤٠٧،٤٠٨ قبيل باب ثبوت النسب کتاب الطلاق)

﴿٣﴾ قال العلامة الغينمی الميدانی: واذا کان الطلاق ثلاثا فی الحرة...... ولو قبل الدخول لم تحل له حتی تنکح زوجا غيره نکاحا صحيحا ويدخل بها ای يطأها ثم يطلقها او يموت عنها وتنقضی عدتها منه. (اللباب فی شرح الکتاب ٢:١٨٣ کتاب الرجعة)

﴿۴﴾ قال العلامة الحصکفی: الايمان مبنية...... عندنا علی العرف مالم ينو ما يحتمله اللفظ فلا حنث فی لا يهدم الا بالنية فتح.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٣:٧٨ مطلب الايمان مبنية علی العرف)

**دریم ځل استفسار:**

**سوال:** جواب موصول شوي دي ليکن يو اشکال باقي دي چه دواده متعلق خوبه عبدالله دوالدينوسره يادکومې خورسره څه عرض نه ساتی، ليکن بياهم د اخوت اود وروز خور رشته ده ددې وجې نه که چرته خورته په واده کښې تحفه ورکول غواړی مثلا دکپړوجوړه بکس زيورات وغيره؟بينوا توجروا

المستفتی: رحمٰن ګل کلرک حولدارکوئټه

**الجواب:** عبدالله په خپله خورته څه تحفه نه شی ورکولې، بل څوک که چرته دده د طرفنه (بغيردده دامرنه) تحفه ورکړی نوعبدالله باندې څه حرج نشته﴿۱﴾-وهوالموفق

**څلورم ځل استفسار :**

**سوال:** څه فرمائی علماءدين ددې مسئلې باره کښې چه مسئله تاته پوره معلومه شوه چه اوس ځمادپاره دخوئيندوسره تعلق ساتل موجب دطلاق مغلظ دي ليکن دخويندوسره رشته نه ساتل هم ګناه ده ددې وجې نه که چرته زه کوم يوې خورته يوجوړه ورولېګم نوطلاق واقع کيږی، اوس مخکښې ځمادپاره څه کول ضروری دی، درې مياشتې پس به په دويم ځل نکاح کول وی ياکوم حل چه زمادپاره مطابق دشريعت محمدی وی ستاسودفېصلې به منتظريم؟ بينوا توجروا

المستفتی: رحمن ګل حوالدارکلرک

**الجواب:** که چرته تادخپلې خورسره څه تعلق داخستو اُورکولووغيره قائم کړو

﴿۱﴾قال العلامة التمرتاشی: ويحنث بفعله وفعل ماموره فی النکاح والطلاق والعتاق والخلع...... والهبة والصدقة الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۱۲۹ مطلب حلف لا يتزوج)



نوستا ښځه په تا باندې حراميږي﴿۱﴾اوعدت(درې حيضه)دتيريدونه پس ښځه که چرته غواړی نودويم کس سره نکاح کولې شی اوداسړې به ددې سره جماع کوی، اوجماع نه پس که چرته داسړې غواړی نوښځې ته دې طلاق ورکړی اوطلاق ورکولونه پس کله چه عدت تيرشی نوکه ښځه چرته غواړی نوتاسره دوباره نکاح کولې شی﴿۲﴾-وهوالموفق

**.کومې ښځې سره چه زه نکاح وکړم هغه په ما**

**باندې مطلقه ثلاثه ده.. ددې حکم اودفضولي نکاح**

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه(۱)چه يوکس اوئيل چه دکومې ښځې سره زه نکاح وکړم نو په خدائ قسم که چرته زه هغې ته نزدې شم نوهغه په ماباندې حرامه ده-(۲)يادااووائی چه کومه ښځه ماوکړه نوهغه په ماباندې په درې طلاقوباندې طلاقه ده، اوس که چرته دې سړې ته نکاح فضولی وکړيشی نوطلاق واقع کيږی؟بينوا توجروا

المسفتی: عبدالواسع اکبرپوره.......۱۹۷۵ء۱۹۱۷

**الجواب:** کله چه فضولی عقدنکاح وکړی اوداکس ئی قبول بالفعل کړی يعنی مهرمعجل ورکړی وغيره نودطلاق دوقوع نه به بچ شی، کما فی ردالمحتار ۲: ۶۸۱ اذا قال کل امراة اتزوجها طالق، والحيلة فيه ما في البحر من انه يزوجه

﴿۱﴾قال الحداد اليمنی: واذا اضاف الی شرط وقع عقيب الشرط مثل ان يقول ان دخلت الدار فانت طالق هذا بالاتفاق. (الجوهرة النيرة ۲: ۱۱۰ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة المرغينانی: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غيره نکاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها والاصل فيه قوله تعالیٰ فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غيره.

(هداية ۲: ۳۷۸ فصل فيما تحل به المطلقة)

فضولی ویجیز بالفعل کسوق الواجب الیها او یتزوجها بعدماوقع الطلاق علیها﴿۱﴾ اودسوال اول په صورت کښې هم دایلاء یاطلاق نه دبچ کیدو دا حیله ده اودبینونت حفیفه په صورت کښې تجدیدنکاح هم مخرج اوحیله ده، کما مر﴿۲﴾.وهوالموفق

## په عرفی کلما طلاق سره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زیدعمروته اووئیل چه که چرته تااودس اونه کړو نوپه تا باندې خپله ښځه کلماطلاقه ده یعنې دطلاق سره ئې کلما لفظ اووئیلو ،لیکن عمروداودس کولوباوجودده په خبره باندې صرف آو اوکړو یعنې لفظ د طلاق وغیره ئی ذکرنه کړلو ددې الفاظو شرعې حکم څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: روح الامین تورډهیرصوابی.......... ۱۹۹۰ء۱۵۱۴

**الجواب:** عمروباندې ښځه طلاقه شوې نه ده ځکه دایمین عرفی کلمادې شرعی په دې طریقه دې کلما تزوجت امراة فهی طالق،کما فی الشامیه۳:۲۴۷ باب الصریح طبع حلبی،انه قد اشتهر فی رساتیق شروان ان من قال جعلت کلما اوعلی کلما انه طلاق ثلاث معلق وهذا باطل ومن هذیانات العوام﴿۳﴾ انتهٰی.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۳۷ باب التعلیق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان لفظ حرام معناه عدم حل الوطء وداوعیه وذلک یکون بالایلاء مع بقاء العقد وهو غیر متعارف ویکون بالطلاق الرافع للعقد وهو قسمان بائن ورجعی لکن الرجعی لا یحرم الوطء فتعین البائن و کونه التحق بالصریح للعرف لا ینافی وقوع البائن به فان الصریح قد یقع به البائن کتطلیقة شدیدة ونحوه الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۰۴ قبیل مطلب لااعتبار بالاعراب هنا)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۵ اول باب الصریح)



## عوامی طلاق کلما لغوه اوبې اثره دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې داسې قسم اوخوری چه، ،زه په طلاق کلما اوپه الله باندې قسم کومه اوقران باندې قسم دې چه کوم شخصی تنظیم اودشخصی پالیسې لاندې په کوم تحریک کښې به حصه نه اخلم اوپه طوردمنافقت به په دې جبه کښې شمولیت نه کوم، ،داواقعه دیو اتحاد په صورت کښې شوې وه چه افغانی طالبانوپه عرض داتحاد او تاکید دا الفاظ لیکلی وواوس په مخالفت کولوباندې طلاق کلما واقع کیږې؟ بینوا توجروا

المستفتی:قاری غلام فاروق افغانی دارالعلوم رحمانیه پشاور۱۹۸۵ء۱۰۱\۱۲۱۱

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې صرف یو کفاره په تقدیردحنث واجب کیږی﴿۱﴾ اودا طلاق کلما شرعی طلاق کلمانه دې بلکه عوامی طلاق کلمادې کوم چه لغوه اوبې اثره دې، کما فی ردالمحتار ۲: ۵۹۰ باب الصریح قداشتهر فی رساتیق شروان ان من قال جعلت کلما اوعلی کلما انه طلاق ثلاث معلق وهذا باطل ومن هذیانات العوام﴿۲﴾.وهوالموفق

## .څما کلما طلاق دې.. سره صرف یوطلاق رجعی واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه دووډلو کښې دقتل معامله وه بیادمقتول اوقاتل ددواړوډلوپه مینځ کښې فیصله شوې وه لیکن د مقتول دطرفه یو کس چه کله قاتل ځانته اوموندونوپه قاتل باندې دوه ډزې وکړې لیکن ټوپک خراب شوهغه بچ شو ،بیا دې ډزې کولووالـه قاتل ته اووئیل چه زه تاصرف په دې شرط پریږدم چه ته کلما طلاق اوکړې،قاتل درې

---

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: والمنعقدة مایحلف علی امر فی المستقبل ان یفعله اولا یفعله واذا حنث فی ذلک لزمته الکفارة.

(هدایة ۲:۴۵۷ کتاب الایمان)

﴿۲﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ۲:۴۶۵ اول باب الصریح)

خله دخاوروګټې اوغورځول اووئي وئيل چه زما کلما طلاق دي،ليکن داکس
قاتل کلما طلاق نه پيژندلو اوس ددي طلاق څه حکم دي؟بينوا توجروا

المستفتی: مولوی نعيم الله ساوتهٔ وزيرستان........ ۸۱۸۱ء۱۹۸۴

**الجواب:** په دي قاتل باندي باقاعده يو طلاق رجعی نافذ کيږي، په کوم کښې چه دعدت تيرولو نه مخکښې زبانی رجوع کافی ده﴿۱﴾ اوپه ديکښې نورخطرات نشته دي، کما فی ردالمحتار ۲: ۵۹۰ باب الصريح قداشتهر فی رساتيق شروان ان من قال جعلت کلما اوعلی کلما انه طلاق ثلاث معلق وهذاباطل ومن هذيانات العوام انتهی﴿۲﴾ په هرحال دا شرعی طلاق کلمانه دي بلکه عوامی طلاق کلما دي-وهوالموفق

## د طلاق کلما حنث کښې د عمد او نسيان او د حيلی اومخرج حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه يو کس قسم اوکړو چه زه به داکار نه کوم اوکه چرته اومی کړو نوچه کومې ښځې سره زه نکاح کوم هغه طلاقه ده، ددې نه پس دده نه هغه کارهيرشو اووئی کړلو نوده خپل ځان حانث اوګڼړلو اودوباره ئې قصدا اوعمدا هغه کار اوکړلو، اوس ددې څه حکم دې ايا په ده باندې هميشه دپاره نکاح حرامه شوه يادخلاصی دپاره څه حيله شرعيه شته؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالقادرهزاروی

**الجواب:** په حنث کښې دعمد اونسيان يو حکم دې، من فعل المحلوف عليه مکرها

﴿۱﴾ قال العلامة القهستانی: وصريحه ما استعمل فيه دون غيره مثل انت طالق ومطلقة وطلقتک...... ويقع به ای بمثل ما ذکر طلقة رجعية لا يحتاج الی تجديد النکاح ولا رضاء المرأة الخ. (جامع الرموز ۱:۵۵۸ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۵ اول باب الصريح)



اونا سيا فهوسواء﴿۱﴾ (وهکذا فی جميع کتب الفروع)﴿۲﴾ اوحيله کومه چه فقهاؤ په کتب فروع کښې ذکر کړې ده واکتفی بعبارة الاشباه والنظائر ۴۲۰ قوله فالحيلة ان يزوجه فضولی ويجيزه بالفعل﴿۳﴾ هذاهو المختار کما فی الزيلعی وعليه الفتوی کما فی منح الغفار نقلا عن الخانية﴿۴﴾.وهوالموفق

## په الفاظ د طلاق کلما کښې حيله او د اجازت بالوطی مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه﴿۱﴾ يو طالب العلم اووئيل چه که چرته زه دې کمرې ته داخل شوم نوپه ما باندې کلما تزوجت طلاقه ده، بيا دا طالب العلم کمرې ته داخل شو ددې نه پس دا طالب العلم کوم مفتی صاحب ته لاړو مفتی صاحب اووئيل چه ته دفضولی په ذريعه نکاح کولې شی ددې نه پس دا طالب العلم کورته راغلو او پلار ته ئې ذکر کړو چه ما داسې طلاق اچولې دې اودنکاح فضولی نه بغير څه چاره نشته دې بيا پلار زوې ته نکاح فضولی اوکړله اودمسئلی بيانولو نه پس ئې داهم اووئيل چه ته زما وکيل نه ئې اوتاته اجازت دې ددې څه حکم دې؟﴿۲﴾ زمونږ علاقه کښې دنکاح فضولی نه پس دوو کالوپورې واده نه شی کولې اوخاوند خپلې ښځې سره هم نه شی ملاويدې، که چرته په کومه طريقه باندې ورسره ملاؤشی نو د

﴿۱﴾ (هداية ۲:۴۵۷ کتاب الايمان)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو الحالف مکرها او مخطئا او ذاهلا او ساهيا او ناسيا.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۵۳ مطلب فی الفرق بين السهو والنسيان)

﴿۳﴾ (الاشباه والنظائر ۳۹۸ الفن الخامس فی الحيل السادس فی النکاح)

﴿۴﴾ قال العلامة الشامی: هذا هو المختار کما فی التبيين وعليه اکثر المشائخ والفتوی عليه کما فی الخانية.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۱۵۰ مطلب حلف لا يتزوج فزوجه فضولی)

وطی په دوران کښې عزل کوی یا د منصوبه بندۍ څه طریقه اختیاروی ددې
متعلق وضاحت اوفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالصمد بلوچستانی........۱۹۸۹ء/۱/۱۳

**جواب:** (۱) په ظاهره دا الفاظ موجب طلاق نه دی ځکه چه په دې کښې شرط او جزاء متحقق نه دی﴿۱﴾ او قسم او طلاق کښې صرف نیت ناکافی وی. الا اذا تلفظ بهذا، که چرته ما فلانې کار اوکړلو نو هر ځل چه زه نکاح کوم نو په ما باندې ښځه مطلقه ده. فیبتلی بما هو شاق ویحتال بما هو مسطور فی السوال کما فی الهندیة﴿۲﴾ والشامیه﴿۳﴾. (۲) کوم وخت چه دې کس ته اطلاع اوشی چه زما د فلانې سره عقد فضولی شویدې نو په دې کس باندې فی الحال اجازت ورکول ضروری نه دی پس کله چه دا کس اجازت بالوطی اوکړی نو ددې نه پس فلانې ته زوجه وئیل ضروری نه دی. وهو واضح﴿۴﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: قلت لکن قال فی نور العین الظاهر انه لا یصح الیمین لما فی البزازیة من کتاب الفاظ الکفر انه قد اشتهر فی رساتیق شروان ان من قال جعلت کلما او علی کلما انه طلاق ثلاث معلق وهذا باطل ومن هذیانات العوام فتأمل.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۵ باب الصریح)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: اذا قال کل امرأة اتزوجها فهی طالق فزوجه فضولی واجاز بالفعل بان ساق المهر ونحوه لا تطلق بخلاف ما اذا وکل به لانتقال العبارة الیه.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۴۱۹ الفصل الثانی فی تعلیق الطلاق بکلمة کل وکلما)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: اذا قال کل امرأة اتزوجها طالق والحیلة فیه ما فی البحر من انه یزوجه فضولی ویجیز بالفعل کسوق الواجب الیها.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۳۷ باب التعلیق)

﴿۴﴾ قال العلامة محمد امین: (قوله وبالفعل) کبعث المهر او بعضه بشرط ان یصل الیها وقیل الوصول لیس بشرط نهر وکتقبیلها بشهوة وجماعها لکن یکره تحریما لقرب نفوذ العقد من المحرم بحر قلت فلو بعث المهر اولا لم یکره التقبیل والجماع لحصول الاجازة قبله. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۱۵۰ مطلب حلف لا یتزوج فزوجه فضولی)



## په طلاق کلما کښې حیله او په مذهب غیر باندې دفتوی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې که چرته یو کس او وئیل که چرته زه، لوفعلت هذا الفعل الحرام فکلما تزوجت امرأة فهی علی طالق ثلاثا،، او وروسته هغه حرام فعل دده نه صادر شی نو ایا شرعا دده دپاره څه طریقه دنکاح کولو شته او که نه؟ همدا رنګی ددې باره کښې د مذهب غیر د فتوی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد انور حقانی کوئټه شهر.........۱۲ ربیع الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** کوم کس چه په طلاق کلما سره قسم اوکړی مثل ان یقول: ان فعلت کذا فکلما تزوجت امرأة فهی علی طالق ثلاثا، نو ددې دپاره د توسط فضولی حیله بهرحال جائزده، لما فی ردالمحتار ۲: ۶۱۱ والحیلة فیه ما فی البحر من انه یزوجه فضولی ویجیز بالفعل کسوق الواجب الیها انتهی﴿۱﴾ قلت لایلزم القبول بالفعل فی مجلس النکاح نعم یلزم الایجاب والقبول فی ذلک المجلس، او دا کس د ضرورت په وخت کښې یعنی کله چه لواطت، زنا، استمناء بالکف وغیره کښې واقع کیدل متیقن یا مظنون وی نو په مذهب د شوافعو باندی عمل کولې شی لیکن د عادل مفتی دفتوی نه پس، لما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۱۳ بل افتاء عدل﴿۲﴾ نوټ: کله چه یو حنفی، په مذهب غیر باندې فتوی ورکړی نو دا به حنفی شماریږی، کما فی حیلة الناجزة﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۳۷ باب التعلیق)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۳۹ مطلب فی معنی قولهم لیس للمقلد الرجوع عن مذهبه)

﴿۳﴾ قال الشیخ اشرف علی التهانوی: د غیر مذهب اخستلو دپاره دا شرط دې چه د اتباع هویٰ په وجه نه وی بلکه د داعیه ضرورت په وجه وی او ضرورت هغه معتبر دې کوم چه اهل بصیرت علماء ضرورت اوګڼړی او دا هم ضروری ده چه فتویٰ ورکونکې داسې کس وی چه هغهٔ د یو ماهر استاذ نه فن حاصل کړې وی.......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**د معلق بالشرط طلاق عجیبه صورت او د دویم واده د پاره حیله اوچل**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو کس په وخت د نکاح کښې دا لاندینی الفاظ اولیکل او ورئې کړل، چه فلانئ منکوحه د مورپه جوند کښې که چرته کوم دویم کس سره نکاح حقیقی یا غیر حقیقی، فضولی یا غیر فضولی، وکالة یا اصالة یا دلالة برابره خبره ده که په کومه د مذاهبو اربعو کښې جائز وی او وې کړه نو دویمه ښځه د مسماة فلانئ په موجودګی کښې د مذکورة الصدر په وصف سره په نکاح کښې راوړه نو هغه مطلقه مثلثه طلاق باندې طلاقه ده، یعنې درې شرائطو سره طلاقه طلاقه طلاقه ده، اوس هغه کس ددې ښځې په موجودګې او زندګی کښې ددویمی ښځې سره نکاح کوی بلکه ښځې هم اجازت ورکړیدې، اوس د مذکوره لیک په موجودګې کښې دویم واده د پاره څه طریقه ده، بینوا توجروا

المستفتی: قاری محمد اکبرشاه ګیلانی مری هزاره..........۱۷۱۳۱ء۱۹۷۵

**الجواب:** دې کس ته بغیر ددینه هیڅ تدبیر او حیله نشته دې چه اولاکومې غیر مرغوبې ښځې سره نکاح اوکړی نو هغه به مطلقه مغلظه شی او ددینه پس مرغوبې ښځې سره نکاح اوکړی په دیکښې څه خطره نشته دې، ځکه چه هغه کلما او دهغې کوم مرادف لفظ نه دې استعمال کړې، کما فی الدر المختار: وفیها کلها تنحل ای تبطل الیمین ببطلان التعلیق اذا وجد الشرط مرة الا فی کلما الخ، هامش ردالمحتار ۲: ۶۸۸﴿۱﴾. وهو الموفق

**که ستاځوی ته مې رشته ورکړله نو په ما**
**باندې خپله ښځه طلاقه ده. نه مخلصی او حیله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید خپلې خینې ته د

(بقیه حاشیه).. او اهل بصیرت دهغه په فقه کښې د مهارت تامه په حاصلیدو باندې شهادت ورکوی، لما قال الشامی فی عقود رسم المفتی الخ، (حیله ناجزه ... ۳۴، ۳۵ دغیرمذهب اختیارولو باندې اشکال او جواب.

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۴۲ مطلب ما یکون فی حکم الشرط باب التعلیق)



جهګړې په دوران کښې اووئیل که چرته ماستاځوې ته دخپلې لور رشته درکړله نو په ما باندې خپله ښځه طلاقه ده، اوس هغه رشته ورکول غواړی لیکن په بل صورت کښې خپلولې کښې دفساد خطره ده ددې دحل متعلق یو مولوی صاحب وئیلی دی چه دجینې پلار زید به په دې مجلس دانعقاد نکاح کښې نه وی او داجینې په خپله بالغه ده لهذا کوم دویم کس دې وکیل جوړ کړی نو په دې صورت کښې نکاح به هم اوشی او پلار یعنې زید به دیمین د طلاق نه هم بچ شی، ایا په شرعه کښې دا طریقه درست ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی محمد دین کوټ فتح خان..........۹۱۹ء۱۹۷۲

**الجواب:** دا تدبیر او حیله درسته ده﴿۱﴾ او که چرته دې کس په دې کلام باندې زیادت نه وی کړې نو رشته ورکولو په صورت کښې یو طلاق رجعی واقع کیږی﴿۲﴾ په کوم کښې چه زبانې مراجعت کافې دې، تجدید دنکاح یاد تحلیل ضرورت نشته دې﴿۳﴾- وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویحنث بفعله وفعل ماموره فی النکاح لا الانکاح، قال ابن عابدین: ای التزویج فلا یحنث به الا بمباشرته وهذا فی الولد الکبیر او الاجنبی لما فی المختار وشرحه حلف لا یزوج عبده او امته یحنث بالتوکیل والاجازة لان ذلک مضاف الیه متوقف علی ارادته لملکه وولایته وکذا فی ابنه وبنته الصغیرین لولایته علیهما وفی الکبیرین لا یحنث الا بالمباشرة لعدم ولایته علیهما فهو کالاجنبی عنهما فیتعلق بحقیقة الفعل. (ردالمحتار مع الدر المختار ۳: ۱۲۹ مطلب حلف لا یزوج عبده کتاب الایمان)

﴿۲﴾ قال العلامة الحداد الیمنی: واذا اضاف الی شرط وقع عقیب الشرط مثل ان یقول ان دخلت الدار فانت طالق هذا بالاتفاق لان الملک قائم فی الحال والظاهر بقاؤه الی وقت الشرط ولانه اذا علقه بالشرط صار عند وجود الشرط کالمتکلم بالطلاق فی ذلک الوقت. (الجوهرة النیرة ۲: ۱۱۰ کتاب الطلاق)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: الرجعة ابقاء النکاح علی ما کان مادامت فی العدة...... ان یراجعها بالقول...... وان راجعها بالفعل مثل ان یطأها او یقبلها بشهوة الخ. (فتاویٰ عالمګیریة ۲: ۴۶۸ الباب السادس فی الرجعة وفیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

## د مطلقه مغلظه نه دوباره نكاح باندې طلاق معلق نه دويستلوحيله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره كښې چه يو كس باندې جبرا طلاق ثلاثه واچولې شو، او بيا داشرط هم جبراپه ده باندې اولګولې شو كه چرته تادوباره ددې ښځې سره دنكاح خواهش اوكړواوپه نكاح باندې دې واخسته نودابنځه بيا په تاباندې طلاقه ده په طلاق ثلاثه باندې، اوس په شريعت كښې ددې څه حكم دې؟اوددې مشكل نه دويستلودپاره څه لاره ده؟ بينوا توجروا

المستفتی:قاری محمد خان بانډه پيران بفه مانسهره

**الجواب:** په صورت مسئوله كښې په دې سړې باندې ښځه مطلقه مغلظه شويده بغير دتحليل نه چاره نشته دې﴿۱﴾اودتحليل نه پس كه چرته دې سړې دې ښځې سره اصالةًياوكالةً عقدنكاح وكړه نودوجودالشرط دوجې نه دوباره مطلقه مغلظه كيږې﴿۲﴾ لهٰذا دتحليل نه پس كوم فضولی يعنی داسې كس كوم چه دې خاوندوكيل نه وې جوړكړې دده دپاره عقدنكاح وكړی اوداكس

---

﴿۱﴾قال العلامة احمد بن محمد القدوری: وان كان الطلاق ثلاثا فی الحرة...... لم تحل له حتی تنكح زوجا غيره نكاحاصحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها.
(القدوری علی صدر اللباب فی شرح الكتاب ۲:۱۸۳ كتاب الرجعة)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفی: ويحنث بفعله وفعل ماموره لم يقل وكيله لان من هذا النوع الاستقراض والتوكيل به غير صحيح فی النكاح، قال العلامة الشامی: فلو حلف لا يتزوج فعقده بنفسه او وكل فعقد الوكيل حنث.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۱۲۹ مطلب حلف لا يتزوج)



(خاوند) ئې قبول بالقول ونه كړی بلكه قبول بالجماع وغيره وكړی، صرح بهذه الحيلة فی ردالمحتار﴿۱﴾والاشباه والنظائر﴿۲﴾وغيره.

**نوټ:**...دفسخ يمين د كولوپه نسبت داحيله بهتره ده، صرح به الشامی﴿۳﴾ وهوالموفق

## كه چرته مادې كس سره ددويمې او دريمې نكاح نه پس هم خبرې اوكړی نودرې طلاقه.نه مخلص اوحيله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره كښې چه يو سړې اووئيل كه

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی: حلف لا يتزوج فزوجه فضولی فاجاز بالقول حنث وبالفعل لا يحنث به يفتی خانية. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۱۵۰ مطلب حلف لا يتزوج فزوجه فضولی)

﴿۲﴾قال العلامة ابن نجيم: حلف لا يتزوج فالحيلة ان يزوجه فضولی ويجيزه بالفعل.
(الاشباه والنظائر ۳۹۸ الفن الخامس، الحيل فی النكاح)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدين: (قوله وللحنفی تقليده الخ) ای تقليد الشافعی قال فی البحر وللحنفی ان يرفع الامر الی شافعی يفسخ اليمين المضافة فلو قال ان تزوجت فلانة فهی طالق ثلاثا فتزوجها فخاصمته الی قاض شافعی وادعت الطلاق فحكم بانها امرأته وان الطلاق ليس بشيئ حل له ذلک الخ...... وليس للمفتی الافتاء بالرواية الضعيفة وكونها افتی بها كثير من ائمة خوارزم لا ينفی ضعفها ولذا تقدم عن الصدر انه لا يحل لاحد ان يفعل ذلک وكذا ما تقدم عن الحلوانی من انه يعلم ولا يفتی به فلو ثبتت هذه الرواية عن محمد او كانت صحيحة لبنوا الحكم عليها ولم يحتاجوا الی بنائه علی مذهب الشافعی فهذا يدل علی انها رواية شاذة كما يشير اليه كلام المجتبیٰ المار فافهم هذا وفی البحر عن البزازية والتزوج فعلا اولیٰ من فسخ اليمين فی زماننا وينبغی ان يجئ الی عالم ويقول له ما حلف واحتياجه الی نكاح الفضولی فيزوجه العالم امرأة ويجيز بالفعل فلا يحنث وكذا اذا قال لجماعة لی حاجة الی نكاح الفضولی فزوجه واحد منهم. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۳۸،۵۳۹ مطلب فی فسخ اليمين المضافة الی الملک)

چرته مافلانی کس سره خبرې اوکړې نوزماپه ښځه باندې درې طلاقه دې اوکه چرته ددويمې اودريمې نکاح نه پس مې هم خبرې اوکړې نودرې طلاقه، اوس که چرته ده ددې کس سره خبرې اوکړې نودطلاق نه پس به حلاله کوی اوبيابه نکاح کوی اوس که چرته ددويمې نکاح نه پس ئې خبرې اوکړې نواياپه دې اولنی حلالې سره دااول تعليق باطل شويدې اوکه نه؟ که چرته باطل نه وې نو بيا خبرې کول هم ضروری دی؛ په کومه طريقه دوباره دطلاق نه بچ کيدې شی؟ بينوا توجروا

المستفتی: لطف الله حقانی شبقدرقلعه چارسده...... ۱۲رمضان۱۴۰۹ھ

**الجواب**: داکس ددې دويمې نکاح نه پس ددې کس سره دې خبرې نه کوی او ښځې ته دې يوطلاق ورکړی اوکله چه عدت تيرشی نودريم ځل نکاح دی اوکړی اوددې نه پس يوطلاق دې ښځې ته دجماع اوخلوت نه مخکښې ورکړی نوددې څلورمې نکاح نه پس داکس ددې کس سره خبرې کولې شی ليکن ددې سړی په خپله ښځه باندې ديوطلاق حق پاتې دې۔ وهوالموفق

## درې طلاق تعليقی نه د بچ کيدلو د پاره د فقهاء ذکرکړې شوې حيله

**سوال**: څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه درې رونړه دې يوپه وجه دکورنې ناراضګې خپل اسباب بل کورته يوړل، سخردته راغلواوتپوس ئې اوکړوچه څه وجه ده چه دومره خفه شوې ئې واپس خپل رونړوته کور راوړه، تابنومشترک خوشحالې سره زندګې تيرولـه، ده په غصه کښې دا الفاظ اووئيل که چرته زه ټوله زندګې ددې رونړوسره دخيراوشريعنی غم او خوشحالئ کښې شرکت اوکړم اوتعلق اوساتم نوزماښځه په ثلاثه طلاق طلاقه ده، يعنې زه ترمرګ پورې ټوله زندګې ددوې سره کوم قسم تعلق نه ساتم، اوس پيش نظردصله رحمئ کښې اودرورولی پيش نظرددې نه علاوه دځانله ژونددتيرولواودکورپه يواځې والې په وخت دعدم وجود کښې د تعلق ساتلونه چاره نشته، اوس ددې شرعی حل څه دې؟ آيا داسې درست



دې چه داسړې خپل ځان حانث کړی، بياحلاله اوکړی، بعض علماء دا تدبير خودلی چه ته رجعی طلاق ورکړه اوعدت تيرکړه، اودهغې نه پس تعلقات اوساته يعنې واپس يوځائې شی، اوبياتجديدنکاح اوکړه نو دطلاق مغلظه نه به هم بچ شې اودصله رحمې دګناه نه به هم بچ شی، ايادا حيله صحيح ده؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولانا عمادالدين قريشی فورټ سنډيمن بلوچستان۱۹۷۹ء۸۱۷۱

**الجواب**: فقهاء کراموداتدبيرپه خپل عباراتو کښې ليکلی دی لهذادادعمل لاندې راوستلې شی﴿۱﴾-وهوالموفق

## په مقرره تاريخ باندې رقم داداء کولو دطلاق قسم اوکړی بيا دچيک په ذريعه بينک وروسته رقم اوکړی...؟

**سوال**: څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه زيداووئيل چه فلانې تاريخ ته مې ستادومره رقم ادانه کړلونوزماښځه درې طلاقه ده، په مقرره تاريخ باندې زيدعمروته چيک ورکړوچه دادبينک نه کيش کړه، عمروپه هم هغه ورځ چيک واخستواوبينک ته لاړو، منيجرهغه ته اووئيل چه د زيدرقم خو مونږسره نشته دې، ليکن مونږ به ئې تاسوته درکړو، په دويمه ورځ باندې په بينک کښې چټی وه، ددې نه پس دبينک منيجرعمروته مطلوبه رقم ورکړو

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: فحيلة من علق الثلاث بدخول الدار ان يطلقها واحدة ثم بعد العدة تدخلها فتنحل اليمين فينكحها. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۴۵ قبيل مطلب اختلاف الزوجين فی وجود الشرط)

وقال العلامة ابوبكر الحداد اليمنی: (قوله ولم يقع شیئ) لانعدام المحلية مثل ان يقول ان دخلت الدار فانت طالق ثم طلقها قبل دخول الدار فدخلت بعد الطلاق وانقضاء العدة ثم يستأنف العقد عليها وتدخل لا يقع شیئ لانحلال اليمين. (الجوهرة النيرة ۲: ۱۱۲ كتاب الطلاق)

آیاد صورت مذکوره مطابق دزید منکوحه طلاقه شوه او که نه؟ دبینک منیجر د اداکولو درقم په صورت کښې وکالت شو یا کفالت یا حواله؟

بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمتین مفتی ضلع پونچهه آزاد کشمیر.... ۱۹۷۳ء ۱۰/۱۴/۱

**الجواب:** چونکه زید په مقرره تاریخ باندې رقم اداکړې نه دې نه اصالة او نه وکالة. لهذا په ده باندې ښځه مطلقه شوې ده، لان المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط کما فی شرح المجلة ۵۴ وغیره ﴿۱﴾ او منیجر وکیل وی یعنی د مالکانو دبینک او دهغوی د طرفنه بعض خلقو ته د قرض ورکولو مجاز وی پس په ظاهره دا معامله حواله ده- وهو الموفق

﴿۱﴾ (شرح المجلة ۱: ۲۳۲ القاعدة: ۸۲)





# فصل فی عد الطلاق والقاء الاحجار وغیرهما

## صرف.یودوه درې.. وټیلو سره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره چه دیوسړې کوژدن اوشوه، نکاح هم اوشوه، درخصتې نه مخکښې دناراضګې دوجې نه دې سړی صرف یوده درې وټیلې دی، دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا مفتی سید قمرصاحب دارالعلوم سرحد پشاور ۱۴۰۱/۷/۱۵ھ

**الجواب:** داالفاظ دطلاق دپاره موضوع دې نه دانشاء د طلاق دپاره ﴿۱﴾ همدغه رنګې دیکښې دکوم قسم اضافت او حکم هم نشته دې ﴿۲﴾ پس ددې الفاظو وټیلو سره دطلاق واقع کیدو څه وجه نشته دې. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة...... وبه ظهران من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لا صریحا ولا کنایة لا یقع علیه..... وکذا ما یفعله بعض سکان البوادی من امرها بحلق شعرها لا یقع به طلاق وان نواه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ بعید مطلب طلاق الدور کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ که چرې دا شمیر په عرف کښې طلاق اوګڼلې شی او په دې کښې دطلاق حکم فرض کړې شی نوبیا هم طلاق نه واقع کیږی. په هندیه کښې دی.

سئل الامام احمد القلانسی: عمن وکز امرأته وقال اینک یک طلاق ثم وکزها ثانیا وقال اینک دو طلاق وکذا الثالث ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## کانړي غورځول او د یو دوه درې وئیل وغیره په باره کښې تفصیلي فتویٰ

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه(١)که چرته یو خاوند خپلې ښځې ته دطلاق په نیت باندې درې کانړې ورواغورزوې-(٢) یاکانړې اوغورزوې اویودوه درې اووائی-(٣) اویاداالفاظ اووائی یودوه درې ته په ماطلاقه یې اویاداالفاظ اووائی چه ته په ما طلاقه یې یودوه درې،ددې صورتونوحکم شرعی څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......١٩٨٨ء١١/٧

**الجواب:** واضحه دې وی چه دطلاق دارومدارپه لفظ باندې دې یاقائمقام دلفظ باندې ، کما فی ردالمحتار ١: ٣٠٦ لان الطلاق اوالعتق لایتعلق بالنیة بل بالقول حتی لونوی طلاقها اوعتقه لایصح بدون لفظ(١)وفی ردالمحتار ٢: ٥٧٤(قوله ورکنه لفظ مخصوص)هوما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح اوکنایة فخرج الفسوخ علی مامر.واراداللفظ ولوحکما لیدخل الکنایة المستبینة واشارة الاخرس واشارة الی العددفی قوله انت طالق هکذا(٢)

(بقیه حاشیه)قال تطلق ثلثا فشیخ الاسلام یقول سمی الضرب طلاقا فیبطل والامام احمد یقول سمی الطلاق فیقع.

(فتاویٰ عالمگیریة ١:٣٨٢الفصل السابع فی الطلاق بالفارسیة) فنقول: وفی الصورة المذکورة لم یسم الطلاق فلا وجه للوقوع عند القلانسی ایضا، او په دے الفاظو کی اضافت هم نشته ، وقال ابن عابدین: ولکن لا بد فی وقوعه قضاء ودیانة من قصد اضافة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٦٧ مطلب ان الصریح لا یحتاج فی وقوعه الی النیة).( ازمرتب)

(١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١:٣٢٢ فروع فی النیة قبیل باب صفة الصلاة)

(٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٥٣ اول کتاب الطلاق)



پس ددې قاعدې په بناء باندې کانړې غورزول یولغوکاردې په دې سره طلاق نه واقع کیږی، کمافی ردالمحتار ٢: ٥٧٤ وبه ظهر ان من تشاجرمع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکرلفظا لاصریحا ولاکنایة لایقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره وکذاما یفعله بعض سکان البوادی من امرهابحلق شعرها(احلقی راسک)لایقع به طلاق وان نواه(١).وفی ٢: ٥٩٠ فلا یقع بالقاء ثلاثة احجارالیها اوبامرها بحلق شعرها وان اعتقدالالقاء والحلق طلاقا کما قدمناه(٢)اوددې قاعدې په بناء باندې دیودوه درې حکم هم همدغه دې ځکه چه داالفظ نه صریح دې اونه کنایه اونه په دې کښې اثبات اونه نفی موجودده اونه په دې کښې ښځې دطرف ته اضافت موجود دی.

اوپه صورت ثالثه کښې یوطلاق واقع کیږې ځکه که چرته د ،،یودوه درې،، لفظ سره کانړې شمارل مقصودوی نومعاملهٔ واضحه ده،اوکه چرته دطلاق شمارل مقصودوې نوچونکه په دې کلام کښې ثلاثا یاددې د مساوی لفظ ذکرنشته دې نوبالضرورة دخاوند نیت شماربه مقصودوی یعنی خاوند ددې صریح لفظ نه ددرې طلاقه ورکولو قصداواراده کړې وه نوددې شمار کوی اوقاعده داده چه صریح کښې دانیت نه درست کیږی، کما فی شرح التنویر وغیره(٣)،پس رکن د طلاق صرف باقی مانده لفظ کیږی.

واضحه دې وې چه د یودوه درې لفظ د مابعد سره نه دې تړلې شوې، نه مفعول مطلق دې اونه مفعول به وغیره دې، کما لایخفی علی من راجع الی المحاورة،پس که چرته ددې نه دطلاق شماره مرادواخلی نوبیاهم مؤثرنه دې،

(١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٥٣ بعید مطلب طلاق الدور)

(٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٦٥ باب الصریح)

(٣) قال العلامة الحصکفی: ویقع بها ای بهذه الالفاظ وما بمعناها من الصریح...... واحدة رجعیة وان نوی خلافها من البائن او اکثر...... اولم ینو شیئا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٤٦٦ باب الصریح)

ونظیره مافی ردالمحتار ۲: ٦٢٧ فلوقال انت طالق وسکت ثم قال ثلاثا فواحدة﴿۱﴾ ځکه چه په دې صورت کښې ثلاثا نه درې مراددې لیکن کله چه د محخکښې جملی سره مربوط نه وو نولغوشو، نه صریح دې اونه کنایه، نو همدارنګې کله چه د کلام په اول کښې وې لیکن مربوط نه وی نولغو کیږی- او د صورت رابعه حکم هم د ثالثه پشان دې﴿۲﴾- وهوالموفق

## ،، یودوه دری په ماطلاقه ده،، متعلق استفسارباندې تفصیلی جواب

**سوال:** ریکارډ کښې سوال موجود نه دې صرف د مسئلی اهمیت او د شیخ الحدیث مولانا عبد الحق صاحب رحمة الله علیه بانی او مهتمم جامعه حقانیه اکوړه خټک د من جمله تصحیح او د تصویب د وجهې نه جواب پیش کولو باندې اکتفاء کولو سره په فتاوی کښې شاملولې شی-

استفتاء نمبر ٥٩٥٧......١٩٧٢،١١/٣١/١١

**الجواب:** محترم المقام جناب قاضی صاحب دامت برکاتهم

السلام علیکم نه پس عرض دې چه مسمی فلان اوده د رشته دارو بیان

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۴۹۵ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لابه)

﴿۲﴾ وقد رأیت ما افاده سیدی وشیخی ومولائی المحدث الکبیر والفقیه النبیل المفتی الاعظم العارف بالله مولانا مفتی محمد فرید دامت برکاتهم علی هامش ردالمحتار بقلمه حیث قال: اعلم انه اذا قال الزوج "(په ماطلاقه ئې یو دوه درې)" والقی ثلثة احجار فقیل انها تصیر مغلظة وقیل لا لانه یعد القاء الاحجار ظانا انه یقع به الطلاق وقیل اراد عدد التطلیقات، قلت: فلا یقع الطلاق بالشک مع ان العرف علی الاول ای عد القاء الاحجار. (هذا من افادات حضرت مفتی اعظم علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۳ بحث ورکنه لفظ مخصوص)



دادې چه ده درې کاڼړی وغیره اوغورزول او دا الفاظ ئې وئیلې دی، ،یودوه درې په ما طلاقه ده، ،نو ددې متعلق باوجود د کافی تتبع صریح جزئیة ملاؤ نه شوه ددې وجې نه ما عرف او قواعدو ته اوکتل د یو طلاق رجعی د وقوع فتوی مې ورکړیده ځکه چه ``یودوه درې، ،د عدد او شمار کولو د پاره استعمالیږی نو که چرته خاوند داووائی چه، ،په ما په درې شرطه طلاقه ده یو دوه درې، ،نو د لته تعلیظ کښې څه شک او شبه نشته برابره خبره ده که د طلاق شمار مرادوې او که د کاڼړو، لیکن کله چه دا اوائې، ،چه په ماطلاقه ده یودوه درې``یا دا اووائی، ،یو دوه درې په ماطلاقه ده، ،نو د خاوند مراد که چرته د کاڼړو شماروی نو په دې سره طلاق نه واقع کیږی. لعدم کونه من الفاظ التطلیق لا من الصریح ولا من الکنایة، او که چرته زړه کښې نیت د درې طلاقو شمار مرادوی نو په صریح کښې دا نیت نامقبول دې. فی الدر المختار: ویقع بها ای بهذه الالفاظ وما بمعناها من الصریح ......واحدة رجعیة وان نوی خلافها من البائن اواکثر. (هامش الرد۲: ٤٤٢)﴿۱﴾ او که چرته دې الفاظو، ،یودوه درې، ،سره طلاق ورکول مرادوی نو د الفظ عد (شماره) د پاره موضوع او مستعمل دې نه د انشاء د طلاق د پاره، لهذا ددې سره طلاق واقع کیدل به خلاف قاعده امروی، ونظیره مافی ردالمحتار: وکذا مایفعله بعض سکان البوادی من امرها بحلق شعرها لایقع به الطلاق وان نواه (ای لعدم ذکره لفظ الطلاق لا صریحا ولا کنایة) (ردالمحتار۲: ٤٢٨)﴿۲﴾ پس باقې پاتې شو د الفظ، ،په ماطلاقه ده، ،نو په دې سره یو طلاق رجعی واقع کیږی، د دې فتوې نه پس ما د حضرت شیخ الحدیث صاحب مدظله رحمة الله علیه سره هم مشوره اوکړله هغه اوفرمائیل چه صرف تجدید د نکاح کافی دې، شاید هغوې په دې بنا باندې دا جواب ورکړې دې چه دا مجموعه درې کلمات بغیر د کمی او زیاتی نه طلاق د پاره استعمالیږی نو د مجموعې نه به یو طلاق بائن واقع شی، لعدم کونها صریحة، او د دېنه پس صریح هم بائن کیږی. لهذا تجدید د نکاح کافی کیږی، دا

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۶ باب الصریح)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق بعد مطلب طلاق الدور)

فتوٰی ما کافی سوچ نه پس لیکلی ده په دې باندې ځماانشراح صدردې تاسو داپه مکرر تنقیدی نظرسره مطالعه کړئ که چرته ستاسو تسلی اونه شوه نوموږته په غلطئ باندې اطلاع اوکړئ ددې دپاره چه موږئې مخ نیوې اوکړو۔وهوالموفق

**یودوه درې ته په ما باندې مور خور او**
**درې کانړې ئی هم اوغورزول۔ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوسړې خپلې ښځې ته دجنګ اوجدال په وجه غصه کښې راغلو وئی وئیل چه یودوه درې ته په ما باندې مورخوربلاحرف تشبیه اوددې الفاظوپه وئیلوسره درې کانړې هم اوغورزوې ښځې طرفته،لیکن صراحة لفظ طلاق ئې اونه وئیلې،فتاوی دیوبند ۵: ۸ مفتی عزیزالرحمٰن فرمائې چه لفظ دموراوخورکه چرته دطلاق په نیت هم اووائې نوطلاق نه واقع کیږې ځکه چه داالفاظ نه خودکنایاتود طلاق نه دې اونه داالفاظ دظهارنه دې اونه ایلاءده،اوفرمائې چه شامې کښې دې چه، ویدل علیه ماذکره عن الفتح من انه لابدمن التصریح بالارادة الخ،وفیه ایضا والذي فی الفتح وفی انت امی لایکون مظاهراوینبغی ان یکون مکروها الخ، ومثله ان یقول لها یا بنتی اویا اختی ونحوه الخ لیکن موږته اشکال په دې صورت کښې پیداکیږی چه یو دوه درې وئیلونه پس ئې کانړې هم غورزولې دی اوپښتانه رونړه اکثردطلاق په وخت کښې کانړې غورزوی اوددینه علاوه دغصې چه کوم حالت دې داهم په طلاق باندې دلالت کوی تاسوصاحبان دشرعې رائې نه خبردارې اوفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیداحمد سرډهیری پایان

**الجواب:** لاشک فی ان المراد من هذااللفظ عدالطلاق کانه قال: ''یوطلاق دوه طلاقه درې طلاقه،،لکن لیس فی هذه الکلمات الحکم ولاالاضافة الیها والطلاق لایقع بدونها کما صرحوابه ویشیر الیه کلامهم ایضا کما فی ردالمحتار



۲: ۶۲۷ فلو قال انت طالق وسکت ثم قال ثلثا فواحدة فافهم(۱) وفیه ۲:۵۹۳ ولکن لابدفی وقوعه قضاء ودیانة من قصداضا فة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه(۲).وهوالموفق

**.یو دوه درې څلور کانړو سره.........طلاقه ده۔ددې مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه خاوندپه کورنې جهګړه کښې دغصې په حالت کښې خپلې ښځې ته اووئیل چه ته یودوه درې څلور کانړوسره کوم چه زموږپه عام عرف دې طلاقه ئې اوته په ماباندې زما مور او خورئې، په دې سره کوم طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولاناعبدالقادررزمک شمالی وزیرستان.....۱۹۷۳ء۸۱۴

**الجواب:** چونکه دعرف په بناباندې کانړې په طوردتعدادذکرکیږی لهذاپه دې سړی باندې ښځه مطلقه مغلظه شویده.وهوالموفق

**.یو دوه درې تا اوساتم نو مور اوساتم۔ ددې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه څوک سړې دڅه ناخوخې وغیره په بناء باندې خپلې ښځې ته اوائی یودوه درې تا اوساتم نو مور اوساتم،ددې شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: بابوراجه خان راولپنډی............:۱۹۷۳ء۲۱۱۷

**الجواب:** واضحه دې وې چه صرف یودوه درې نه صریح دې اونه کنایه بلکه عد او شماره ده اوکله چه الفاظ دطلاق موجودنهٔ وی نوصرف نیت اواراده کافی نه ده،قال العلامة الشامی فی ردالمحتار۲: ۴۲۸ وکذامایفعله بعض سکان البوادی

---

**(۱)** (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۵۹۴ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لا به)

**(۲)** (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۷۴ مطلب الصریح نوعان رجعی وبائن)

من امرها بحلق شعرها لایقع به طلاق وان نواه﴿۱﴾ لیکن بعض علماء فرمائی چه ددې الفاظو په وئیلو سره ښځه بائنه کیږی﴿۲﴾ اوصرف تجدید دنکاح کافی دې او واضحه دي وې چه داالفاظ چه، تا ساتم نومور به ساتم،، ظهارنه دي،والذی فی الفتح وفی انت امی لایکون مظاهرا،ردالمحتار۲: ۵۹۲﴿۳﴾ اوکه چرته دې اخرې لفظ په تشبیه باندې محمول کړې شی نو د نیت په موافقت باندې به دالفظ ظهاریا طلاق جوړیږی اودطلاق دنیت په وخت کښې تجدید دنکاح کافی کیږی﴿٤﴾-وهوالموفق

---

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۵۳ کتاب الطلاق بعید مطلب طلاق الدور)

﴿۲﴾قال العلامة ابن البزاز الکردری: تراسه ذکر الصدر انه لا یقع لانه لا اضمار فی الفارسیة والمختار الوقوع اذانوی وقد ذکرنا عن صاحب المنظومة جریان الاضمار فی الفارسیه ولفظه یحتمل الطلاق وغیره فاذا نوی تعین وفی موضع آخر قال الصدر یقع وقال ابو القاسم لا وقال غیره ان فی المذاکرة او الغضب یقع والا لا.

(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۴:۱۷۹ مسائل الایقاع بلا قصد واضافة)

وقال العلامة طاهر الانصاری: رجل قال لامرأته ترایکی وتراسه اوقال تویکی سه، قال ابو القاسم الصفار لا یقع شیئ وقال صدر الشهید یقع اذا نوی وبه یفتیٰ.

(خلاصة الفتاویٰ ۲:۹۸ الفصل الثانی فی الکنایات جنس :۴)

﴿۳﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

﴿۴﴾قال العلامة الحصکفی: وان نوی بانت علی مثل امیٰ او کامی وکذا لو حذف علی خانیة برا او ظهارا او طلاقا صحت نیته ووقع ما نواه لانه کنایة، قال ابن عابدین: ای من کنایات الظهار والطلاق قال فی البحر واذا نوی به الطلاق کان بائنا کلفظ الحرام الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۲۶ باب الظهار)



**زه زما درته اجازت دې یودوه درې.په دې سره طلاق نه واقع کیږی.**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه ښځې اوخاوند کښې جګړه راغله یودوه لتې وهلوسره خاونداووئیل چه زمادخوانه پاسه.ښځې په جواب کښې اووئیل چه ماته دتللواجازت راکړه،خاوندپه جواب کښې اووئیل،، زه زما درته اجازت دې یودوه درې،،کانړې ئې هم اونه غورزول اولفظ د طلاق ئی نه دې وئیلی اونه ئې اراده دطلاق وه،ددې څه حکم دې؟

بینوا توجروا

المستفتی:مولانا سخی بادشاه تعلیم القران کرک۲۹\۱جمادی الاول ۱۴۰۳ه

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دا ښځه مطلقه شوې نه ده﴿۱﴾ځکه چه دې خاوند عدالطلاق(شماره)کړیده اومحض عدداوعدسره طلاق نه واقع کیږی، کما یفهم من ما فی الشامیه ۲: ٦۲۷ فلو قال انت طالق وسکت ثم قال ثلاثا فواحدة انتهی﴿۲﴾ والوجه المرادمن الثلاث ههناالطلقات الثلث لکنه لماانقطع عن الفعل بقی عددامحضا﴿۳﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ دلته چه خاوند کومه ړومبئ جمله استعمال کړې ده چه ``لاړه شه زما تاته اجازت دې،،دا الفاظ کنائی دی اود اذهبی برابردی اوچونکه دلته دخاوند نیت د طلاق نه وو په دې وجه طلاق نه دې واقع شوې.

قال فی الشامیة: فی شرح الجامع الصغیر لقاضی خان ولو قال اذهبی فتزوجی وقال لم انو الطلاق لا یقع شیئ لان معناه ان امکنک...... بحر علی ان تزوجی کنایة مثل اذهبی فیحتاج الی النیة...... ویؤیده ما فی الذخیرة اذهبی وتزوجی لا یقع الا بالنیة وان نوی فهی واحدة بائنة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۱۴ قبیل باب تفویض الطلاق)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۹۵ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لا به)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: والطلاق یقع بعدد قرن به لا به نفسه عند ذکر العدد وعند عدمه الوقوع بالصیغة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۴۹۴ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به)

## يو دوه درې په ما باندې ښځه طلاقه ده.. ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه يوصاحب ګوتې اوشمارلې اووې وئيل يودوه درې په ماباندې ښځه طلاقه ده که چرې ما آئنده خپل رورته څه نصيحت اوکړو، آيا په دې صورت کښې يوطلاق رجعی واقع کيږی اوکه نه مغلظ؟په ظاهره داد مغلظ صورت معلوميږی ليکن بعض مفتيان صاحبان ددې ګنجائش په بناءباندې چه خپله يودوه درې د طلاق الفاظ نه دی اولفظ طلاق يواځې يودې ددې وجې نه ده طلاق رجعی فتوی ورکوی، مولاناعزيزالرحمٰن صاحب د عزيزالفتاوی ٢:٢٠٥باندې داوائی که چرې طلاق ورکونکی اووئيل چه ماتاته طلاق درکړواوپه ژبه ئې څه وئيلو بغيرده کاڼونه په زمکه ويشتواواراده ئې ده درې طلاقووی نوطلاق مغلظ واقع کيږی ده عزت ده لارې جواب راکړه ستاسوشکرګذاريو؟بينوا توجروا

المستفتی: مولاناعبدالقدوس صدرشعبه اسلاميات

اسلاميه کالج پشاور١٩٧٢ء١٩١٢١

**الجواب:** ددېرتالاش سره هم صريح جزئيه ملاؤنه شوه ليکن دمثالونو او شواهدو په بناء باندې جواب ليکلی کيږی، هغه داچه په صورت مسئوله کښې يوطلاق واقع کيږی ځکه چه يودوه درې دحساب اودشمارد پاره موضوع ذی نه ده انشاء د طلاق دپاره، لعدم الحکم فی الاسماء المعدودة فلايکون صريحًا ولا کنايةونظيره مااذاقال لها احلقی شعرک لايقع به طلاق وان نواه صرح به العلامة الشامی فی ردالمحتار٢:٥٧٣﴿١﴾ همدارنګه په عوامو کښې دامشهوره ده چه هغوئ دکاڼوو غيره دشمارلوته طلاق وائی نوکه چرې په دې کښې حکم هم فرض کړې شی نوبياهم طلاق نه واقع کيږی، ونظيره مافی الهنديه:سئل الامام احمد القلانسی رحمه الله عمن وکزامرءاة وقال اينک يک طلاق ثم وکزها ثانيا

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: وکذا ما يفعله بعض سکان البوادی من امرها بحلق شعرها لا يقع به طلاق وان نواه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٥٣ بعيد مطلب طلاق الدور)



وقال اينک دوطلاق وکذاالثالث قال تطلق ثلثافشيخ الاسلام يقول سمى الضرب طلاقًا فيبطل والامام احمديقول سمى الطلاق فيقع(١:٤٠٨)﴿١﴾قلت وفى الصورة المسئولة لم يسم الطلاق فلاوجه للوقوع عندالقلانسى ايضا،بس صرف په دې الفاظوسره چه، په ماباندې طلاقه ده، طلاق رجعی واقع کيږی،وقلت وامامانسب الى عزيزالفتاوى فلم اجده ومع ذالک فهومخالف لما فى الخانية قال انت طلاق واشار بثلاث اصابع ونوى الثلث ولم يذکر بلسانه فانها تطلق واحدة. (بحواله الشامى٢:٦١٦)﴿٢﴾ هذا ماعندى ولعل عندغيرى احسن منه.

**نوټ:**.....تجديد دنکاح کول بهتردې-وهوالموفق

## صرف درې لکيرې وهل. زه لاړشه وئيلو وغيره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې باره کښې چه زمونږ په کورکښې جهګړه اوشوه دې وخت کښې زماتره مونږ ته راغلوده ته کتلوسره مې په غصه کښې په زمکه درې کرښې زر زر راښکلې اوپه دې دوران کښې ماد خولې نه هيڅ لفظ اونه ويستلودې نه پس ښځې ته مې اووئيل چه زه لاړه شه،دې کتلو سره زمادتره مطلب ووچه ښځه دکورنه او نه ځی اوماته غصه راغله، ما بيا اووئيل چه ته ځماکورکښې نه شی اوسيدلې ماهغې ته طلاق ورکړې دې، زما تره ماته اووئيل چه داتاڅه اوکړل؟داسې طلاق نه واقع کيږی،مااووئيل چه اوس زه داښځه اوساتم نودخپل پلار ځوې به نه يم،دا ټول الفاظ اتفاقًا دخولې نه وتلی دی.........

﴿١﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ١:٣٨٢ الفصل السابع فى الطلاق بالالفاظ الفارسية)

﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٨٦ مطلب فى قول الامام ايمانى کايمان جبريل)

وفى الهندية: ولو قالت لزوجها طلقنى فاشار بثلاث اصابع واراد بذلک ثلاث تطليقات لا يقع ما لم يقل بلسانه.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١:٣٥٧ الفصل الاول فى الطلاق الصريح)

د طلاق هیڅ نیت نه وو. اوس ددې الفاظو څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: خادم حسین.......... ۲۱۱۱۱۹۷۴ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه درې لیکرې وهل او درې کاڼړی غورځول یو لغوه (بې مقصده) کار دې سره طلاق نه واقع کیږی، لعدم الرکن وهو اللفظ اومایقوم من الخط﴿۱﴾ او د الفظ ،،زه،، د کنایاتو نه دې او په دې سره طلاق بائن واقع کیږی کله ئې چه اراده د طلاق کړی وی. وهو المصرح فی ردالمحتار ۲: ۶۳۶ (قوله قضاء) قیدبه لانه لایقع دیانة بدون النیة ولووجدت دلالة الحال﴿۲﴾ او د الفظ چه اوس که چرې د ابنځه او ساتم نو د پلار ځوې به نه یم طلاق نه دې قسم عرفی دې﴿٤﴾ بس مختصر دا چه د طلاق د نیت په صورت کښې د نکاح

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة...... واراد اللفظ ولو حکما لیدخل الکتابة المستبینة...... وبه ظهر ان من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لاصریحا ولا کنایة لا یقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق مطلب طلاق الدور)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۰۲ باب الکنایات)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ولو قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها او قال قلت هی طالق فهی واحدة فی القضاء کذافی البدائع.

(فتاوٰی عالمگیریة ۱: ۳۵۵ مطلب اذا کرر الطلاق...... ونوی الاخبار)

وفی الشامیة : لو اخبر بالطلاق کاذبا لایقع دیانة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۶ مطلب من الصریح الالفاظ المصحفة)

﴿٤﴾ دا الفاظ قسم شرعی او د حلف ځنې نه دی بلکه عام طور باندې خلق دا سې قسم الفاظ د توثیق او تاکید یا د کلام د ښائست په طور استعمالوی چه په دې کښې حقیقت کښې قسم او حلف مراد نه وی،........ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



تجدید کافی دې﴿۱﴾ په دې شرط چه سوال کښې کمې زیاتې نه وی- وهوالموفق

## په عدّ او عدد د طلاق کښې فرق

**سوال:** محترم جناب مفتی صاحب زید مجدکم

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! مایو فتوه اوکته په کوم کښې چه تاسو لیکلی دی حاصل ئې دادې چه د قائل خپلې ښځې ته داوینایودوه درې دا اسم عدد محض بلااضافت دې پس دالغوه دې. بحواله ردالمحتار ۲: ۶۲۷ لیکن ماهغه په کتاب مذکوره صفحه مذکوره کښې اونه موندلو کیدې شی چه د اختلاف د نسخې نه مې نه وی موندلې. لیکن ماپه ۲: ۴۹۴ کښې د موندلې دې والطلاق یقع بعددقرن به لابه، لکنه لایفی بالمقصود فان المجرور المتصل

(بقیه حاشیه) قال العلامة ابن عابدین: وما روی من النهی محمول علی الحلف بغیر الله تعالیٰ لا علی وجه الوثیقة کقولهم وابیک ولعمری، ونحوه فی الفتح وحاصله ان الیمین بغیره تعالیٰ تارة یحصل بها الوثیقة ای اتثاق الخصم بصدق الحالف کالتعلیق بالطلاق والعتاق مما لیس فیه حرف القسم وتارة لا یحصل مثل وابیک ولعمری فانه لا یلزمه بالحنث فیه شیئ فلا تحصل به الوثیقة بخلاف التعلیق المذکور.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۵۰ مطلب فی حکم الحلف بغیره تعالیٰ)

او مفتی عزیزالرحمٰن صاحب رحمه الله د یو سوال په جواب کښې لیکلی دی:

سوال: که دا اووائی چه که زه خپل کورته لاړشم نو د خپل پلار نه به نه یم، بیا که لاړ شی نو کفاره لازمه ده یا نه؟ الالجواب: په دې کښې هیڅ کفاره نشته تلل صحیح دی. (عزیزالفتاوٰی: ۱: ۵۷۲ کتاب الایمان)....ازمرتب

﴿۱﴾ قال العلامة المودود الموصلی: وله ان یتزوج مطلقته المُبانة بدون الثلاث فی العدة وبعدها لان حل المحلیة باق اذ زواله بالثالثة ولم توجد وانما لا یجوز لغیره فی العدة تحرزا عن اشتباه الانساب وهو معدوم فی حقه.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۹۳ باب الرجعة)

فی لابه عائدعلی صفة الطلاق لاعلی العددکمااوضحه فی ردالمحتارومجمع الانهر،فان کان عندکم غیرهذه یکفی فی الباب فعلی الراس والعین وایضاقول القائل الموصوف،،پاسه مورکره زه،،لیس بمنفصل بل هومتصل مثبت للاضافة بانه نسب قوله یودوه دری الیها،وایضاان لم یقع الطلاق باسم العددفکیف یقع بانت واحدة مع ان الواحدداخل فی العددهنا ویدخل فی العدداصله وهو الواحد، ردالمحتار۲: ٤٩٤؟ بینوا توجروا

المستفتی : مولوی عبدالستارنوشهره........۱۹۷۵ء۱۱/۱۱/۳۰

**جواب**:اعلم ان الکلام المعروف (یو دوه دری ته په ماطلاقه ئې) لایوجب التغلیظ والتحلیل لان کلمة،،یودوه دری،،لاتعلق لهابمابعدهامن کونها مفعولامطلقااوغیره کمالایخفی علی من تامل ادنی تامل بل معناها عدالشیئ وتعداده من غیراضافة لفظیه ولامعنویة وکذالیست فیهامعنی الانشاء والعددالمحض لایقع به الطلاق کمافی ردالمحتار۲: ٦٢٧فلوقال انت طالق وسکت ثم قال ثلثا فواحدة﴿۱﴾ ای لمافات الاتصال فبقی عددامحضافکمالفظ الثلث لایؤثرفکذاکلمته یودوه دری فافهم وللتفصیل مقام آخر-

**تنبیه**:....انت واحده من الفاظ الطلاق معناه انت طالق تطلیقة واحدة فیشمل علی الاضافة والحکم.وهوالموفق

## بې اراده خپلې ښځې ته یکدم
## د..طلاق طلاق طلاق.. وئیلوحکم

**سوال**:څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړې بغیرد څه ارادې

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۹۵ قبیل مطلب فی قبل ما بعد قبله رمضان)



لرلونه خپلې ښځې ته یکدم طلاق طلاق طلاق اووائی بغیرد څه واقعې نه، آیا په دې سره طلاق واقع کیږی؟ او کوم؟ کله چه ددرې ځل وئیلو څه اراده نه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدایوب لاهور کینټ..........۱۹۷۲ء۸/۱۱/۳۱

**جواب**:که چرې دې خاوند دتاسیس په اراده باندې داالفاظ وئیلی وی وهذا هو الظاهر اذاکان الزوج عالماباحکام الطلاق ونتیجته،نودتغلیظ په وجه باندې بغیر دتحلیل نه چاره نشته او که چرې دتاکیداواصرارپه اراده ئې وئیلی وی یاڅه نیت ئې مستحضرنه وی نو صرف یوطلاق رجعی واقع کیږی. کمافی الدر المختار:کررلفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکیددین،وفی ردالمحتار ۲: ٦٤٢ ای ووقع الکل قضاء وکذا اذا اطلق اشباه ای بان لم ینواستینافا ولاتاکیدالان الاصل عدم التاکیدانتهی﴿۱﴾قلت والفتوی علی الدیانة دون القضاء فافهم﴿۲﴾وهوالموفق

## ښځې ته صرف .یوطلاق دوه طلاقه درې طلاقه.. د وئیلو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو کس خپلې ښځې ته

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۹۹ فروع قبیل باب الکنایات)

وقال العلامة الاوزجندی: رجل قال لامرأته انت طالق انت طالق انت طالق وقال عنیت بالاولیٰ الطلاق وبالثانیة والثالثة افهامها صدق دیانة وفی القضاء طلقت ثلاثا. (فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱: ۴۶۱ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین ابن عابدین: المراد من قولهم یدین دیانة لاقضاء انه اذا استفتی فقیها یجیبه علی وفق مانوی ولکن القاضی یحکم علیه بوفق کلامه ولا یلتفت الی نیته اذا کان فیما نوی تخفیف علیه.

(تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱: ۳ فوائد بآداب المفتی)

د غصي په حالت کښې په یو ساه کښې دا الفاظ اووائی، یو طلاق دوه طلاقه دري طلاقه، او ددې نه مخکښې ئې څه الفاظ په خوله نه وی وئیلي، ددې واقعې نه پس دوه میاشتې اووه ورځې پورې ده طلاق مغلظه ګڼړلو او خپلې ښځې سره ئې قطع تعلق او کړو، بیا یو مولوی صاحب راغلو وئې وئیل چه طلاق مغلظه دې سره نه واقع کیږی، بلکه طلاق بائن دې، او تجدید د نکاح ئې اوکړو، ډیره مهربانی ددې مسئلې وضاحت اوکړئ چه دا طلاق بائن دې او که مغلظه، همدارنګه ددې مولوی صاحب څه حکم دې چاچه بغیر د حلالې نه تجدید د نکاح اوکړه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالوحید مدرس مدرسه ریاله........ ۱۶/۱۲/۱۹۷۴ء

**الجواب:** په ظاهره دې الفاظو باندې یو قسم طلاق نه واقع کیږی، لانه عدد وتعداد الطلاق لیس بالانشاء، ولعدم الاضافة الی المراة لالفظا ولامعنی ﴿۱﴾ ومحض نیة الاضافة لایفید ﴿۲﴾ کمافی الهندیة ۱: ۴۰۸ رجل قال لامراته اگر توزن منی سه طلاق مع حذف الیاء لایقع اذاقال لم ینو الطلاق لانه لماحذف لم یکن مضیفا الیها، وفیها ایضا ولوقالت: طلقنی فضربها وقال لها اینک طلاق لایقع ولوقال اینکت طلاق یقع ﴿۳﴾ هذا ماعندی ولعل عندغیری احسن منه. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان الصریح لا یحتاج الی النیة ولکن لا بد فی وقوعه قضاء ودیانة من قصد اضافة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه ولم یصرفه الی ما یحتمله کما افاده فی الفتح، وحققه فی النهر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۷ مطلب ان الصریح لا یحتاج فی وقوعه دیانة الی النیة)

﴿۲﴾ یدل علیه ما فی الشامیة: فلو قال انت طالق وسکت ثم قال ثلاثا فواحدة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۹۵ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لابه)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۸۲ الفصل السابع فی الطلاق بالالفاظ الفارسیة)



## تاته یو طلاق دوه طلاقه دري طلاقه دی که چرې ته مې پریخودې نو مورمې پریخوده.. ددې حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو کس مختار خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې واقعه څه په دې ډول ده چه ګواه مستری فلا ن کوم چه دده کور جوړولو بیان کوی چه مختار د ځنګل نه لرګی راوړل راغلو دده د ښځې او مور په مینځ کښې سختې خبرې او تکرار کیدو، ښځې د نوی تعمیر مکان پلستر کولو چه مختار هغه وهله ما د هغه مور او خور اونیولو له بهرمې راوستل دې د غصې په وخت کښې هغه خپلې ښځې ته وئیل چه زما د کور نه زه مګر هغې د تلو نه انکار اوکړو چه زه همداسې هیڅ کله نه ځم دې وخت کښې مختار اووئیل چه تاته یو طلاق دوه طلاقه دري طلاقه دی که چرې ته مې کور کښې پریخوې نو خپله دا مور به مې پریخیوی کومه چه مخامخ ولاړه وه، دویم ګواه یوشپونکې دې وائی چه ما تقریبًا ۲۲۰ ګزه په فاصله باندې چیلئ څرولې چه ددوئ په مینځ کښې جهګړه شوه او مختار اووئیلی چه تاته یو طلاق دوه طلاقه دري طلاقه دی که چرته ته مې کور کښې پریخوی نو دمور نوم ئې واخستو چه دا به مې پریښیوی، اوس د مختار بیان دادې چه مالرګی راوړل راغلم زما مور او ښځې په مینځ کښې جهګړه وه ما ښځه اووهله په کوم باندې چه مستری څما مور او خور اونیول او بهرئې راوستل اوس ما ته علم نشته چه ما کوم الفاظ استعمال کړې دی وروسته ما ته خلقو داسې خبرې شروع کړې چه تا دري طلاقه ورکړې دی لیکن زه خپله ښځه هیڅ کله نه پریږدم داهم وائی چه دویم ګواه هلته نه وو او د یو ګواه ګواهی قبوله نه ده، اوس د مختار د ښځې بیان دادې چه ما د نوی کور پلستر کولو زما او زما د خواښې په مینځ کښې په کورنی خبرو باندې د خولې جهګړه وه چه زما خاوند زه اووهلم چه زما د کور نه اوځه، ما صفا جواب ورکړو چه زه نه ځم، په دیکښې فوراً ده دا الفاظ اووئیلې چه تاته یو طلاق دوه طلاقه دري طلاقه دی، او که چرته ته مې پریخودې نو مور به مې پریخې وی، بیا زه خپلو والدینو کره لاړم.

اوس سوال دادې چه صورت مذکوره کښې د طلاق څه حکم دې؟ د ګواهانو څه حیثیت دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالشکور داخلی ګهمبیر لوری هزاره... ۸/۱۱/۱۹۲۹ء

**الجواب:** که چرته مسمیٰ مختار دا طلاق دغصې دوجې نه شوې وی او طلاق بې هوشه ئې ورکړې وی او د مختار دغصې په وجه په مقامی خلقو باندې پته نه وی په دې تقدیر باندې کوم طلاق واقع نه دې، صرح به فی ردالمحتار: ۲: ۵۸۷ ﴿۱﴾ او که چرته د مختار د غصې په وخت دې حالت ته رسیدل ثابت او معروف نه وی نو دویم گواه که چرې سماع او لیدل نه بغیر د اشتباه باندې گواهي د حکم یا د حاکم په مخکښې اداکړه ﴿۲﴾ نو دښځې د مطلقه مغلظه کیدلو فیصله به خلاف شرع نه وی. لتحقق شهادة الاثنین ﴿۳﴾. وهو الموفق

**دیو طلاق دوه طلاقه درې طلاقه..دونیلو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه کس د غصې په

---

﴿۱﴾ **قال العلامة ابن عابدین: فالذی ینبغی التعویل علیه فی المدهوش ونحوه اناطة الحکم بغلبة الخلل فی اقواله وافعاله الخارجة عن عادته وکذا یقال فیمن اختل عقله لکبر او لمرض او لمصیبة فاجأته فمادام فی حال غلبة الخلل فی الاقوال والافعال لا تعتبر اقواله وان کان یعلمها ویریدها لان هذه المعرفة والارادة غیر معتبرة لعدم حصولها عن ادراک صحیح کما لا تعتبر من الصبی العاقل الخ.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)**

﴿۲﴾ **قال العلامة شمس الحق الافغانی: یلزم ان یکون الشهود قدعا ینوا بالذات المشهود به وان یشهدوا بذلک الوجه...... والامور التی یتعذر علی کثیر من الناس مشاهدتها ویبقی احکامها ممر الدهور یجوز الشهادة بها بالتسامع وهی النسب والنکاح والدخول بالزوجة وولایة القاضی والموت واصل الوقف (معین القضاة والمفتیین ۲۸ الفصل الثانی فی کیفیة اداء الشهادة)**

﴿۳﴾ **قال العلامة الحصکفی: ونصابها لغیرها من الحقوق...... ما لا او غیره کنکاح وطلاق...... رجلان...... او رجل وامرأتان.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴: ۴۱۳ کتاب الشهادات)**



حالت کښې خپلې ښځې ته وائې یو طلاق دوه طلاقه درې طلاقه. بله کومه خبره دده د خولې نه نه ده وتلې ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرزاق راولپنډی...... ۱۱۲ ستمبر ۱۹۷۹ء

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې کس باندې ښځه نه ده مطلقه شوې دا الفاظ د عدا و شمار د پاره وضع شوي دی نه د حکم او انشاء د پاره ﴿۱﴾ وهو الموفق

**یو دوه درې طلاقه دی باندې نظام الفتاوی اعتراض او د مفتی صاحب جواب**

**سوال:** بحضور سیدی وشیخی ومولائی حضرت مولانا مفتی محمد فرید صاحب دامت برکاتهم! دام المدارس جامعه دار العلوم دیوبند انډیا حضرت مولانا مفتی نظام الدین اعظمی صاحب مدظله العالی د جدید مسائل او معاملاتو په باره کښې منتخب دفتاوو مجموعه په نوم د . .منتخبات نظام الفتاوی، ، په حال کښې شائع شوي ده په هغې کښې ستاسو صاحبانو یو فتویٰ هم په اشاعت کښې شامله ده د کوم په باره کښې چه حضرت مولانا مفتی نظام الدین اعظمی صاحب مدظله څه اعتراض کړي دې د خپله طرفه ئې تفصیلی جواب لیکلې دې.

---

﴿۱﴾ که څوک سړې صرف دا الفاظ اداکړی ``یو طلاق دوه طلاق درې طلاق،، نو دا طلاق شمیرل دی په دې کښې د هست یا نیست حکم نه دې لګولې شوې.

**فلیراجع الی محاورة السلیمانیین.**

**وقال العلامة الشامی: ان الصریح لا یحتاج الی النیة ولکن لا بد فی وقوعه قضاء ودیانة من قصد اضافة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه ولم یصرفه الی ما یحتمله کما افاده فی الفتح. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۷ مطلب ان الصریح لا یحتاج فی وقوعه دیانة الی النیة)**

**وهکذا یشیر الیه کلام الفقهاء ایضا کما فی الشامیة: فلو قال انت طالق وسکت ثم قال ثلاثا فواحدة.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۹۵ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لا به)**

لاندې من او عن ذکر کیږي. تاسو صاحبان خپله معائینه او کړئ خپله رایه بیان کړئ چه دبنده فقیر تسلي اوشي؟

نظام الفتاوی صفحه ۲۱۹ جلد: ۲ کښې عبارت دادې:

**سوال:** څه فرمائی علماء دین دې مسئلې کښې چه زید د الفاظ او وئیل یو دوه درې طلاقه ده په ما باندې دخپلې منکوحې زینب په باره کښې که چرې دا زما کورته واپس راغله لیکن نیمه ګنټه پس زینب کورته راغله دا طلاق مغلظه شو؟

**الجواب:** وبالله التوفيق: په دې کښې د حرمت مغلظه کیدلو هیڅ وجه نشته، لانه عد الطلاق اولاوعدالطلاق ليس بطلاق فبقى لفظ الصريح وهويوجب الرجعة كما فى الشامي. وهو الموفق

والله اعلم بالصواب............مفتی محمدفریدعفی عنه

**په دې جواب باندې سوال:**

په دې کښې مدخول بها او غیر مدخول بها آیا برابر دی؟ همدارنګه دا عبارت په شامي صفحه مذکوره کښې نشته دې، په شرط مقدم او مؤخر کیدلو کښې مسئله هم داسی ده؟

**الجواب:** جناب یو دوه درې نه صریح دې او نه کنایه دې صرف عدد طلاق دې، همدارنګه په دې کښې حکم هم نشته دې او دخبریه محوله په بناء باندې داسې عدد سره طلاق نه واقع کیږي، په دې کښې د عدد په ما باندې د طلاق کیدلو سره څه تعلق د ظرفیت یا مصدریت نشته دې، بس صرف یو طلاق په ما باندې طلاقیدو په بناء باندې واقع کیږي، په دې کښې د مدخول بها او غیر مدخول بها یو شان حکم دې-

**جواب:** دمفتی نظام الدین الاعظمی صاحب:

دا جمله (یو دوه درې) په مختلف علاقو کښې د مختلف محاورو مطابق وئیلی شي نو په دغه علاقه کښې د دغه علاقې د محاورې مطابق حکم کیږي، په تقاضا د آیت کریمه ومارسلنامن رسول الابلسان قومه. (الاية) پس کومه علاقه



کښې چه عرف عام او مشهوروی چه مذکوره جمله یو اځې دخپل قوة ظاهرولو دپاره او مخاطب دخپلې ارادې نه خبرولو دپاره وائی او ددې تعلق ددې نه وروسته لفظ سره نه وی نو په دغه علاقه کښې په دې سوال کښې دې ذکر شوې جملې باندې په صرف دیو طلاق واقع کیدو حکم کیږي-او کومه علاقه کښې چه دا عرف عام مشهوروی چه دا مذکوره جمله (یو دوه درې) ددې نه د وروسته لفظ به د شمار دپاره وائی نو ددې نه وروسته لفظ معدودوی او مفهوم چه داوی (یو طلاق دوه طلاقه درې طلاقه) پس دغه علاقه هغه کښې په دې سوال کښې د مذکوره جملې نه درې طلاقه واقع کیږي حرمت مغلظه وی او کوم علاقه کښې چه ددې دواړو عرفونو نه یو عرف نه وی هلته به د خاوند وینا ته اعتبار وی کوم به چه هغه سره د قسم نه بیانوی، لهذا دده دا دواړه جوابونه نیمګړی دی. فقط والله تعالى اعلم

کتبه: الاحقر نظام الدين غفرله دارالعلوم ديوبند.......۹۹\۵\۲۹ھ

المستفتی: محمد وهاب عفی عنه مرتب فتاوی فریدیه.... ۲۵\۷\۲۰۰۱ء

**جواب:** (۱) (یو دوه درې ته په ما باندې طلاقه ئي) د تغلیظ په اراده باندې دا استعمال غلط دې، دې سره طلاق رجعی واقع کیږي ځکه چه (یو دوه درې) د څه خیز شماره کیدلې شی نه انشاء، او که چرته دا مراد وی چه (یو طلاق دوه طلاقه درې طلاقه) نو دا د طلاق شماره ده دې کښې حکم نشته دې نه هست نه نیست، او که چرې ائنده جمله (په ما باندې مطلقه ده) ددې خیال او کړې شي نو ددې جملې سره هیڅ رابطه نشته دې نه د مفعول مطلق او نه دَ تمیز وغیره، دا دخپل فاسد ګمان شماره ده، فليراجع الى محاورة السليمانيين.

وهو الموفق

محمدفریدعفی عنه

(۲) څه ورځې پس حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم په دې باره کښې دویم جواب هم اولیکو او ماته ئې راکړو د استفادې دپاره هغه هم دلته کښې ذکر کولې شي:

په پښتنو کښې چه کوم دادستور دې چه کله څوک خپلې ښځې ته اووائی (ته طلاقه ئې یو دوه درې) نو دې سره طلاق مغلظه نه واقع کیږی، ځکه چه (١) دې الفاظو نه مراد عدد او شماره وی نه انشاء د طلاق-(٢) همدا رنګه دا اسماء معدوده دې په دې کښې حکم د ،،دې،، یا ،،نه دې،، نه وی (یعنی هست یا نیست)-(٣) که چرې دې کښې حکم او منلې شی چه ددې معنی (یو طلاق دې دوه طلاقه دې درې طلاقه دې) نو د محاورې په بناء باندې د ``په،، لفظ ضروری دې،، ته په یو طلاق طلاقه ئې ته په دوه ته په درې،، حالانکه د ``په،، لفظ نه وی-(٤) او که چرې داکس د دریو طلاقو نیت اوکړی او دا الفاظ یو دوه درې ددې منوی تفصیل وی نو صراحتا طلاقو کښې د دریو طلاقو نیت غیر صحیح دې-وهوالموفق

کتبه محمدفرید عفی عنه

(٣) ددې نه وروسته بنده فقیر د حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم ذاتی نسخه شامې باندې د حضرت صاحب د لاس لیکلې یو حاشیه اوکته، د مسئلې په مناسبت باندې هغه دلته نقل کول مناسب دی:

``اعلم انه اذاقال الزوج،،(په ماطلاقه ئی یودوه دری)،،والقی ثلاثااحجار،فقیل انها تصیر مغلظة،وقیل لا،لانه یعدالقاء الاحجار ظانا انه یقع به الطلاق،وقیل اراد عدالتطلیقات،قلت:فلایقع الطلاق بالشک مع ان العرف علی الاول ای عدالقاء الاحجار،،(هذاماحرره الشیخ علی هامش الشامیه بقلمه)........(ازمرتب)

## صرف په کاڼې ویشتلو سره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ما جواری هم کوله او یو کس سره مې مزدورې هم کوله یو ورځ ما هغه نه پیسې اوغوښتې هغه زما په لاس کښې درې کاڼې کیښودل هیڅ ئې اونه وئیل او ما هم هیڅ اونه وئیل، بیا هغه ته اووئیل چه دا اغورزوه او اوایه چه زه جواری نه کوم، ما لاس کښې واغستل هغه کاڼې مې اوغورځول او په خوله مې څه اونه وئیل، ایا په دې سره طلاق واقع شویدې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اسحاق عرب امارات......١١٢ ربیع الاول ١٤٢٦ھ



**الجواب:** صرف په کاڼو غورزولو باندې طلاق نه واقع کیږی د طلاق دپاره الفاظو د طلاق باندې تلفظ یا لیکل ضروری دی، کمافی ردالمحتار ٢:٥٩٠ فلایقع بالقاء ثلاثة احجار الیهااوبامرهابحلق شعرهاوان اعتقدالالقاء والحلق طلاقا کما قدمناه لان رکن الطلاق اللفظ اومایقوم مقامه مماذکر کمامر(١).وهوالموفق

## د درې کاڼو اغستلو او یو دوه درې وئیلو او د لفظ طلاق نه وئیلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو ښځې خاوند ته اووئیل چه ما ته طلاق راکړه. د زیاتې وینانه پس خاوند درې کاڼې واغسته ښځې ته ئې اووئیل ،یو دوه درې، او د طلاق لفظ ئې نه دې وئیلې، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل مولی........٦\٢١\١٩٧٦ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې طلاق نه دې واقع شوې، ځکه چه دا الفاظ د عد یعنی د شمار دپاره استعمالیږی دون الانشاء، والعددالمحض من دون الحکم لایقع به الطلاق ونظیره مافی ردالمحتار ٢: ٦٢٧ فلوقال انت طالق وسکت ثم قال ثلثا فواحدة انتهی(٢) فلفظ الثلث یرید به الطلاق جزماولکن لماانقطع عن قوله انت طالق فبقی عددمحض من غیر حکم.وهوالمصوب

## د ښځې په لاس کښې جدا جدا کاڼې ورکړی او اووائی ته زما نه آزاده ئې، ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس خپلې ښځې

(١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٦٥ اول باب الصریح)

(٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٩٥ مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به لا به)

ته یو کانړي لاس کښې ورکړی او اوائی چه یو کانړي اُوبیا دویم کانړي بیا دریم او په آخر کښې اووائی چه ته زمانه ازاده ئې،یعنې درې طلاقه ئې مراد وی، او د ښځې هم خواهش داوی چه زه دده نه آزاده شم نو دا صورت د بائن دې که دمغلظ؟ بینوا توجروا

المستفتی:حافظ رحمت الله کندیان شریف

**جواب:** کانړي ورکول او کانړي شمارل لغوه کارونه دي دې سره طلاق نه واقع کیږی.لعدم کونهمامن الفاظ الصریح والکنایات،صرح العلامة الشامی بـالاول والثانی فی حکم الاول﴿۱﴾او دا الفاظ چه ته زمانه آزاده ئې صریح دي او دعرف په اصطلاح باندې هغه صریح په کوم باندې چه طلاق واقع کیږی هغه بائن وی، کماحققه العلامة الشامی فی لفظ الحرام فلیراجـع الی ردالمحتـار ۲:۳۰۰ ﴿۲،۳﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة محمد امین ابن عابدین: ان من تشاجر مع زوجته فاعطاها ثلاثة احجار ینوی الطلاق ولم یذکر لفظا لا صریحا ولا کنایة لا یقع علیه کما افتی به الخیر الرملی وغیره.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۵۳ کتاب الطلاق بحث ورکنه لفظ مخصوص)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: والحاصل ان المتأخرین خالفوا المتقدمین فی وقوع البائن بالحرام بلا نیة حتی لا یصدق اذا قال لم انو لاجل العرف الحادث فی زمان المتأخرین فیتوقف الآن وقوع البائن به علی وجود العرف کما فی زمانهم واما اذا تعورف استعماله فی مجرد الطلاق لا بقید کونه بائنا یتعین وقوع الرجعی به کما فی فارسیة سرحتک ومثله ما قلمناه فی اول باب الصریح الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۰۴ قبیل مطلب لا اعتبار بالاعراب هنا)

﴿۳﴾ وقد رأیت علی هامش نسخة الشامیة من قلم سیدی وشیخی ومولائی المحدث الکبیر والمفتی الاعظم مولانامفتی محمد فرید دامت برکاتهم انه قد کتب وعلق علی الشامیة فی باب الصریح مطلب سن بوش یقع به الرجعی حیث قال: اعلم ان قول السلیمانیین "پړے مے خوده "چھوڑدیا" ای ترکتها ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**"ته په مابانديې په درې کانړوباندې طلاقه ئې.کښې د دوو معنواحتمال دې**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چه یو ښځې خپلې خوابنې سره جهګړه کوله د جهګړې په وخت کښې خاوند حاضر شو او خپله ښځه وهل ئې شروع کړل او په دې الفاظوئې طلاق ورکړو، ،ته په ما په درې کانړو طلاقه ئې، ،ښځه خپل کورته لاړله تقریبامیاشت پس خاوند جرګه اوکړله اووئی وئیلې چه زه په قسم سره وایم چه ما طلاق نه دې ورکړې او ښځه باقاعده وائی چه ما ته ښه معلومه ده چه ده ما ته طلاق راکړې دې لیکن د ښځې سره ګواه نشته،اوس په دې الفاظوسره کوم یو طلاق واقع شویدې؟بینوا توجروا

المستفتی: فضل سبحان چارسده........۱۹۸۴ء۸۱۸۱

**الجواب:** واضحه دیوې چه دا کلام، ،چه په ما په درې کانړو طلاقه ئې، ،دوه معنی لری (۱)اول دا چه ته په ما باندې داسې طلاقه ئې څنګه چه خاوند درې کانړې اوغورزوی او اووائی یو دوه درې ته په ما طلاقه ئې،او د دې معنی په تقدیر باندې صرف یو طلاق واقع کیږی،(۲)دویم دا چه ته په ما باندې په درې طلاقو باندې مطلقه ئې او د کانړونه په طلاق تعبیراوکړی نو دا د شیخ الاسلام په نزد باطل کیږی او د احمد قلانسی په نزد درې طلاقه واقع کیږی،

(بقیه حاشیه)ومثله کنایة فی العربیة کذا فی السلیمانیة لانه یستعمل شائعا فی غیر الطلاق ویراد به الطلاق عند القرائن الخارجیة فالظاهر انه کنایة فی السلیمانیة ایضا فاذا کرره فیقع به الواحدة لان البائن لا یلحق البائن ولو سلم انه صریح فالمتعارف به وقوع البائن لانهم یقصدون ذلک فافهم.

(هذا من افادات شیخی دامت برکاتهم) ......(ازمرتب)

بس كه كمافى الهنديه ١:٤٠٨ الفصل السابع فى الطلاق بالالفاظ الفارسية﴿١﴾ چرې په صورت مسئوله كښې خاوند منكروى او دښځې سره ګواه نشته دې نو خاوند به قسم اوكړى او زبانى مراجعت به هم اوكړى چه په يقين باندې عمل متحقق شى-وهو الموفق

## په دريو ګوتو باندې اشاره او يو ځل د طلاق وئيلو حكم

**سوال:** څه فرمائى علماء دين ددې مسئلې په باره كښې چه تهانيدار يو كس ته اووئيلې چه اووايه په مابانديې ښځه طلاقه ده كه چرې مادغه كاركړې وى، او دې سره ئې د لاس په دريو ګوتو اشاره اوكړله او دې كس دهغه درې ګوتى په لاس كښې اونيولې او صرف دومره ئې اووئيل چه په مابانديې طلاقه ده كه چرې مادغه كاركړې وى ليكن په حقيقت كښې دهٔ هغه كاركړې دې، نو دې سره كوم يو طلاق واقع كيږى؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولانا محمد اميربجلى ګهر رامداس پشاور.... ٢٥\٦\١٩٨٦ء

**الجواب:** كه چرې په صورة مسطوره كښې د (هكذا) لفظ نه وى وئيلې نو د حنث په صورت كښې صرف يو طلاق رجعى واقع كيږى، كمافى ردالمحتار ٢:٦١٦ باب الصريح، قوله ولو لم يقل هكذا اى بان قال انت طالق واشار بثلاث اصابع ونوى الثلث ولم يذكر بلسانه فانها تطلق واحدة، خانية﴿٢﴾. وهو الموفق

---

﴿١﴾ وفى الهندية: وفى مجموع النوازل سئل شيخ الاسلام عمن ضرب امرأته فقال دار طلاق (خذى الطلاق) قال لا تطلق وسئل الامام احمد القلانسى رحمه الله تعالىٰ عمن وكز امرأته وقال اينك يک طلاق (هاک طلقة) ثم وكزها ثانيا وقال اينك دو طلاق (هاک طلقتين) وكذا الثالث قال تطلق ثلاثا فشيخ الاسلام يقول سمى الضرب طلاقا فيبطل والامام احمد يقول سمى الطلاق فيقع.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١:٣٨٢ الفصل السابع فى الطلاق بالالفاظ الفارسية)

﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٤٨٦ بعيد مطلب فى قول الامام ايمانى كايمان جبريل)



## په يو سوال باندې دوباره استفسار او د دارالعلوم كراچئ فتوىٰ

**سوال:** محترم مفتى صاحب! ددې استفتاء او جواب يو نقل دارالعلوم كراچى نمبر ١۴ ته هم ليګلې وو، ددې جواب حرف بحرف لاندې نقل كيږى-

**الجواب:** فى الدرالمختار فى ايمان الفتح مالفظه وقد عرف فى الطلاق انه لو قال ان دخلت الدار فانت طالق ان دخلت الدار فانت طالق ان دخلت الدار فانت طالق وقع الثلاث فتح اقره المصنف ثم رده. (بحواله امدادالفتاوى ٢:٣٥٤) ددې روايت نه دا معلومه شوه چه كه چرې زيد درې ځله داوئيلى وى چه زما ښځه هنده كه خپل روربكر كره لاړه تو هغه زما د طرفنه طلاقه ده، او س كه چرې هنده خپله روربكر كره لاړه شى نو په دې باندې درې طلاقه واقع كيږى په دې شرط چه الفاظ ئې داسې وئيلې وى چه كوم په سوال كښې ليكلى شوي دى-والله اعلم

رفيع الله خادم دارالافتاء دارالعلوم كراچى نمبر ١٤.......٥٢\٣١٤

الجواب الصحيح

بنده محمدشفيع عفاالله عنه

المستفتى: محمد اختر داجل براسته بهكرمياں والى..... ١٦\٤١\١٩٦٩ء

**الجواب:** محترم المقام دالسلام عليكم نه پس واضحه دي وى چه فتاوى هنديه مصرى ١:٤٢١﴿١﴾ كښې په حواله دخلاصه او ردالمحتار ٢:٧٠٩ دا جزئيه

---

﴿١﴾ وفى الهندية: ولو خلل الشرط فقال انت طالق ان دخلت الدار انت طالق ان دخلت الدار انت طالق ان دخلت الدار او قدم الشرط مالم تدخل لا يقع الطلاق فاذا دخلت وقعت ثلاث تطليقات بالاتفاق كذا فى الخلاصة.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٤٣٠ الفصل الثالث فى تعليق الطلاق بكلمة ان واذا)

والظاهرانه ان نوی التاکید مسطوره ده او علامه شامی دې نه پس لیکلی دی: دین انتهی﴿۱﴾او حضرت تهانوی رحمه الله هم په امدادالفتاوی کښې ددې عبارة نه پس لیکلی دی: او که چرې د سائل څه نور نیت وی نو بیابه ترینه تپوس او کړې شی﴿۲﴾دې عباراتو نه معلومه شوه چه د تغلیظ او تحفیف دارومدار په نیت باندې دې که چرې د تاکید او د خپل اول کلام پخولو او مضبوطولو په اراده باندې تکرار کړي نو یو طلاق واقع کیږی او زمونږ تو له علاقه کښې دامشهوره ده چه کله طلاق وغیره دوقفې وقفې نه پس مکرر کړی نو تاکیدئې مرادوی لهذا مونږ د تخفیف فتوی ورکړې ده او د زیات احتیاط د پاره ددې کس (زید) نیت او اراده معلومه کړه چه ده تکرار د تاکید په اراده سره کړي دې او که نه د تکثیر په اراده سره، او د نیت د نه معلومیدو په وخت مونږ عرف نشو نظرانداز کولې او د تغلیظ فتوٰی نشو ورکولې﴿۳﴾-وهوالموفق

## په دولسو ځلو طلاق وئیلو باندې د تاسیس او تاکید مسئله او د غیرمقلدینو د فتوٰی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید خپلې ښځې ته ډیر ځله تقریبا دولس ځل طلاق ورکړې دې په دې صورت کښې دَطلاق څه

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۵۹ فروع بعید مطلب فیما لو تعدد الاستثناء)

﴿۲﴾(امداد الفتاوٰی ۲: ۴۱۱ رقم سوال: ۴۹۳ لا یلحق البائن البائن کتاب الطلاق)

﴿۳﴾قال العلامة الشامی: فللمفتی اتباع عرفه الحادث فی الالفاظ العرفیه وکذا فی الاحکام التی بناها المجتهد علی ماکان فی عرف زمانه وتغیر عرفه الی عرف آخر...... وفی القنیة لیس للمفتی ولا للقاضی ان یحکما علی ظاهر المذهب ویترکا العرف...... فقد ظهر لک ان جمود المفتی او القاضی علی ظاهر المنقول مع ترک العرف والقرائن الواضحة والجهل باحوال الناس یلزم منه تضییع حقوق کثیرة وظلم خلق کثیرین.

(شرح عقود رسم المفتی ۳۸، ۳۹، ۴۰ والعرف فی الشرع له اعتبار)



حکم دې؟ او که چرې کوم غیرمقلد عالم څه فتوی ورکړې نو دهغې په باره کښې موڅه رائې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد دین حافظ آباد گجرانواله.........۱۹۸۸ء۱/۲۱/۲

**الجواب:** کوم خاوند چه متعدد ځله ښځې ته طلاق ورکړی نو که چرته هغې خاوند د تاکید او اصرار په نیت باندې دا تکرار کړي وی صرف یو طلاق رجعی واقع کیږی او که چرې د تاسیس او استیناف په نیت سره ئې تکرار کړیوی نو ښځه مطلقه مغلظه کیږی﴿۱﴾ د سلفیانو او اهل حدیثو په مذهب باندې عمل کولو سره کار نه جوړیږی﴿۲﴾

﴿۱﴾وفی الهندیة: ولو قال لها انت طالق طالق او انت طالق انت طالق او قال قد طلقتک قد طلقتک او قال انت طالق وقد طلقتک تقع ثنتان اذا کانت المرأة مدخولا بها ولو قال عنیت بالثانی الاخبار عن الاول لم یصدق فی القضاء ویصدق فیما بینه وبین الله تعالیٰ.

(فتاوٰی عالمگیریة ۱: ۳۵۵ الباب الثانی فی ایقاع الطلاق الفصل الاول فی الصریح)

﴿۲﴾قال شیخ الاسلام الحافظ ابن تیمیة: فیمن نکح عند شهود فسقة ثم طلقها ثلاثا فاراد التخلص من الحرمة بان النکاح کان فاسدا فی الاصل علی مذهب الشافعی فلم یقع الطلاق ما نصه وهذا القول یخالف اجماع المسلمین فانهم متفقون علی ان من اعتقد حل الشیئ کان علیه ان یعتقد ذلک سواء وافق غرضه او خالف ومن اعتقد تحریمه کان علیه ان یعتقد ذلک فی الحالین وهؤلاء المطلقون لا یقولون بفساد النکاح بفسق الولی الا عند الطلاق الثلاث لا عند الاستمتاع والتوارث یکونون فی وقت یقلدون من یفسده وفی وقت یقلدون من یصححه بحسب الغرض والهویٰ ومثل هذا لا یجوز باتفاق الامة...... وکذا من بنی علی صحة ولایة الفاسق فی حال نکاحه وبنی علی فساد ولایته حال طلاقه لم یجز ذلک باجماع المسلمین ولو قال المستفتی المعین انا لم اکن اعرف ذلک وانا الیوم التزم ذلک لم یکن من ذلک له لان ذلک یفتح باب التلاعب بالدین ویفتح الذریعة الی ان یکون التحلیل والتحریم بحسب الاهواء. (فتاوٰی ابن تیمیة ۲: ۲۴۰)

وقال العلامة ابن عابدین: وان من یکتفی......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

او که چرې داخاوند خالی الذهن وی نو یو طلاق رجعی واقع کیږی (شامی ٢:٦٣٢ باب الطلاق غیرمدخول بها)﴿١﴾.وهوالموفق

(بقیه حاشیه) بان یکون فتواه او عمله موافقا لقول اووجه فی المسئلة ویعمل بما شاء من الاقوال والوجوه من غیر نظر فی الترجیح فقد جهل وخرق الاجماع...... وبعد الورقین...... واما اتباع الهوی فی الحکم والفتیا فحرام اجماعا واما الحکم والفتیابما هو مرجوح فخلاف الاجماع. (شرح عقود رسم المفتی ١٠٠، ١٠٠٤ آخر النظم)

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی: کرر لفظ الطلاق وقع الکل وان نوی التاکید دین، قال ابن عابدین: ای ووقع الکل قضاء وکذا اذا طلق اشباه ای بان لم ینو استینافا ولا تاکیدا لان الاصل عدم التاکید.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ٢:٢٩٩ فروع باب طلاق غیر المدخول بها)

..........



# فصل فی طلاق المکره والصبی والمجنون والسکران وغیرهم

**پـه زبردستۍ د طلاق لیکلو یا پـه بل چا لیکلو کښې د زوراو زبردستۍ نوعیت**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه که چرې په زبردستۍ دخاوندنه طلاق نامه لیکلې شوې وی یادستخط یاګوته لګولې شوې وی اوخاوند دزړه نه طلاق نه وی ورکړې یعنی مجبورائې کړې وی نو دا صحیح ده چه طلاق نه واقع کیږی؟ اوس خبره داده چه طلاق څه لوبه خو نه ده چه په خوشحالئې سره لوبه کوی یائې لوبه کړې وی داسی کارونه خو مجبورا کولې شی ددې مجبورئې، اوجبراوزبردستۍ په شریعت کښې څه تعریف دې؟ ډیره مهربانی دزبردستۍ دشرعی نوعیت نه موخبردار کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی:مسټر محمد بشیراخترنمک منډی راولپنډی ١١٣رمضان ١٣٨٨هـ

**جواب:** ددې جبراوزبردستۍ شرعی نوعیت دادې که چرې داخاوندنه طلاق لیکی اونه ئې په بل چالیکی نو دازبردستۍ کولو والاداقتلوی یائې یو اندام کټ کوی یادامحبوس اوبند کوی یائې تړی قال فی الهندیه ٥:٣٩ فالاکراه الملجئ هوالاکراه بوعیدتلف النفس اوبوعیدتلف عضومن الاعضاء والاکراه الذی هوغیرملجئ هوالاکراه بالحبس والتقید﴿١﴾ اوهمدارنګه کله چه د سختو وهلو قوی اندیښنه وی نو داهم زبردستی ده،

﴿١﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ٥:٣٥ کتاب الاکراه الفصل الاول)

صرح به العلامة الشامی ٥:٨٣﴿٥﴾وهو الموفق

## د جبراطلاق لیکلو یا په بل چا د لیکلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس خپلې ښځې ته داسې طلاق لیکلې دې او ورکړې دې چه زه فلان ولد فلان په هوش او حواس خمسه کښې بلااکره وجبر خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکوم چرته چه هم غواړی واده کولې شی زما څه عذر او حق نشته دې، څه ورځې پس داخبره ظاهره شوه چه دې جینۍ ته جبراطلاق اچولې شوي دې بهرحال ددواړه طرفونو نه لیکل اوکړۍ ایاجبرایاپرې د شراب څکولو طلاق واقع کیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد طاهر مدرس پرائمری سکول بیروټ مری ١٩٧٢ء١٢١١١٧

**جواب:** که چرې داثابت شی چه خاوند جبرا او کرها طلاق لیکلې دې او یا جبرا او کرها د شراب څکلو نه پس ئې طلاق لیکلې دې نو په دې سری ښځه مطلقه نه ده، یدل علیه مافی ردالمحتار ٢:٥٧٩ وفی البحران المرادالاکراه علی التلفظ بالطلاق فلواکره علی ان یکتب طلاق امراته فکتب لاتطلق﴿٢﴾وفیه ایضا ٢:٥٨٣ قوله(واختلف التصحیح الخ)فصحح فی التحفه وغیرها عدم الوقوع وجزم فی الخلاصة بالوقوع قال فی الفتح والاول احسن لان موجب الوقوع عند زوال العقل لیس الاالتسبب فی زواله بسبب محظوروهومنتف وفی النهرعن تصحیح القدوری انه التحقیق﴿٣﴾.وهو الموفق

---

﴿١﴾قال العلامة ابن عابدین: وعبر فی الشرنبلالیة عن البرهان بقوله او ضرب یخاف منه علی نفسه او عضو من اعضائه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٨٩ کتاب الاکراه)

﴿٢﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٥٧ مطلب فی الاکراه علی التوکیل بالطلاق)

﴿٣﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٦٠ مطلب فی الحشیشة والافیون والبنج)



## د نکاح نه وړاندې او روسته په زبردستۍ طلاق اخستلومسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه(١)ایاپه زبردستی طلاق واقع کیږی؟ (٢) که چرې څوک په کوژدن کښې په زبردستۍ طلاق واخلی نو څه حکم دې؟ ﴿٣﴾ که چرې څوک سړې چاته په زبردستۍ دااووائی چه په تا باندې طلاق دې که چرې تا فلانې کاراوکړو نو آیا طلاق واقع کیږی کله چه هغه هم هغه کارکوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالباری دمام سعودی عرب........ ٢٠\١صفر ١٤٠٣ھ

**جواب:**(١) زبردستۍ سره طلاق واقع کیږی البته زبردستۍ سره لیکل شوې طلاق بغیرد نیت نه نه واقع کیږی﴿١﴾-(٢)که چرې د کوژندې په صورت کښې نکاح نه وی شوی تو طلاق لغوه او باطل دې او که چرې نکاح شوې وی نو طلاق واقع کیږی﴿٢﴾-(٣)په دې صورت کښې طلاق واقع کیږ ی﴿٣﴾ (ماخوذ ازشامی وبحر ومشکوة).وهو الموفق

---

﴿١﴾قال العلامة ابن عابدین: وفی البحر ان المراد الاکراه علی التلفظ بالطلاق فلو اکره علی ان یکتب طلاق امرأته فکتب لا تطلق لان الکتابة اقیمت مقام العبارة باعتبار الحاجة ولا حاجة هنا کذا فی الخانیة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢:٤٥٧ مطلب فی الاکراه علی التوکیل بالطلاق)

﴿٢﴾عن علی عن النبی ﷺ قال لا طلاق قبل نکاح ولا عتاق الا بعد ملک...... وعن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده قال: قال رسول الله ﷺ: لا نذر لابن آدم فیما لا یملک ولا عتق فیما لا یملک ولا طلاق فیما لا یملک رواه الترمذی وزاد ابوداؤد ولا بیع الا فیما یملک. (مشکواة المصابیح ٢:٣٠٦ باب الخلع والطلاق الفصل الثانی)

وقال العلامة ابن نجیم: فلو قال لاجنبیة ان زرت زیدا فانت طالق فنکحها فزارت لم تطلق لانه حین صدر لا یصح جعله ایقاعا لعدم المحل.

(البحر الرائق ٤:٨ باب التعلیق تحت قوله فلو قال لاجنبیة)

﴿٣﴾وفی الهندیة: واذا اضافه (ای الطلاق) الی الشرط وقع عقیبه اتفاقا.

(فتاویٰ عالمگیریة ١:٤٢٠ الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان واذا)

## د مکره طلاق بالکتابت منظور نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې څه چه دلاندې بیاناتو نه معلومیږی (۱) **بیان د قیوم خان:** اشهدزه بیان کوم چه تقریبادرې میاشتې وړاندې ماته ښځې اوویل ایاته ماسره بدی کوی یعنی طلاق راکوی؟ خبرې مو کولې آخرماپه قرآن کریم باندې لاس کیښودواوامی ویل چه زه تاته طلا ق نه درکوم. اوهغې زماپه دې قسم باندې اعتبارا وکړو، څه موده پس مانه زماسخرغلام خان بالجبرطلاق اغستل غوښتل، دې وخت کښې حیدرخان زماښځې ته اووئیل اوهغې نه ئې پوښتنه اوکړه چه طلاقیدل غواړې؟ دې اووئیل چه زه طلاقیدل نه غواړم، دې نه پس حیدرخان ماته اووئیل چه ته به طلاق اچوی مااووئیل چه زه طلاق نه اچوم، په دې خبره ئې ډیرتکرار اوکړو. دې نه پس حیدرخان لاړو. ددې نه پس امام خان اواجمل اوئیل چه ته به طلاق اچوې اوډیرتکراراوشوچه زه طلاق نه کوم، دې نه پس زه دکورنه اووتم بیازه دوو کسانوواپس راوستلم اودهغې نه پس ماته علم نشته. نه ماطلاق نامه لیدلې ده اونه ماته دستخط کول یاددی، چه چا اوکړو څه ئې وکړۀ. څه ماته معلوم نه دې.......دستخط قیوم خان

(۲) **بیان د ګواه عمرخان** : اشهد زه بیان کوم چه قیوم خان ته مااووئیل چه غلام خان دخپلې لورطلاق غواړې ستاڅه اراده ده؟نوهغه اووئیل چه ماقتل کړه لیکن زه طلا ق نه ورکوم، په دې شپه حیدرخان هم موجودوونوقیوم خان زمونږ سره بهراووتو. دهغه په غیر موجودګئ کښې طلاق نامه اولیکلې شوه اود ګواهانو دستخط ئې هم وړاندنه کړې وو. بیائې قیوم خان تلاش کړوډیروخت پس ئې هغه راوستلواوهغه دبې هوشی په حالت کښې ووده ښځې ډیرو سړو ته منت اوزاری اوکړل هغې زماپه خپوباندې هم(++) (۴۲۲) اوونې وئیلی چه زه طلاق نه غواړم اوفریادئي کوومادهغې پلارغلام خان ته



منت اوکړولیکن هغه په جواب کښې اووئیل که چرې دامړهشی نوددې لاش به زه ضروردې ځائې نه وړم، دښځې ددې فریادپه دوران کښې قیوم خان یووړې کمرې ته راوستو، د شپې وخت وو، دته اوئیلې شو چه کاغذدې کتلې دې ده اوئیل اوده ته اووئیلې شوچه په دې باندې دستخط اوکړه، ده په دې باندې دستخط اوکړو دې نه پس دائې دهغه ځائې نه واپس راوستلو اوهغه دبې هوشۍ په حالت کښې وو اوبیا اته لس ورځې هغه دبې هوشۍ په حالت کښې ؤو......دستخط عمرخان

(۳) **بیان د ګواه حاجی الله خان:** اشهد زه بیان کوم چه طلاق نامه ئې وړاندلیکلې وه، اوقیوم خان وتلې وواوهغه ئې دبهرنه راوستلواوهغه وئیلې چه زه طلاق نه ورکوم اګرچه ماقتل کړی اواومړمې کړې، څوځل اووتلولیکن کسان ئې ورپسې لیګل اوواپس ئې راوستوآخرکښې قیوم خان اووئیل چه دطلاق اختیار زمادښځې سره دې هغه مختاره ده، دې نه پس قیوم خان ته طلاق نامه راوړلې شوه اوورته ئې اووئیل چه دااوګوره نوقیوم خان اووئیل چه بس کتلې مې ده اودهغه نه ئې دستخط واغستلواوپه ژبه ئې هیڅ اونه وئیل، لیکن د قیوم خان ښځې وئیل چه زه دخاوند سره اوسیږم زه طلاق نه غواړم هریوته ئې منت زارې کوله اوفریادئې کولواودخپل پلارپه سرئې دسرکپړه اچوله چه ما مړه حساب کړه، اودالله واسطه ئې ورته اچوله اوپه موجوده کسانوکښې هر یوته ئې منت اوزارې کول، لیکن په دې وخت کښې دقیوم خان حالت بې هوشی، سترګی سرې اومخ بدل وو......دستخط:حاجی الله خان په دې حالاتو کښې ددې طلاق نامې اودطلاق شرعئ حیثیت څه دې؟

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې مسمی قیوم خان نه طلاق نامه لیکلې ده او نه ئې په بل چاباندې لیکلې ده اونه دیده دانسته دطلاق نیت اواراده کړې ده لهذا په ده باندې ښځه مطلقه نه ده. لان الطلاق بالکتابة لایقع بالاکراه

کمافی ردالمحتار ۲: ۵۷۹ لواکره علی ان یکتب طلاق امراته فکتب لاتطلق لان الکتابة اقیمت مقام العبارة باعتبارالحاجة ولاحاجة هنا کما فی الخانیة، انتهی﴿۱﴾قلت:حکم الاکراه والهزل واحد کماصرحوابه﴿۲﴾وهوالموفق

## طلاق د مکره کښې په مذهب غیرفتوی جائزنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس په زورآوري سره دویم کس ته دقتل دهمکی ورکړی طلاق پرې ا وغورزوی نوایاطلاق د مکره واقع کیږی؟اوضرورت په وجه په دې کښې به دمذهب غیردفتوی ورکولوڅه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:..........نامعلوم

**الجواب:** طلاق بالاکراه کښې عموم بلوی نشته دې لهذاپه صورت مسئوله کښې په مذهب غیربانډې فتوی ورکول بې قاعده اوغلط امردې، فی ردالمحتار: ویقع طلاق کل زوج بالغ عاقل ولوتقدیرا(بدائع)لیدخل السکران ولوعبدااومکرهافان طلاقه صحیح،

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۷ مطلب فی الاکراه علی التوکیل بالطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة الشامی: واما ما فی اکراه الخانیة لو اکره علی ان یقر بالطلاق فاقر لا یقع کما لو اقر بالطلاق هازلا او کاذبا فقال فی البحر ان مراده لعدم الوقوع فی المشبه به عدمه دیانة ثم نقل عن البزازیة والقنیة لو اراد به الخبر عن الماضی کذبا لا یقع دیانة وان اشهد قبل ذلک لایقع قضاء ایضا، ویمکن حمل ما فی الخانیة علی ما اذا اشهد علی انه یقربالطلاق هازلا ثم لا یخفی ان ما مر عن الخلاصة انما هو فیما لو انشأ الطلاق هازلا وما فی الخانیة فیما لو اقربه هازلا فلا منافاة بینهما قال فی التلویح و کما انه یبطل الاقرار بالطلاق والعتقاق مکرها کذلک یبطل الاقرار بهما هازلا لان الهزل دلیل الکذب کالاکراه الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۹ قبیل مطلب فی تعریف السکران وحکمه)



در مختار ۲: ۵۷۹﴿۱﴾ومسئلة جوازالافتاء بمذهب الغیرعند الضرورة وعدم الجوازعندعدمهافی رسالة رسم المفتی ۵۰ فلیراجع﴿۲﴾.وهوالموفق

## نابالغ نه خپله طلاق ورکولې شی او نه څوک وکیل د طلاق جوړولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیونابالغ هلک نکاح دیوبالغې جینۍ سره اوشوداجینۍ طلاق اخستل غواړی ایاداهلک په خپله طلاق ورکړی نوواقع کیږی اوکه نه؟ یا دپلارطلاق ورکول کافی کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ عبدالاکبرنریاب هنګو......۲۴/۱۱/۱۹۸۷ء

**الجواب:** نابالغ نه په خپله طلاق ورکولې شی اونه څوک وکیل جوړولې شی اونه پلاروغیره دده دطرفنه خلع کولې شی، کمافی الهندیه ۱: ۳۷۶ ولایقع طلاق الصبی وان کان یعقل﴿۳﴾ وفی ردالمحتار ۲: ۵۷۹ ثم کلامه شامل لمااذاوکل به او اجازه من الفضولی نهر﴿۴﴾ وفی الهندیه ۱: ۵۲۹ اذاخالع الاب علی ابنه الصغیر لایصح ولا یتوقف علی اجازته﴿۵﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۶ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾قال العلامة الشامی: وقولی لکنما القاضی به لا یقضی الخ ای لا یقضی بالضعیف من مذهبه وکذا بمذهب الغیر. (شرح عقود رسم المفتی ۴۴ ولا یجوز بالضعیف العمل)

﴿۳﴾(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۵۳ فصل فیمن یقع طلاقه وفیمن لا یقع طلاقه)

﴿۴﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۶ قبیل مطلب الاکراه علی التوکیل بالطلاق الخ)

﴿۵﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۵۰۴ قبیل الباب التاسع فی الظهار)

## نابالغ هلک خپلې ښځې یا دده پلاردده ښځې ته طلاق نه شي ورکولې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زید او بکردواړه سکه ورونړه دی زید دوه لونړه دبکردوه نابالغ هلکانو ته ورکړلې د ګواهانو په مخامخ ایجاب او قبول اوشو. دزید او بکر یو تنازعه شروع شوه بکرزید ته وائی چه د شرعی پابندې لازمی ده لیکن زید دښار اکثر اعتباریانو نه پرده نه کوله، چاته خپل ورور او چاته دښځې ورور وئیل کور کښې تګ راتګ کیده لیکن بکرشرعی پردې باندې قائم وو. دزید یوه لوربالغه شوه او واده اوشو لیکن دپردې خبره بیا مینځ ته راغله او ناراضګی دطلاق صورت اختیارکړو. بیازید مطالبه اوکړه چه بکردې ځماورې لورته هم طلاق ورکړې لیکن بکرانکار اوکړو چه د ''الطلاق لمن اخذ بالساق،، مطابق ځماځوې نابالغه دې طلاق نه شی ورکولې او نه ماته شرعاحق حاصل دې چه زه طلاق ورکړم. دجهګړې د ختمولو په نیت سره بل فریق دزید په وینا باندې بکرداتحریر اولیکلو چه ځما وړه لوړسره هیڅ تعلق نشته زه بیزاریم ځماځوې چه ځوان شی څنګه ئې چه مرضی وی هغه به اوکړی زه شریعت ته زما سربښکته دې، زیددا تحریرد ضدبازی په بنیاد باندې طلاق ګنړی او دجینئ په دویم ځائې کښې نکاح کول غواړی لیکن بکروائی چه کله پورې ځماځوې بالغ نه وی طلاق ورکولې نه شی ته په بل ځائې کښې دې جینئ ته مطابق دفقه حنفی نه شی ورکولې. داصول فقه او حدیث په اصطلاح کښې دوئ کښې دکوم کس خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد تاج الدین امام مسجد کنجور کیمل پور. ١٩٦٩ء١٠١١١

**الجواب:** د بکرد ځوې نه بغیر هیڅ څوک دې جینئ ته طلاق نه شی ورکولې او د بکرهلک هم هغه وخت کښې دطلاق ورکولو مختاردې کله چه هغه بالغ شی دې نه وړاند طلاق ورکول نامنظوردی، قال رسول الله ﷺ: الطلاق لمن اخذبالساق، رواه ابن ماجه﴿١﴾ وفی الهندیة ١: ٣٧٦ یقع طلاق کل

﴿١﴾ الطلاق لمن اخذ بالساق رواه ابن ماجة: رواه عن ابن عباس من طریق فیها ابن لهیعة رواه الدارقطنی ایضامن غیرها کما فی الفتح ومراد تقویة الحدیث لان ابن لهیعة متکلم فیه فقد اختلف المحدثون فی جرحه وتوثیقه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٤٦٢ قبیل مطلب فی طلاق الملهوش)



زوج اذاکان بالغا عاقلاوفیهاایضالایقع طلاق الصبی وان کان یعقل انتهی﴿١﴾

قلت: والاب لیس بزوج. وهوالموفق

## د طلاق د صحت د پاره د خاوند بالغ کیدل شرط دی په خلاف د ښځې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه هلک کوم عمر کښې طلاق ورکولې شی؟ همدارنګه دښځې بلوغت طلاق دپاره شرط دې اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوبیدارعبدالکریم مینګوره سوات

**الجواب:** دصحت دطلاق دپاره دخاوندبالغ کیدل شرط دی. کمافی شرح التنویر: ویقع طلاق کل زوج بالغ عاقل(هامش ردالمحتار٢: ٥٧٩)﴿٢﴾وفی الهندیه: ولایقع طلاق الصبی(١: ٣٧٦)﴿٣﴾اوبلوغ داحتلام یاپنځلسوکاله پوره کیدونه معلومولې شی﴿٤﴾ واضحه دې وې چه د صحت دطلاق دپاره دښځې بلوغت شرط نه دې-وهوالموفق

## د بالغ خاوند نابالغې ته قبل الدخول د یو طلاق ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوهلک بالغ دې او

﴿١﴾ (فتاوىٰ عالمگیریة ١: ٣٥٣ فصل فیمن یقع طلاقه وفیمن لا یقع طلاقه)

﴿٢﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٤٥٦ کتاب الطلاق)

﴿٣﴾ (فتاوىٰ عالمگیریة ١: ٣٥٣ فصل فیمن یقع طلاقه وفیمن لا یقع طلاقه)

﴿٤﴾ قال العلامة الحصکفی: بلوغ الغلام بالاحتلام والاحبال والانزال والاصل هو الانزال والجاریة بالاحتلام والحیض والحبل ولم یذکر الانزال صریحا لانه قلما یعلم منها فان لم یوجد فیهما شیئ فحتی یتم لکل منهما خمس عشرة سنة به یفتی لقصر اعمار اهل زماننا وادنی مدته له اثنتا عشرة سنة وهو االمختار کما فی احکام الصغار.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٥: ١٠٧ فصل بلوغ الغلام بالاحتلام)

د جینۍ کم عمره ماشومه ده او ده داجینۍ په نکاح باندې اخستې ده هلک د
جینۍ کم عمره ماشومه ده او ده داجینۍ په نکاح باندي اخستي ده هلک د جینۍ کم عمره ماشومه ده
جینۍ کم عمره ماشومه ده او ده داجینۍ په نکاح باندې اخستې ده هلک د
غصې په حالت کښې یو دطلاق لفظ دخولې نه ویستې دې دخپلو رشته دارو
مخکښې یا دهم عمره هلکانو مخکښې. ددې بالغ ددې لفظ نه په دې نابالغه
باندې کوم یو طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: خلیل الرحمن............ ۲/۵/۱۴۷۴

**الجواب**: که چرې داجینۍ غیر شادې شده وی نو دبینونت په وجه باندې تجدید
د نکاح ضروری ده﴿۱﴾ او که چرې شادی شده وی او ددې سره مجامعت یا
خلوت شوې وی نو مراجعت کافی دې. کله چه ایام عدت باقی وی﴿۲﴾ کینې
تجدید د نکاح ضروری ده﴿۳﴾ صرح به فی الهندیة وردالمحتار. وهو الموفق

## د مدهوش او مغلوب العقل د طلاق مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس په مدهوشۍ
او د مغلوب العقل کیدو په حالت کښې ښځې ته دوه ځله داوئیلې دی چه ته
طلاقه ئې. دطلاق دورکولو په وخت کښې یو څو ګواهان هم موجود وو څوک چه
حلفا وائی چه ده دمدهوشۍ په کیفیت کښې طلاق ورکړې دی اوس په صورت
مسئوله کښې طلاق رجعی واقع کیږی او که بائن؟ همدارنګه ددې مدهوشۍ په
حالت کښې د دریو طلاقو ورکولو څه حکم دې؟ د احنافو په کتابونو کښې د

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وان فرق بوصف او خبر او جمل بعطف او غیره بانت بالاولیٰ لا الی عدة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۹۴ باب طلاق غیر المدخول بها)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: الرجعة ابقاء النکاح علی ما کان ما دامت فی العدة کذا فی التبیین.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۶۸ الباب السادس فی الرجعة وفی ما تحل الخ)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: واذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة وبعد انقضائها لان حل المحلیة باق.

(هدایة ۲:۳۷۸ باب الرجعة کتاب الطلاق)



معتوه طلاق غیر موثر ګرځولې شوې دې مذکوره صورت کښې ددې کس
کیفیت دمعتوه پشان وو؟ بینوا بسند الکتاب توجروا من الله یوم الحساب

المستفتی: قاضی محمد مشتاق مانسهره

**الجواب**: که چرې دخاوند مدهوش کیدل معروف یا مبرهن وې نو دده طلاق نه
واقع کیږی برابره خبره ده که دوه وی یا درې، کمافی ردالمحتار ۲:۵۸۷
فلیراجع﴿۱﴾ او دغیر مدهوش دوه ځله طلاق وئیلو باندې دوه طلاقه رجعی
واقع کیږی﴿۲﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: الطلاق مرتان فامساک بمعروف او تسریح
باحسان (الایة)﴿۳﴾ لیکن په دې شرط چه ددې نه مخکښې ئې څه طلاق (دې
ښځې ته) نه وی ورکړی- وهو الموفق

## د مدهوش او د پاګل د طلاق مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیو کس یو څو
ظاهری عاداتو او اطوارو نه معلومیږی چه دا محبوط الحواس دې ځکه او هغه
باقاعده مزدوری کوی، څه ورځې مخکښې ده خپلې ښځې ته طلاق ثلاثه
ورکړل او دهغې بار بار اعاده ئې اوکړه. تردې پورې ئې اووئیل که چرې زه
خپلې ښځې ته دوباره نزدې شومه نو دخپلې مور سره به مې رشته دزوجیت

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وسئل نظما فیمن طلق زوجته ثلاثا فی مجلس القاضی وهو مغتاظ مدهوش فاجاب نظما ایضا بان الدهش من اقسام الجنون فلا یقع واذا کان یعتاده بان عرف منه الدهش مرة یصدق بلا برهان.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۲﴾ قال العلامة الزیلعی: کقوله انت طالق انت طالق فیقع رجعیتان اذا کانت مدخولا بها.

(تبیین الحقائق شرح کنز ۲:۱۹۹ کتاب الطلاق)

﴿۳﴾ (سورة البقرة آیت: ۲۲۹ پاره: ۲ رکوع: ۱۳)

متـرادف وی.دطـلاق باوجودابدستوردښـځې سـره اوسـیږی، که چـرې د ډاکټری معائنې نه پس دده ددماغی خرابی پته اولګی نوبیاددې څه حکم دې اوکه چرې دماغی توازن ئې صحیح وی نوبیاڅه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: شبیرحسین شاه هوتر تیرهی مری راولپنډی۲۷\شوال۱۳۹۹ھ

**الجواب**: کـه چرې داسړې مـدهوش یاپاګـل نـه وی﴿۱﴾ نـو دده ښـځه مطلقـه مغلظه شویده﴿۲﴾_ وهوالموفق

## د عقل د فاسدیدو په وخت کښې د طلاق لیکلو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس اووئیلې چه ماخپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې روسته دده نه تپوس اوشوکه چرې واقعی تاخپلې ښځې ته طلاق ورکړې وی نولیکل وکړه.ده اووئیـل صحیح ده، یو ویونکی ده ته مضمون اووئیلو اوده اولیکلو.یعنی لیکلووالاداپه خپله دې اود وئیلووالا بل کس دې چه مضمون وائی اودائې لیکی،مضمون دادې:

﴿۱﴾قـال العـلامة ابن عـابـدیـن: (قـولـه والمجنون) قال فی التلویح الجنون اختلال القوة الـمـمیزة بین الامور الحسنة والقبیحة المدرکة للعواقب بان لا تظهر آثارها وتتعطل افعالها امـاالنقصان جبل علیه دماغه فی اصل الخلقة واما لخروج مزاج الدماغ عن الاعتدال بسبب خـلـط او آفة...... (قوله والمدهوش)...... فی القاموس قال بعده او ذهب عقله من ذهل او وله بـل اقـتـصـر عـلـی هذا فی المصباح فقال دهش دهشا...... ذهب عقله حیاء او خوفا وهذا هو المراد هنا ولذا جعله فی البحر داخلا فی المجنون الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۲،۴۶۳ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۲﴾قـال العلامة الموددود الموصلی: (ویقع طلاق کل زوج عاقل بالغ مستیقظ) لقوله علیه الـسلام: کـل طـلاق واقع الا طلاق الصبی والمعتوه (اخرجه الترمذی) وفی روایة "الاطلاق الـصبی والمجنون" ولایقع طلاق الصبی والمجنون لما روینا ولانهما عدیما العقل والتمییز والاهلیة بهما. (الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۶۲ کتاب الطلاق)



"ماخپلې ښځې مسماة فلانئې ته طلاق ثلاثه ورکړې دې دادې زمانه دمهر مطالبه نه کوی اوبه زه دهغې دجهیزسامان سره چیړنه کوم،،-

دا طلاق صرف په یولیکلوکښې دې اوپه یووخت کښې لیکلې شوې دې، لیکن یوه خبره داده چه داسړې ددماغی خرابئې په وجه شپاړس ورځې یو غټ هسپتال کښې داخل وو اوپـه عـلاج باندې تقریبادرې سوه روپئې لګیدلې دی،اودهسپتال سرټیفیکیټ هم دده سره دې،ایاداطلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولاناالطاف الرحمٰن ماړی شرقی ټوټیال هزاره ۱۰\۱محرم۱۳۹۲ھ

**جواب**:که چرې دې سړی دعقل دفاسدیدوپه وخت طلاق ورکړې وی یالیکلې وی نوښځه نه ده مطلقه شوې ګینی مغلظه شویده.فی الـدرالمختار:والمجنون والمعتوه والمغمی علیه والمدهوش مختصرا(هامش ردالمحتار۱: ۵۸۶)﴿۱﴾.وهوالموفق

## د مدهوشئ اوغضب په حالت کښې د طلاق حکم

**سوال**:څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه زیدچرس څکل کوم سره چه شرعًا نشه نه کیږی.لیکن په طبیعت کښې بې اودسی اودعدم تحمل کیفیت پیداکیږی په دې حالت کښې هغه کورته راغلودښځې سره ئې د روپو او پیسوپه معامله کښې جهګړه اوشوه دکوم نه چه هغه سخت درون شو اوپه دماغو ئې چکرراغلو ،ددې چکرپه حالت کښې ده دکورسامان اوسوزولو،په دې حالت کښې ده ښځې ته درې طلاقه زبانی هم ورکړل او د یو کس په وینا باندې ده په لیکلو هم درې طلاقه ورکړل،کله چه دهغه هوش په ځائې راغلو نو ده ته اووئیلې شوچه تادکورسامان هم سوزولې دې او ښځې ته دې طلا ق هم ورکړې دې.اوس زیدته دومره شعوردې چه ده ښځې ته هم څه وئیلې دی او نور حرکتونه ئې هم کړي دی.لیکن څه چه شوي دی په بې هوشئ کښې شوي دی نو آیادې سره طلاق ثلاثه واقع شوې دې؟

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۲ مطلب فی طلاق المدهوش)

**نوټ:**.....دچرس څکلوتذکره په سوال کښې ددې دپاره هم ضروری ده چه دا یو امر واقعه دې که چرې په سوال کښې ددې تذکره نه وی نوبعض هلک دینه طلاق سکران جوړوی نوددې وجې نه سوال نامکمل کیږی، ګینې مسئله د مدهوش اوغضبان ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید فقیرملک پشاور

**الجواب:** بشرط صدق دزیدښځه نه ده مطلقه شوې ځکه چه داالفاظ د زید دعقل دخرابیدوپه وخت صادرشوې دې،فی ردالمحتار ۲:۵۸۷:فالذی ینبغی التعویل علیه فی المدهوش ونحوه اناطةالحکم بغلبة الخللٰ فی اقواله وافعاله الخارجة عن عادته وکذا یقال فیمن اختل عقله لکبراولمرض اولمصیبة فاجاته فمادام فی حال غلبة الخلل فی الاقوال والافعال لاتعتبراقواله وان کان یعلمها ویریدها لان هذه المعرفة والارادة غیرمعتبرة لعدم حصولهاعن ادراک صحیح﴿۱﴾.وهوالموفق

**د وهلو په وجه سره بې هوشه شی ..طلاق ورکړی.. د وئیلوحکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس مورته بدې ردې اووئیلی اودمور دوجې نه ئې ښځه هم دوه درې سپیړې اووهله اوخپل پلار ته ئې هم یوڅو کنزلې اوکړې پلارئې غصه شوپه لرګی باندې ئې دوه ځل اووهلو،اول ګذاردۀ په شارګ باندې اولګیده،هغه بې هوشه راپریوتله دریم کس راغلودائې اوچت کړو اووئې مګلو،دده دژبې نه درې ځلورځله دطلاق ورکولو الفاظ اووتل.کوم چه والدینو واوریدل اونوروهم،وروسته خلقوهغه ته اووئیل چه تاولې بې وجې ښځې ته طلاق ورکړو،ده وئیل چه ماته هیڅ هم معلوم نه دی چه ماڅه وئیلی دی اوهغه حلفیه په قرآن هم لاس ایګدی وائی چه ماته علم نشته،دترغیب اوتخویف ټولی طریقې استعمال کړې شوې لیکن هغه بیاهم وائی چه ماته هیڅ هم معلوم نه دی چه ماڅه وئیلی دی،والدین ئې

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)



وائی چه او ده دطلاق الفاظ وئیلی دی اوخدائې پوهیږی چه بې هوشه وو اوکه نه،لیکن خورنګ ئې زیړووهمدارنګه په مقامی طورباندې چه کله چه دده حالت معلوم کړې شول چه داڅنګه سړې دې چه خیانت ګر،دروغژن اوپه معاملاتوکښې څنګه دې نودمحلې چه کوم عزت مند خلق دی هغوی دده صفائی پیش کوی چه نیک سړې دې نو طلاق واقع دې اوکه نه؟بینوا توجروا

المستفتی: محمداقبال کنزالعلوم مظفرګړه..........۱۹۷۵ء۱۹\۳

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې کس باندې ښځه نه ده مطلقه شوی﴿۱﴾ لکونه مغمی علیه وعلی انه ترک الاضافة الی الزوجة﴿۲﴾ فلیراجع الی ردالمحتار ۲:۵۸۶﴿۳﴾ والهندیة۱:۴۰۱﴿۴﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾وفی الهندیة: ولو زال عقله بالضرب او ضرب هو علی رأسه حتی زال عقله وطلق لا یقع طلاقه کذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۵۳ فصل فیمن یقع طلاقه الخ)

﴿۲﴾قال العلامة محمد امین: ان الصریح لا یحتاج الی النیة ولکن لا بد فی وقوعه قضاء ودیانة من قصد اضافة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه ولم یصرفه الی ما یحتمله.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۷ مطلب ان الصریح لا یحتاج فی وقوعه الخ)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله المغمیٰ علیه ای المغشی) قال فی التحریر الاغماء آفة فی القلب او الدماغ تعطل القوی المدرکة والمحرکة عن افعالها مع بقاء العقل مغلوبا...... وهو فوق النوم فلزمه مالزمه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۳ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۴﴾وفی الهندیة: ولا یقع طلاق الصبی والمجنون والنائم والمبرسم والمغمیٰ علیه والمدهوش هکذا فی فتح القدیر.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۵۳ فصل فیمن یقع طلاقه وفیمن لا یقع طلاقه)

## د مسحور (جادو وهلی) کس د طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید خپلې ښځې ته طلاق ورکړو څه موده پس زید اووئیل چه په ماباندې بعض انسی شیطانانو د طلاق ورکولو زوراوکړو، اود خوف قتل دوجې نه ماطلاق ورکړواوددې نه علاوه په ماباندې سحرهم شوي وو دکوم په وجه چه زماعقل اوهوش تلې وو هغه دارنګه چه زمونږ ددروازې نه لاندې نه څه تعویذات اوموندلې شوپه کوم کښې چه ستن. انسانی ویخته دچرګې نوکان، ګومنزاوڅه خاوره کاغذ کښې وه ددې سحرپه وجه زه بلکل معتوه جوړشوې وم اووهمونه اوغمونه په ماباندې پراته ووپه دې وخت کښې زمانه دغه دطلاق الفاظ صادرشوي وو، نو آیا د مسحوراومجنون یوحکم دې؟ اوپه دې صورت کښې ددې طلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی مولانابهادرخان c|o امام خواجه اسرارالدین کریم پوره
پشاور ۱۲۷\شوال۱۳۸۹ه

**الجواب:** زمونږ په نیزطلاق د مکره واقع کیږی. فی الدرالمختار: ویقع طلاق کل زوج ولوعبدااومکرها فان طلاقه صحیح﴿۱﴾واماالمسحور فان کان هومغلوب العقل بحیث اختل اکثرکلامه فلایقع طلاقه، قال العلامة الشامی: فالذی ینبغی التعویل علیه فی المدهوش ونحوه اناطة الحکم بغلبة الخلل فی اقواله وافعاله الخارجة عن عادته وکذایقال فی من اختال عقله لکبراولمرض اولمصیبة فاجاته فما دام فی حال غلبة الخلل فی الاقوال والافعال لاتعتبراقواله وان کان یعلمها ویریدها الخ﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۶ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)



## په وسوسه او وهم کښې د مبتلاء سړی د طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې یو سودائی (وسواسی اووهمی) سړې ته یوآسان کارپیداشواووئې وئیل که چرې داکار ما اونه کړو نوپه ماباندې خپله ښځه طلاقه ده، اوس ده ته ددې دوئیلواونه وئیلو شک دې، دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ارشدعلی خان مردان.........۱۸\شعبان ۱۴۱۰ه

**الجواب:** کوم کس چه دوسوسې اودوهم په بیمارئ کښې مبتلاء وی﴿۱﴾اوپه غیر ارادی طورباندې یاپه مشکوک طورباندې دده دخولې نه دطلاق الفاظ اوځی نوپه دې باندې طلاق نه واقع کیږی﴿۲﴾-وهوالموفق

## دوسوسې په صورت کښې وئیل چه.په ښځه باندې منحوس الفاظ.ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زماښځې اووئیلی چه زه دفلانی کورته ځم، نومااووئیل که چرې ته لاړې نوپه تاباندې منحوس الفاظ، بیاچه کله دده موروائی چه هغه تلله نوماوئیلی که چرې لاړه نوپه دې

---

﴿۱﴾ عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ ان الله تجاوز عن امتی ما وسوست به صدورها مالم تعمل به او تتکلم متفق علیه. قال الملا علی قاری: الخواطر ان کانت تدعو الی الرذائل فهی وسوسة...... ما وسوست صدورها ای ماخطر فی قلوبهم من الخواطر الردیئة...... (مالم تعمل به) ای ما دام لم یتعلق به العمل ان کان فعلیا، (او تتکلم به) ای ما لم یتکلم به ان کان قولیا کذا فی الازهار الخ.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۱: ۲۳۸ باب فی الوسوسة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: علم انه حلف ولم یدر بطلاق او غیره لغا کما لو شک اطلق ام لا ولو شک اطلق واحدة او اکثر بنی علی الاقل.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۹۲ قبیل باب طلاق غیر المدخول بها)

باندې منحوس الفاظ، اوس په دې الفاظو کښې ماته د آوازپته نشته مګر خوله او ژبه حوزیدله بیازماپه دماغ کښې خلل راغلو او آواز وتلې دې او که نه نو ما همدارنګه اړول راړول او څوځل مې دوئیلونیت نه دې کړې، وغیره، وغیره، کښې زه چونکه دوهم دبیمارئ مریض یم په دې صورت کښې دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټرمحمد حسین چکوال جهلم

**الجواب**: په صورت مسئوله کښې طلاق نه دې واقع شوې، لعدم الـركن وهواللفظ ولکون الزوج موسوسا﴿١﴾فلیراجع الی ردالمحتار ٢: ٥٧٨﴿٢﴾ و٢: ٥٨٧﴿٣﴾. وهوالموفق

---

﴿١﴾عن ابی هریرة قال قال رسول اللهﷺ ان الله تجاوز عنی امتی ما وسوست به صدورها مالم تعمل به او تتکلم متفق علیه. قال الملا علی بن سلطان محمد القاری: (مالم تعمل به) ای مادام لم یتعلق به العمل ان کان فعلیا (او تتکلم) به ای مالم یتکلم به ان کان قولیا کذا فی الازهار.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ١: ٢٣٨ باب فی الوسوسة)

وقال العلامة ابن عابدین: وعن اللیث لا یجوز طلاق الموسوس قال یعنی المغلوب فی عقله وعن الحاکم هو المصاب فی عقله اذا تکلم یتکلم بغیر نظام کذا فی المغرب.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣: ٣١٢ باب المرتد)

﴿٢﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله ورکنه لفظ مخصوص) هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة فخرج الفسوخ علی ما مر واراد اللفظ ولو حکما لیدخل الکتابة المستبینة. (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢: ٤٥٣ کتاب الطلاق)

﴿٣﴾قال العلامة محمد امین: وعرفه فی التحریر بما یثبت حکمه الشرعی بلا نیة واراد بهااللفظ او ما یقوم مقامه...... لان رکن الطلاق اللفظ او مایقوم مقامه مما ذکر کما مر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٤٦٥ باب الصریح)





## په مرض سرسام کښې د ورکړې طلاق مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس باندې د سرسام بیماری ده په بعض وختونو کښې په ده ددیوانو غوندې دحرکاتو کیفیت راځی، بې هوده اوبې ربط خبرې کوی نوایاددې کس طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل زمان بنون.........١٩٧٨ء٣١١٢٩

**الجواب**: که چرې دامرض دعقل ختمولوترحد پورې رسیدلې وی﴿١﴾اوپه دې صورت کښې یعنی دعقل دختمیدوپه وخت کښې دده نه طلاق صادرشوی وی نوطلاق نه واقع کیږی. فی شرح التنویر: والمبرسم من البرسام بالکسر علة کالمجنون﴿٢﴾لیکن متوازن خبرو کولو والا ته مجنون وئیل قابل تسلیم نه دی. وهوالموفق

## په مالیخولیا کښې د مبتلا کس د طلاق حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې یوکس چه حافظ قرآن او حکیم حاذق دې دیونیم کال نه په ده باندې دویرې او غلبه ده اوهریوکس ته مشکوک ګوری چه ګینی دائې مخالف دې ده نه زماځان ته خطره ده حالانکه دچا سره ئې ذاتی مخالفت نشته دې لیکن دااحساسات ئې هروخت په دماغو مسلط وی، په یو رشته داربانډې اعتمادنه کوی. دده خوابښې بیماره وه کله

---

﴿١﴾قال الجغمینی: السرسام...... دموی وصفراوی، اما الدموی فعلامته حمرة الوجه وعظم النبض وحمرة لون البول واختلاط العقل والسهر...... واما الصفراوی فعلامته صفرة الوجه وسواد اللسان وحدة النبض وناریة البول والحمی الحادة وشدة العطش واختلاط العقل والسهر والهذیان. (قانونچه (طب) ١٢٠ الفصل الثانی فی السرسام)

﴿٢﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٤٦٢ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

چه ده او کتلو نوده او وئیل چه دابیمارنه دي بلکه خپله لورزمانه د خلاصولو دپاره ئې منصوبه جوړه کړي ده حالانکه مرض ئې دومره سخت وو چه په هغه مرض کښې وفات شو بیائې دښځې په باره کښې وئیل شروع کړه چه زمانه طلاق اخستل غواړی حالانکه دشلوکالونه ددوئی نه چاته دطلاق تصوري قدری هم نه دي شوي بالاخره هغه کس خپلې ښځې ته یوطلاق رجعی ورکړو څه وخت پس ئې طلاق مغلظه ورکړو، دمذکوره کس وینا ده چه زه ددې کلي نه کوم بل ځائې ته منتقل کیږم ځکه چه دکلي خلق دده مخالف دی حالانکه دا خاندان دپنځه څلویښت کالونه په دې کلي کښې اوسیږی اودکلي ټول خلق دا په زړه سره خوښوی په دې وخت کښې دوی (امامت) هم پرېښودو مګرخپل مونځ ځانته کوی بلکه دجمعې په ورځ باندې تقریرهم کوی اود خلقوسره خبرې هم صحیح کوی مګرددې باوجوددشمنانونه ځان ته خطره محسوسوی اوکله چه ددشمن تپوس ترینه اوشی نوداوائی چه ماته معلوم نه دی، اوس سوال دادې چه د مذکوره کیفیاتوپه روښنئ کښې طلاق نافذ کیږی اوکه نه او ډاکټر ده ته مجنون وئیلې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالغفورقاضی محمدفضلی مانسهره هزاره

**الجواب:** بلاشک دمجنون طلاق نه واقع کیږی﴿۱﴾لیکن باوجود دمتوازن کلام کولو کس ته مجنون وئیل ناقابل تسلیم دی﴿۲﴾البته داکس په مالیخولیا او سودا کښې ګرفتار معلومیږی لیکن مالیخولیاپه جنون کښې داخلول مطلقا

---

﴿۱﴾ قال العلامة صدر الشریعة: لا طلاق صبی ومجنون ونائم.
(شرح الوقایة ۲: ۱۷ باب ایقاع الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: الجنون اختلال القوة الممیزة بین الامور الحسنة والقبیحة المدرکة للعواقب بان لا تظهر آثارها وتتعطل افعالها اما لنقصان جبل علیه دماغه فی اصل الخلقة واما لخروج مزاج الدماغ عن الاعتدال بسبب خلط او آفة واما لاستیلاء الشیطان علیه والقاء الخیالات الفاسدة الیه بحیث یفرح ویفزع من غیر ما یصلح سببا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۲ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)



غیر صحیح دی﴿۱﴾ لهذا داطلاق نافذ دې-وهوالموفق

## په حالت د خوب کښې طلاق معتبرنه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې یوسړې په خوب کښې خبرې کوی یوځل ده دخوب په دوران کښې (کله چه هغه سخت اوده وو) اچانک ئې خبرې شروع کړې اووئې وئیل چه فلانئې (ښځه) ته طلاق طلاق طلاق دې، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید کمال صنوبرکلي مردان.......... ۲۶\۳\۱۹۷۷ء

**الجواب:** دخوب په حالت کښې دطلاق دالفاظوپه وئیلوباندې طلاق نه واقع کیږی ځکه چه نورې خبرې لغوه دی داسې طلاق هم لغوه دې، فی الدرالمختار: والنائم لانتفاء الارادة﴿۲﴾. وهوالموفق

## د نشې، غصې او د جبر په صورت کښې د طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائې علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه (۱) دنشې په حالت

---

﴿۱﴾ ډاکټر کیپټن اخترازلیکی: د مالی خولیا مریض بالکل د مې نیا د مرض ضد وی خاموش پروت وی ډیرې کمې خبرې کوی خوراك څکاك هم کم کوی یا بعضې وخت بالکل نه کوی، ولړه ختمه شی، د ولړې تندې، اودس ماتی، لامبلو یا کپړې بدلولو ډیر ورځو پورې خیال نه راځی سست پروت وی د پریشانئ خبرې کوی اوپه خبره خبره باندې ژاړی خپل ځان ګناهګار ګڼړی او خودکشئ ته تیاریږی، مې نیا او ډی پریشن (مالی خولیا) په اصل کښې د یومریض دوه حالتونه دی چه خپل مینځ کښې بدلیږی رابدلیږی دا بیماری د یو سائی کوسز قسم دې چه دې ته مینك ډیسپریسوسائی کوسز وئیلې شی. (ایلوپیتهك پریکټس آف میډیسن ۳۱۳ مالی خولیا یعنی ډی پریشن)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۳ مطلب فی طلاق المدهوش)

کښې د طلاق څه حکم دې؟(۲) د غصې په حالت کښې د طلاق څه حکم دې.
(۳) په جبري طورباندې دطلاق اخستلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولاناشوکت علی اسماعلیه مردان......۱۲۹\صفر ۱۴۰۲هـ

**الجواب**: (۱)دنشې په حالت کښې طلاقِ نافذاوواقع دې تغليظا(شامیه)﴿۱﴾-
(۲)دغیرمعمولې غصې په حالت کښې(ځکه چه ددې کس نه په دې حالت کښې اکثریاتولې خبرې بې هوده اوځ ی اویاپه غیر ارادې طورباندې دده دژبې نه خبرې اوځی)طلاق نه واقع کیږی(شامی)﴿۲﴾-(۳)په جبرې طورباندې طلاق نافذاوواقع کیږی﴿۳﴾-وهوالموفق

## د نشې په حالت کښې طلاق واقع کیږی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې یوکس دبازارنه کلې ته راغلو اورچرس ئې اوسکل.په دې حالت کښې یوه ښځه دمردان دکوریوه وینزه

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفى: او سكران ولو بنبيذ او حشيش او افيون او بنج زجراً به يفتىٰ.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۴۶۰ مطلب فى تعريف السكران وحكمه)

﴿۲﴾قال العلامة الشامى: فالذى ينبغى التعويل عليه فى المدهوش ونحوه اناطة الحكم بغلبة الخلل فى اقواله وافعاله الخارجة عن عادته وكذا يقال فيمن اختل عقله لكبر او لمرض او لمصيبة فاجأته فما دام فى حال غلبة الخلل فى الاقوال والافعال لا تعتبر اقواله وان كان يعلمها ويريدها لان هذه المعرفة والارادة غير معتبرة لعدم حصولها عن ادراك صحيح كما لا تعتبر من الصبى العاقل.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۳ مطلب فى طلاق المدهوش)

﴿۳﴾وفى الهندية: يقع طلاق كل زوج اذا كان بالغا عاقلاسواء كان حرا او عبدا طائعا او مكرها كذا فى الجوهرة النيرة.
(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۳۵۳ فصل فيمن يقع طلاقه وفيمن لا يقع طلاقه)



ئې غوښتله دکورښځې وینزه ورکړه په دې وخت کښې دبهرنه راتلونکې کس په نشه کښې ووخپله ښځه ښه اووهله ځکه چه ددې بلې ښځې سره دکورنه بهرکس په لیدوباندې دته خیال راغلوچه شائدهغه دده دښځې سره خراب تعلقات ساتی.دښځې دوهلونه پس ئې طلاق ورکړودې نه پس دکورنه دهغه کس سره لاړوکوم چه ددې بلې ښځې سره دخادمې غوښتودپاره دده کورنه بهرولاړوو.هغه ته ئې اووئیل چه ستازمادښځې سره خراب تعلقات وودې وجې نه مانښځې ته طلاق ورکړو.لهذاهغه خپل کورته راوله اوماته دهغې په بدله کښې خپله خورراکړه.وروسته چه کله دچرسونشه لاړه نوده قران اوچت کړوخلقوته ئې اووئیل چه مانښځې ته طلاق نه دې ورکړې لیکن په موقع باندې کله چه هغه طلاق ورکولودې کس دښځې مورهم موجوده وه هغه په خپله هم ګواه ده چه زمالورته ئې طلاق ورکړې دې.اوس عرض دادې چه دنشې په حالت کښې طلاق واقع کیږی اوکه نه؟دمسئلې مذکورې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرفیق......۱۹۷۴ء\۲۱\۲۰

**الجواب**: په ظاهره په دې سړې باندې ښځه طلاقه شوې دی،لمافى الدرالمختار: اوسكران بنبيذاوحشيش الخ﴿۱﴾وبمعناه فى جميع الفتاوىٰ﴿۲﴾.وهوالموفق

## د نشې په حالت کښې .ته مې پریخې ئې.. د درې ځله وئیلوحکم

**سوال**:څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس چرس په طور

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۹ مطلب فى تعريف السكران وحكمه)

﴿۲﴾ وفى الهندية: وطلاق السكران واقع اذا سكر من الخمر او النبيذ وهو مذهب اصحابنا كذافى المحيط...... ومن سكر من البنج يقع طلاقه ويحد لفشو هذا الفعل بين الناس وعليه الفتوىٰ فى زماننا كذافى جواهر الاخلاطى.
(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۳۵۳ فصل فيمن يقع طلاق وفيمن لا يقع طلاقه)

د نشې سکی، دعادت په شان ئې چرس اوسکل دکوم په وجه چه دده په دماغو باندې بدِاثراوشوراغلونوکړ ئې هم اووهلو، کله چه کورته راغلونو دښځې سره ئې جهګړه شروع کړه وئې هم وهله، مورئې راغله دخلاصی کوشش ئې کولو هغه ئې هم اووهله په دې وخت کښې په کورکښې صرف ښځې موجودې وې اوس ښځې وائی چه ده درې ځلې وئیلی دی چه ته مې پریخې ئې پریخې ئې پریخې ئې لیکن داسړې قسمیه وائی چه ماته څه علم نشته، اوس دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی الطاف حسن خان.........٩\١١\١٤٠٤ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې تجدید دنکاح کافی دې، ځکه چه، پریخې ئې ده، محاوره کښې دطلاق اوغیر طلاق دواړو دپاره استعمالیږی، فیکون من الکنایات ویکون الواقع به بائنا والاصل ان البائن لایلحق البائن﴿١﴾وحکم البائن الواحدتجدید النکاح﴿٢﴾اوکه چرته دالفظ صریح واخستلې شی نو اهل عرف داپه قطع نکاح اودبینونت په ارادې سره وائی لهذا په دې صریح سره هم بائن واقع کیږی. کماحققه العلامة الشامی فی ردالمحتار٢:٦٣٩فی اوائل الکنایات﴿٣،٤﴾. وهوالموفق

﴿١﴾قال العلامة الحصکفی: وعلی المشهور لا یلحق البائن البائن. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٥١٠ باب الکنایات)

﴿٢﴾قال فی شرح التنویر: وینکح مبانته بما دون الثلاث فی العدة وبعدها بالاجماع ومنع غیره فیها لاشتباه النسب. (شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ٢:٥٨٢ مطلب فی العقد علی المبانة)

﴿٣﴾قال العلامة محمد امین: او حلال الله علیه حرام لا حاجة الی النیة وهو الصحیح المفتی به للعرف وانه یقع به البائن لانه المتعارف ثم فرق بینه وبین سرحتک فان سرحتک کنایة لکنه فی عرف الفرس غلب استعماله فی الصریح فاذا قال رها کردم ای سرحتک یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضا...... والحاصل ان المتأخرین خالفوا المتقدمین فی وقوع البائن بالحرام بلا نیة حتی لا یصدق اذا قال لم انو لاجل العرف الحادث فی زمان المتأخرین فیتوقف الآن وقوع البائن به علی وجود العرف کما فی زمانهم واما اذا تعورف استعماله فی مجرد الطلاق لا بقید کونه بائنا یتعین وقوع الرجعی به کما فی فارسیة سرحتک...... وکونه التحقق بالصریح للعرف لا ینافی وقوع البائن به فان الصریح قد یقع به البائن کتطلیقة شدیدة الخ. (فتاویٰ شامیة ٢:٥٠٤ قبیل مطلب لا اعتبار بالاعراب هنا)

﴿٤﴾وقد رأیت علی هامش نسخة الشامیة حیث کتب......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د نشې په حالت کښې د طلاق او د ښځې د درې طلاقو دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوسړی چرس اوسکل دنشې په حالت کښې کورته راغلودمیرنئ مورسره ئې جهګړه اوکړه، دې دوران کښې دده ښځه راغله دښځې دبیان مطابق ده خپلې ښځې ته اووئیل که چرې ته زما دپلار کورته راغلې نوته په ماباندې په درې شرطونو طلاقه ئې، دسړی بیان دادې چه ما شرطونه نه دې یادکړی بلکه صرف دمره مې وئیلی دی که چرې ته زما دپلار کورته لاړې نوته په ماباندې طلاقه ئې، اوس چونکه ښځه دپلار کورته لاړله دمحلې خلقو جهګړه واوریده راغلی وو هغوئ وائی چه داالفاظ ئې دلګ لګ وقفې نه پس درې ځلونه هم زیات وئیلی دی اوس دخاونداوښځې په بیان کښې فرق دې ددې مسئلې حل څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحئ............٢٥\٣\١٩٧٤

**الجواب:** که چرې ښځې ته په جزوی طورباندې یادوی چه خاونددرې طلاقه ورکړی دی نودیته دخاوندسره اوسیدل جائزنه دی، کمایدل علیه مافی الهندیه ٥:٣٤٦﴿١﴾لان طلاق ............

(بقیه حاشیه) سیدی وشیخی ومولائی المحدث الکبیر والفقیه النبیل المفتی الاعظم العارف بالله مولانا مفتی محمد فرید دامت برکاتهم بقلمه: فقال: اعلم ان قول السلیمانیین (پٹھان) "پرے مے خودہ" ای ترکتها ومثله کنایة فی العربیة کذا فی السلیمانیة لانه یستعمل شائعا فی غیر الطلاق ویراد به الطلاق عند القرائن الخارجیة فالظاهر انه کنایة فی السلیمانیة ایضا فاذا کرره فیقع به الواحدة لان البائن لا یلحق البائن ولو سلم انه صریح فالمتعارف به وقوع البائن لانهم یقصدون ذلک فافهم. (من افادات حضرت مفتی اعظم دامت برکاتهم)

﴿١﴾وفی الهندیة: وکذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثا وجحد الزوج ذلک وحلف فردها علیه القاضی لم یسعها المقام معه وینبغی لها ان تفتدی بما لها او تهرب منه وان لم تقدر علی ذلک قتلته. (فتاویٰ عالمگیریة ٥:٣١٣ الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات)

السکران واقع(۱). وهوالموفق

## د نشې په حالت کښې د طلاق او عدد کښې د شک مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یو سړی دنشې په حالت کښې ښځې ته طلاق ورکړو. دوه کسان دده دمسلوب العقل ګواهی ورکوی بیاده نشه کول پریخودل دوه کاله پس ده اووئیل چه ما طلاق نه دې ورکړې په شرع کښې ددې څه حکم دې. بینوا توجروا

المستفتی: امیرمحمد هرنائی بلوچستان.........۱۹/۷/۱۹۷۹

**الجواب:** دنشې په حالت کښې طلاق واقع کیږی. کمافی طلاق شرح التنویر(۲) وغیره(۳) لیکن عدد کښې د شک په وجه دتغلیظ حکم نه نافذ کیږی، یو طلاق واقع کیږی. کمافی الهندیة ۱:۳۶۳ اذاشک فی انه طلق واحدة اوثلثا فهی واحدة حتی یستیقن اویکون اکبرظنه علی خلافه(۴). وهوالموفق

## ښځې ته درې طلاق تعلیقی ورکړی بیا د نشې په حالت کښې د طلاق اقرار اوکړو ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ماخپلې ښځې ته

(۱) قال العلامة ابن الهمام: وطلاق السکران واقع.
(فتح القدیر ۳:۳۴۵ فصل ویقع طلاق کل زوج الخ)

(۲) قال العلامة الحصکفی: او سکران ولو بنبیذ او حشیش اوْ افیون او بنج زجرا به یفتی.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۶۰ مطلب فی تعریف السکران)

(۳) وفی الهندیة: ومن سکر من البنج یقع طلاقه ویحد لفشو هذا الفعل بین الناس وعلیه الفتویٰ فی زماننا کذافی جواهر الاخلاطی.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۵۳ فصل فیمن یقع طلاقه وفیمن لا یقع)

(۴) (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۶۳ مطلب اذا شک انه مطلق واحدة او ثلاثا)



دوه ورځې وړاندې ئیلی وو که چرې ته خاموش نه شولې نوزه به تا په درې طلاقو باندې پریږدم. دې نه پس زمانښځه په ژړا شوه په دې کښې زما مشره خور کور ته راغله. زه دکورنه اووتم کله چه دشپې کورته راغلم ښځه مې په کور کښې نه وه. په دې وخت کښې زه په نشه کښې اوم. ددې نه پس زه دمولوی صاحب خواته بوتللې شوم دنشې په حالت کښې. ما مولوی صاحب ته بیان اوکړو په دې باندې مولوی صاحب دطلاق مغلظ حکم اولګوو اوس زه حلفیه بیان کوم چه ما صرف داپاسنی کلمات ذکرکړې دی آیا په دې سره واقعی طلاق مغلظه واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ابوالخیرعبدالقدوس خطیب جامع مسجد ډی آئ خان ۱۹رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت په دې خاوندباندې ښځه نه ده مطلقه شوې ځکه چه ده تعلیق بالشرط کړې دې. والاصل ان المعلق بالشرط یجب ثبوته عندثبوت شرطه لاقبله(۱) والاقراربالطلاق وبالاطلاق، فان الاول راجع قضاء ودیانة عندالشامی والثانی یعتبرقضاء لادیانة کماصرحوابه فی الاقرار بالطلاق هازلااو کاذبا(۲) فالظاهر ان السکرلایفوق الهزل فافهم ولاتعجل فی الردوالقبول فانی لم اجدالتصریح به. وهوالموفق

(۱) قال العلامة الآتاسی: المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط.
(شرح المجلة للآتاسی ۱:۲۳۲ ماده:۸۲)

(۲) قال العلامة محمد امین: (قوله او هازلا) ای فیقع قضاء ودیانة کما یذکره الشارح وبه صرح فی الخلاصة معللا بانه مکابر باللفظ فیستحق التغلیظ وکذا فی البزازیة واما ما فی اکراه الخانیة لو اکره علی ان یقر بالطلاق فاقر لا یقع کما لو اقربالطلاق هازلا او کاذبا فقال فی البحر ان مراده لعدم الوقوع فی المشبه به عدمه دیانة ثم نقل عن البزازیة والقنیة لو اراد به الخبر عن الماضی کذبا لا یقع دیانة وان اشهد قبل ذلک لا یقع قضاء ایضا، ویمکن حمل ما فی الخانیة علی ما اذا اشهد علی انه یقربالطلاق هازل......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

..........

(بقیه حاشیه) ثم لا یخفی ان ما مر عن الخلاصة انما هو فیما لو انشأ الطلاق هازلا وما فی الخانیة فیما لو اقر به هازلا فلا منافاة بینهما قال فی التلویح وکما انه یبطل الاقرار بالطلاق والعتاق مکرها کذلک یبطل الاقرار بهما هازلا لان الهزل دلیل الکذب کالاکراه حتی لو اجاز ذلک لم یجز لان الاجازة انما تلحق سببا منعقدا یحتمل الصحة والبطلان و بالاجازة لا یصیر الکذب صدقا وهذا بخلاف انشاء الطلاق والعتاق ونحوهما مما لا یحتمل الفسخ فانه لا اثر فیه للهزل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۵۹ قبیل مطلب فی تعریف السکران وحکمه)

..........



# باب ما لایقع به الطلاق

## په معصیت سره په نکاح باندې اثرنه غورځېږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه په مونږ کښې دا مشهوره ده چه کله کومه ښځه صرف نیمه ګانه هم اووائی ددې نکاح ماتیږی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید هائی سکول لدهاوزیرستان... ۱۲۴شعبان ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** په معصیت سره په نکاح باندې اثرنه پریوځی، والمسئلة من الواضحات﴿۱﴾. وهو الموفق

## خپلې ښځې ته طلاق ورکول غواړم. دانشاء طلاق نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس په مسافرئ کښې دې ده خپلې مورته اولیکل چه زه خپلې ښځې ته طلاق ورکول غواړم لیکن مورئې داخبره اینګورته اونه کړله، په دې صورت کښې طلاق واقع شو اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی فضل شاه کرم ایجنسی.......... ۱۱۹۱ء۱۹۷۲

﴿۱﴾ قال العلامة محمد عبد العزیز الفرهاری: ان الکبیرة التی هی غیر الکفر لا تخرج العبد المؤمن من الایمان لبقاء التصدیق الذی هو حقیقة الایمان...... ان حقیقة الایمان هو التصدیق القلبی فلا یخرج العبد المؤمن عن الاتصاف به الا بما ینافیه وهو التکذیب.

(النبراس شرح شرح العقائد ۲۲۶ بحث الکبیرة لا تخرج عن الایمان)

**جواب:** دالفاظ دانشاء طلاق نه دی﴿۱﴾ په دې سره طلاق نه واقع کیږي برابره خبره ده که ښځې ته ئې اورسوی اوکه نه -وهو الموفق

## ښځه وهلو اوغیر محرم سره یواځې پریخودلو باندې طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوکس دواده تقریبا شپږ میاشتې شوي دی ددواړو په مینځ کښې ناروغی اوفسادشروع شو، یوورځ خاوندخپله ښځه ډیره زیاته اووهله بیائې په دې هم بس نه کړله بلکه هره ورځ به ئې وهله .یوورځ ئې غیرمحرم کس ته آوازاوکړویواځې ئې دخپلې ښځې سره دننه پریخودو .هغه هم دده ښځه اووهله اودهغې کپړې ئې اوشلولې دهغې بې حرمتی ئې وکړه .ایاپه داسې قسم حالاتوکښې طلاق نه واقع کیږي چه غیر محرم سره ئې یواځې پریږدی؟بینوا توجروا

المستفتی: صوفی قائم دین راولپنډی..........۱۴۱۲۱ء۱۹۷۳

**الجواب:** بشرط صدق مستفتی داخاوندظالم اوبې غیرته دې﴿۲﴾ده ته پکار دی چه امساک بالمعروف یاتسریح بالاحسان اوکړي﴿۳﴾-وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وركنه لفظ مخصوص، قال ابن عابدين: هو ما جعل دلالة على معنى الطلاق من صريح او كناية...... واراد اللفظ ولو حكما.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۵۳ كتاب الطلاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله يا قرطبان مرادف ديوث) قال الزيلعي هو الذى يرى مع امرأته او محرمه رجلا فيدعه خاليا بها وقيل هو المتسبب للجمع بين اثنين لمعنى غير ممدوح وقيل هو الذى يبعث امرأته مع غلام بالغ او مع مزارعه الى الضيعة او يأذن لهما بالدخول عليها فى غيبته. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۲۰۲ قبيل فروع باب التعزير)

﴿۳﴾ قال الله تبارك وتعالى: الطلاق مرتان فامساك بمعروف او تسريح باحسان.
(سورة البقرة پاره: ۲ ركوع: ۱۳ آيت: ۲۲۹)



## طلاق رجعی کښې د عدت تیرولو نه پس طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید خپلې ښځې ته طلاق رجعي ورکړو دعدت ختمیدو نه وروسته ددې سره ئې نکاح اوکړه، څه زمانه پس دخبروپه دوران کښې دده دښځې دخولې نه اووتل چه فلان بزرګ زما خدائې دې،ددې وینا شپږ میاشتې پس زیدپه احتیاط باندې تجدید د نکاح اوکړه.لیکن دحالاتو دننه بنه کیدوپه وجه زید بیایوطلاق رجعی ورکړوجینئ دمورکورته لاړه اوعدت ئې هم تیرشو.ددې نه پس دجینئ دکوروالاچه کله د دوباره نکاح تقاضااوکړه نوزیدددوئ په دې مطالبه باندې دې ښځې ته درې طلاقه نورورکړل.اوس دجینئ دکوروالا وائی چه دادرې طلاقه دعدت نه پس واقع شوي دی دې وجې نه دالغوه شو. د زیدښځه نه ده مغلظه شوې.دجینئ والا وائی چه دوه طلاق رجعی اول واقع شوي دی درې نورزیات واقع شول.ددې وجې نه نکاح بغیر دحلالې نه جائزنه دې،ددې مسئلې حل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدعبدالله اداره تعلیم القرآن باغ محله جهلم شهر ۱۹۷۰ء۴۱۴۱

**الجواب:** بشرط صدق داښځه مطلقه مغلظه نه ده.ځکه چه دادرې طلاقه کوم چه یوځل ورکړې دی دعدت تیریدلوپه وجه نامنظوردې.لهذاپه صورت مسئوله کښې دښځې په رضامندی باندې تجدیدد نکاح جائز اوکافی دې.
لانه يشترط لصحة النكاح اوالعدة فقط.قال فى الدارالمختارمع ردالمحتار: ومحله المنكوحه اى ولومعتدة عن طلاق رجعى الخ﴿۱﴾.وهو الموفق

## د ښځې د ویرولو د پاره د طلاق د نوټس د لیکلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید د کورنی ورانئ په وجه باندې ښځه ویرولوډپاره کچهرو ته لاړو عرائض نویس ته ئې اوونیل چه

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۴۵۲ مطلب طلاق الدور)

زما ښځې ته د طلاق نوټس ولیکه، عرائض نویس نوټس د طلاق درې باره شرع محمدی اولیکل، زید هم بغیر دوئیلو نه په نوټس باندې دستخط اوکړو، زید په حالت حمل کښې نوټس ورکړو، ددې نه پس ئې دویم نوټس نه دې ورکړې، آیا زید په میعاد دننه رجوع کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام جان کیمل پور........ ۱۹۸۳ء/۱۰/۹

**الجواب**: که چرې خاوند دالفاظ، ،طلاق درې باره شرع محمدی، ،نه لیکلې وی اونه ئې په بل چالیکلې دې اونه ده دالیکل وئیلې وی اویادخاوند ګمان او خیال دادې چه دښځې دوصولی نه پس به داطلاق موثر کیږی، نوپه دې صورتونو کښې داخاوند په عدت کښې دننه رجوع کولې شی، ونظیره مافی الهندیة: ۳: ۶۶۹ رجل قال لغیره طلق امرآتی فطلقها الوکیل ثلاثافان کان الزوج نوی الثلاث یقع الثلاث والالم یقع شیئ فی قول ابی حنیفة وفی قول صاحبیه تقع واحدة﴿۱﴾. وهو الموفق

## د طلاق نامې د لیکلو په وخت اراده د طلاق بدلول

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس ښځې ته د طلاق ورکولو اراده اوکړه په دې عرض باندې کچهروته لاړو او ستامپ نویس ته ئې د طلاق لیکلو اووئیل، هغه لیکل شروع کړه مګر په دغه وخت ده اراده بدله شوه او دخط لیکلو نه ئې مخ واړولو، بهرحال هغه طلاق ثلاثه اولیکل ده ستامپ نویس ته اووئیل چه زه داسې نه کوم، ستامپ نویس ده ته اووئیل چه دستخط اوکړه او کله پورې چه دا ښځه وصول نه کړی طلاق نه واقع کیږی ده دستخط اوکړو، ایا طلاق ثلاثه واقع شوي دې که نه څکه چه ښځې ته ئې دا نه دې ورکړې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل شمروز چترال........ ۱۹۷۲ء/۱/۱۸

**الجواب**: صورت مسئوله کښې تجدید دنکاح کافی دې څکه چه دې خاوند د

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریة ۳: ۶۱۱ الفصل الثانی فی الوکالة بالطلاق والخلع)



طلاق لیکلو په وخت کښې د طلاق ورکولو اراده منقطع کړې وه، همدارنګه ده په خپل ګمان کښې د طلاق موثر کیدو د ښځې په وصول کولو موقوف کړی وو. وهو الموفق

## د ښځې دا وینا چه ته زما خاوند نه ئې موجب د طلاق نه دې

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه خاوند ښځې ته اووئیل چه ماته داخیزرا کړه ښځه انکار اوکړی، خاوند د محبت په لهجه کښې اووائی چه ایا ته زما محبوبه ښځه نه ئې؟ ښځه اووائی چه محبت والا ښځه پریږده ستا ښځه نه یمه، په دې باندې کوم یو طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عزیز الرحمٰن رابغ سعودی عرب........ ۱۴۰۱/۷/۱۵ھ

**الجواب**: د ښځې داوینا (دخوش طبعی په طور باندې) چه زه ستا ښځه نه یم ضرر رسان نه دې اګرچه داکلام دروغ دې یا هزل، که چرې په ارادې طلاق سره اووائی بیا هم طلاق نه دې، لحدیث الطلاق لمن اخذ بالساق (ابن ماجه)﴿۱﴾. وهو الموفق

## د شک په صورت کښې د تعلیق طلاق مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس دیو کار مکمل اراده کړې وی مګر ناکام شو، اوس په شک کښې دې چه هسې نه مادې سره داوئیلی وی که چرې ماداکار مکمل نه کړو نو په ما باندې ښځه طلاقه ده ایا په شک سره طلاق واقع کیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: الف، س، ع، ګوجر ګړهی مردان........ ۱۲/ رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب**: دشک په صورت کښې طلاق نه واقع کیږی (حموی)﴿۲﴾- وهو الموفق

﴿۱﴾ (سنن ابن ماجة ۱۵۱ باب طلاق العبد)

﴿۲﴾ قال العلامة الحموی: فحلفه باطل ای فلا شیئ علیه قیل اما الطلاق والعتاق فانهما لا یقعان بالشک. (غمز عیون البصائر علیٰ الاشباه ۱: ۱۹۸ القاعدة الثالثة)

## په شک سره طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس په دې کلام کښې مشکوک دې چه ما انت طالق یا طلقتها باندې تلفظ کړې دې او که نه، لکه څنګه چه سړې مونځ کوی او دهغه په ذهن کښې دکومې واقعې تصور راشی بیا ده ته خطره راشی هسې نه چه ما په دې واقعه باندې تلفظ کړې دې او هغه ته دمونځ خرابید و خطره راشی. او دې کس ته داشک په مونځ کښې عارض شوې وی او که بغیر دمونځ نه. اوس دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالرشید حقانی ډیره اسماعیل خان

**الجواب:** چونکه چه نکاح یقیناً موجود ده لیکن په طلاق کښې شک واقع شوې دې لهذا دې امر مشکوک سره امر متیقن نه زائله کیږی﴿۱﴾ قال فی الاشباه والنظائر القاعدة الثالثة: الیقین لایزول بالشک﴿۲﴾. وهو الموفق

## پلار د نابالغه ځوئ ښځې ته طلاق نه شی ورکولې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې پلار دخپل نابالغ ځوئ دطرفه نه دده ښځې ته طلاق ورکړی نو دا طلاق واقع کیږی او که نه؟ څنګه چه په نکاح کښې نابالغ اولاد دپاره دپلار ولایت صحیح کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود معلم دینیات پائمال شریف هزاره... ۲۰۱۸۱۱۹۷۲

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: ومنها شک هل طلق ام لا؟ لم یقع، شک انه طلق واحدة او اکثر؟ بنی علی الاقل کما ذکره الاسبیجابی.

(الاشباه والنظائر ٦۴ قاعدة من شک هل فعل ام لا)

﴿۲﴾ الاشباه والنظائر فی الفقه الحنفی ٦٠ القاعدة الثالثة)





**الجواب:** پلار دخوی ښځې ته نه طلاق ورکولې شی او نه دځوئ دطرفنه خلع کولې شی، لحدیث ابن ماجه: الطلاق لمن اخذ بالساق﴿۱﴾ قال الشامی: کنایة عن ملک المتعة﴿۲﴾ فی الهندیة ۱: ۵۲۹ باب الخلع: اذا خالع الاب علی ابنه الصغیر لایصح ولا یتوقف علی اجازته وفیها. خلع الصبی باطل﴿۳﴾. وهو الموفق

## په ما باندې حلاله دنیا حرامه ده.. وئیلو سره دطلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس خپل افسر ته اولیکل چه زه فلا ن تاریخ ته کورته ځم او که لانړم نو په ما باندې حلاله دنیا حرامه ده په دې لیکلو باندې دلیکونکی او دوه ګواهانو دستخط دې لیکن تر مقرره وخت پورې شخص مذکوره کورته لانه ړوبلکه دې وخته پورې نه دې تلې، ایا په مذکوره کس باندې ښځه مطلقه ده؟ حالانکه ددې سړې دلیکلو په وخت داوهم او ګمان هم نه ووچه، ،حلاله دنیا حرامه ده، ،سره هم طلاق واقع کیږی اوس ددې مسئلې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فاروق خطیب ملکوټ مری.......... ۱۴۱۲۱۸۸

**الجواب:** چونکه دایمان(قسم) دارومدار په عرف باندې کیږی او زمونږ دکلو په عرف کښې دالفظ دجماع متعلق معروف نه دې او داحالف هم دجماع متعلق خالی الذهن وو. لهذا په دې حالف باندې ښځه نه ده مطلقه شوې نه قضاءً او نه دیانةً. والتفصیل فی کتاب ایمان ردالمحتار ۳: ۸۹﴿٤﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (سنن ابن ماجة ۱۵۱ باب طلاق العبد)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ٤٦۲ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۵۰٤ قبیل الباب التاسع فی الظهار)

﴿٤﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال فی الهدایة: ولو قال کل حل علی حرام فهو علی الطعام والشراب الا ان ینوی غیر ذلک والقیاس ان یحنث ..... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## خپلې لورته کنزلې کولو باندې په نکاح باندې اثر نه پریوزی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه خپلې لورته بې هوده کنزلې کول حتی چه داووائی چه زه تاسره زناکوم دې سره طلاق خونه واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اسماعیل شاه مرزاکیمل پور

**الجواب:** داکنزلې حرامې دی﴿۱﴾ په نکاح باندې څه اثرنه پریوځی-وهوالموفق

## دالیکشن په دوران کښې د خاوند نوم غلط خودل په نکاح باندې اثرنه غورځیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دالیکشن په دوران کښې د ووټ اچولو په وخت کښې یوښځه دخپل خاوند دویم نوم و اخلی، یعنی دروغ اووائی لیکن ددې خاوندبل سړې دې نودې سره په نکاح کښې څه فرق غورځیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: بادشاه نورناظم جمیعت علماء

(بقیه حاشیه) کما فرغ لانه باشر فعلا مباحا وهو التنفس ونحوه وهذا قول زفر وجه الاستحسان ان المقصود وهو البر لا یحصل مع اعتبار العموم فینصرف الی الطعام والشراب للعرف فانه یستعمل فیما یتناول عادة ولا یتناول المرأة الا بالنیه لاسقاط اعتبار العموم واذا نواها کان ایلاء ولا یصرف الیمین عن المأکول والمشروب وهذا کله جواب ظاهر الروایة الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۱ مطلب کل حل علیٰ حرام)

﴿۱﴾ عن عبدالله بن مسعود قال: قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق، قال النووی: السب فی اللغة الشتم والتکلم فی عرض الانسان بما یعیبه والفسق فی اللغة الخروج والمراد به فی الشرع الخروج عن الطاعة، واما معنی الحدیث فسب المسلم بغیر حق حرام باجماع الامة وفاعله فاسق کما اخبر به النبی ﷺ.

(مسلم شریف مع شرحه النواوی ۱: ۵۸ باب سباب المسلم فسوق)



**الجواب:** په دروغ وئیلو سره﴿۱﴾ نکاح باندې اثرنه غورځیږی-وهوالموفق

## صرف په خیال او تصور کولوسره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې یوکس صرف په خیال اوتصورکښې داتلفظ اوکړی چه کله زه ددې جینئ سره نکاح اوکړم نو په ماباندې طلاقه ده، یازه به هغه طلاقوم، اوس پلا رهغه ته هغه جینئ په نکاح کښې راوسته، نودهغه تصوراوخیال والاخبرې څه حکم دې؟

بینوا توجروا

المستفتی: فریق الله عرف حبیب الله........ ۴/۵/۱۹۷۴ء

**الجواب:** صرف په تصوراونیت سره نه یو قسم طلاق واقع کیږی اونه تعلیق درست دې﴿۲﴾ ردالمحتار ۴۰۶:۱﴿۳﴾.وهوالموفق

## په طلاق کښې د دروغو دهوکې او د هزل فرق

**سوال:** څه فرمائی علماءدین ددې مسئلې په باره کښې چه دزیددوه ښځې دی

﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: آیة المنافق ثلاث اذا حدث کذب واذا وعد اخلف واذا اؤتمن خان.

(مشکواة المصابیح ۱: ۱۸ کتاب الایمان فی الکبائر)

﴿۲﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: ان الله تجاوز عن امتی ما وسوست به صدورها مالم تعمل به او تتکلم بها، متفق علیه.

(مشکواة المصابیح ۱: ۱۸ باب الوسوسة الفصل الاول)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: بلفظ مخصوص هو ما اشتمل علی الطلاق...... ورکنه لفظ مخصوص، قال ابن عابدین: هو ما جعل دلالة علی معنی الطلاق من صریح او کنایة...... واراد اللفظ ولو حکما لیدخل الکتابة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

دواړه اکثرپه خپل مینځ کښې جهګړه کوی، یوځل زید دخپلې ښځې د خاموش کولو دپاره داډرامه اوکړه چه ددویمې ښځې حقیقي نوم ئې پريخودو فرضي نوم ئې اوليکلو يوليک ئې په صورت دطلاق نامې کښې تيار کړو، اول الذکر ښځې ته ئې اووئيل چه اوګوره مادويمه ښځه فارغه کړې ده دويمه ښځه مطمئنه شوه، اوس زيد په شک کښې دې چه مانه خوخپلې ښځې ته طلاق ورکړې اونه مې اراده وه، اونه مې اصلي نوم ليکلې دې، په دې صورت کښې دا ښځه طلاقه شوه اوکنه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمودالحسن شنکياری مانسهره... ١٠\رمضان١٤٠٩ھ

**الجواب**: د زيد دا کلام دروغ، دهوکه يا تدبير دې هزل نه دې، حکايت دې انشاء نه ده، لهذا په زيد باندې ښځه نه ده مطلقه شوې نه اول نه دويمه﴿١﴾۔ وهوالموفق

## ..د خر طلاق زويه.. کنزلې دی طلاق نه دې

**سوال**: څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه زيد دغصې په حالت کښې خپل زوی ته اووائی، ..دخر طلاق زويه، .دې کلماتو سره زيد باندې طلاق واقع کيږی اوکه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل مولا بابوزئی مردان........١٩٧٢ء١٩\١٧\١٩ھ

﴿١﴾ وفی الهندية ولو قال امرأته الحبشية طالق ولا نيه له فی طلاق امرأته وامرأته ليست بحبشية لايقع عليها وعلى هذا اذا سمی بغير اسمها ولا نية له فی طلاق امرأته فان نوی طلاق امرأته فی هذه الوجوه طلقت امرأته كذا فی الذخيرة.

(فتاویٰ عالمگيرية ١:٣٥٨ الباب الثانی فی ايقاع الطلاق الفصل الاول)

وقال العلامة ابن نجيم: لو قال امرأته الحبشية طالق وامرأته ليست بحبشية لا يقع...... وفی المحيط الاصل انه متى وجدت النسبة وغير اسمها بغيره لا يقع لان التعريف لا يحصل بالتسمية متى بدل اسمها لان بذلک الاسم تكون امرأة اجنبية.

(البحر الرائق ٣:٢٧٣ باب طلاق الصريح)



**الجواب**: چونکه دالفظ(سب) دکنزلو دپاره استعماليږی نه د انشاء دطلاق دپاره، لعدم الاضافه الى المراة، لهذا په دې کس باندې ښځه نه ده مطلقه شوې﴿١﴾ والدليل على السب ان هذا اللفظ يستعمله الايم ايضا، فافهم. وهوالموفق

## د مختلف احتمالاتو په وجه باندې د طلاق حکم لګول بې قاعدې امردې

**سوال**: څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه ديوکس دوه ښځې دې دخپل کورزيورات په ډير احتياط باندې په خپل تحويل کښې ساتی بيا هغه زيورات ورک شول دده دسخت اخلاقونه اوډنده کرداراوسيرت په بناء باندې دکلې ټول خلق ددې ورک شوې واقعه ددې کس خپل فريب ګڼړی داپه ضد دې چه زيورات ورک شوې دی. ليکن خلق ئې منلوته تيارنه دی نوهغه خپله صفائی په دې الفاظوسره کوی، .که چرې زمازيورات نه وی ورک شوی، نو په مابانډې خپله ښځه په هردرې طلاقوسره حرامه ده ياماته دهغې څه علم وی ياماپه خپله دبل چاپه حواله کړې وی، دقسم کولونه پس داخپلې دواړه ښځې مجرمې ګڼړی، ښځې دقسم کولودپاره تيارې دی ليکن دادقسم اچولو په ځائې بدستورهغوئ ملزمانې جوړوی، څه ورځې پس دده دويمه(نوی)ښځې سره په معمولې خبره باندې جهګړه اوشوه، په غصه کښې هغه دواړه خالی لاس اوليګی اوداله دپلارکره لاړه شی ددې نه پس دې سړې دخپلې يوې ښځې په نوم يونوټس جارې کړوپه کوم کښې ئې چه الزام لګولې دې چه تازماپه عدم موجودګئ کښې زيورات اونقدې وړې دی اوخپل والدينوکره تلې ئې، دنوټس ملاويدوسره ټول سامان سره واپس کورته راشه ګينې زه ديوانی دعوی ليکمه

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفی: والكنايات ثلاث ما يحتمل الرد او ما يصلح للسب اولا ولا، قال ابن عابدين: (قوله خلية) ای خالية اما عن النكاح او عن الخير ای فهو على الاول جواب وعلى الثانی سب وشتم ومثله ما يأتی.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ٢:٥٠٢، ٥٠٣ باب الكنايات)

په دې باندې ددې سړی دګوتې نښان اودعرائض نویس دستخط اومهرهم لګیدلې دې.په نوښس کښې دزیوراتواندراج دې چه دده نه دده د وینامطابق ورانډې ورک شوې ووبل طرفته ئې هغه دوه ښځې طلاقې کړې دااعلان کوی چه زیورات ورک شوي دی اواوس وائی چه دښځې سره دی یعنی دلیک په طور باندې دورک شوو زیوراتوپه موجودګئ(خپل کورکښې) تسلیم کړی دویم ځل دښځې په سر باندې اړوی.حالانکه ښځه ده یک یواځې خالی لاس دکورنه ویستلې ده نوددې تضادبیانی په وجه دده طلاق واقع دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام رسول کانجوډیره اسماعیل خان......... ۲۵/۸/۱۹۷۵ء

**الجواب**: چونکه دطلاق اچولونه پس دزیوراتوپیداکیدواحتمال موجوددې همدارنګه دنوروزیوراتوجوړولواحتمال هم موجوددې اوددروغ بیانی(ځنګه چه ئې عام طورباندې په نوښسونوکښې کړي ده)هم احتمال موجوددې لهذاددې احتمالاتوپه موجودګئ کښې دښځومطلقه کیدل بې قاعدې امردې﴿۱﴾-وهوالموفق

## .د فلانی تقریرکه مې واوریدو نو ښځه مې طلاقه.

## بیانې دټیپ ریکارډ نه واوری دد ې حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زیداووئیل که چرې دفلانی تقریرمې واوریدونوزمابنځه طلاقه ده.بیاهغه اچانک ټیپ ریکارډ اولګولونوپه هغې کښې دغه کس تقریرووااوڅه الفاظ ئې واوریدل سمدستی ئې بندکړو.ایاطلاق واقع شو؟بینوا توجروا

المستفتی: احمدعلی حقانی جنوبی وزیرستان........... ۱۴/۹/۱۹۸۷ء

﴿۱﴾ دصدق الزوج فی الشرط په صورت کښې دا احتمالات مفید اود کذب په صورت کښې بې فائدې دی............(سیف الله حقانی)



**جواب**:داکس نه حانث کیږی ځکه چه ده تقریرنه دې اوریدلې،بلکه دتقریر عکس ئې اوریدلې دې﴿۱﴾-وهوالموفق

## .که دا کار ما اوکړو نو زه به طلاقی یم.ددې حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې یوکس اووائی ځنګه چه عام رواج دې،، که ماداکاراونه کړونوزه به طلاقی یم،،یعنی که چرې زما دا کاراوکړونوزه طلاقی یم،نوایاددې کارکولونه پس طلاق واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولاناسراج الدین حقانی خطیب سفید مسجدبدرشی نوشهره۱۹۸۴ء/۳/۶

**الجواب**: په دې کس باندې ښځه نه ده مطلقه شوې عرف کښې دا الفاظ سب د(کنزلو) په طورباندې استعمالیږی نه د انشاء طلاق په ارادې سره﴿۲﴾ همدارنګه په دې کښې اضافت هم موجودنه دې﴿۳﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة ابن نجیم: ولو حلف لا یتکلم...... ولو کتب الیه کتابا او ارسل الیه رسولا لا یحنث لانه لایسمی کلاما عرفا...... واعلم ان الکلام لا یکون الا باللسان فلا یکون بالاشارة ولا بالکتابة والاخبار والاقرار والبشارة تکون بالکتابة لا بالاشارة والایماء والاظهار والافشاء والاعلام یکون بالاشارة ایضا الخ.

(البحر الرائق ۴:۳۳۳ باب الیمین فی الاکل والشرب واللبس والکلام)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم لو قال لها یا مطلقة ان لم یکن لها زوج طلقها قبله او کان لها زوج لکن مات وقع الطلاق علیها وان کان لها زوج طلقها قبله ان لم ینو الاخبار طلقت، وان نوی به الاخبار صدق دیانة وقضاء علی الصحیح ولو نوی به الشتم دین.

(الاشباه والنظائر ۱۵۱ التاسع بیان محل النیة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان الصریح لا یحتاج ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د خپلې ښځې په ځائې د بلې ښځې نوم واخلی طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیو کس نکاح د صاحبزادګئ سره اوشوه بیاپه خپلو کښې داختلاف په وجه بعض خلقودې مجبورکړو چه دې ښځې ته طلا ق ورکړه، دسخت مجبورئ په وجه ده داحیله وکړله چه دده دښځې دخورنوم نواب زادګئې ده هغې ته اووئیل چه دده دښځې نوم څه دې؟دې وخت کښې دجینئ رشته دارموجودنه وو، او نورو خلقوته هم ددې نوم نه ورتلو، نواب زادګئ قصدااووئیل، دوئ ددې دطلاق ورکولومطالبه اوکړه نودې کس اووئیل چه مانواب زادګئ پریخې ده درې ځله ئې اوئیل، نوایادده په غلط نوم اخستلوباندې طلاق واقع کیږی کله چه ئې خپلې ښځې صاحبزادګئې ته دطلاق ورکولواراده نه وی؟بینوا توجروا

المستفتی:مولوی محمدامین مهتمم مدرسه تعلیم الاسلام قائدآبادسرګودها۱۹۷۷ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې په دې خاوندباندې ښځه نه ده مطلقه شوې، کمافی الهندیة ۱:۳۸۲ قال امراته عمرة بنت صبیح طالق وامراته عمرة بن حفص ولانیة له لاتطلق امراته(الی ان قال)ولوقال امراتہ الحبیشیة طالق ولانیة له

---

(بقیه حاشیه ) الی النیة ولکن لابد فی وقوعه قضاء ودیانة من قصد اضافة لفظ الطلاق الیها عالما بمعناه ولم یصرفه الی ما یحتمله کما افاده فی الفتح وحققه فی النهر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴٦۷ مطلب ان الصریح یحتاج فی وقوعه دیانة الی النیة)

وفی الهندیة: وفی الفتاویٰ رجل قال لامرأته اگر تو زن منی سه طلاق (ان کنت امرأتی طالق ثلاثا) مع حذف الیاء لا یقع اذا قال لم انو الطلاق لانه لما حذف لم یکن مضیفا الیها.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۸۲ الفصل السابع فی الطلاق بالفارسیة)



فی طلاق امراته وامراته لیست بحبشیة لایقع علیهاوعلی هذااذاسمی بغیر اسمهـــا ولانیة له فی طلاق امرآته﴿۱﴾.وهوالموفق

## د خپلې ښځې متعلق خوئې ته دا وئیل چه ..دا ځما ښځه ده اوکه ستا..ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس دخپلې ښځې خوئ ته چه کوم ددې ددویم خاوندنه ووهغه ته اووائی چه، ،دازماښځه ده اوکه ستا، ،یعنی دهغه حقیقی مورهغه ته دښځې په نسبت منسوب کړی، آیا په دې خبرې سره حرمت واقع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فاضل هزاره...............۱۹۷۷ء۱۹۱۳

**الجواب:** دا جاهلانه کلام دې ګنهګاریږې لیکن طلاق یاحرمت نه واقع کیږی. وهوالموفق

## بغیر د اضافت او حکم نه..اووه طلاقه.. وئیل لغوه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوکس اووئیل چه ،،اووه طلاقه، ،یعنې صرف دااووائی نورڅه ئې نه دې وئیلې وروسته ئې اووئیل چه قسم دې ددې څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: طالب جان حقانی...............یکم ذیقعده۱۴۰۱ه

**الجواب:** دې کښې نه اضافت الی الزوج موجوددې اونه حکم، پس دالفظ لغوه دې﴿۲﴾-وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۵۸ الباب الثانی فی ایقاع الطلاق الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: صریحه مال لم یستعمل الا فیه کطلقتک وانت طالق ومطلقة قید بخطابها لانه لو قال ان خرجت یقع الطلاق او لا تخرجی الا باذنی فانی حلفت بالطلاق فخرجت لم یقع لترکه الاضافة الیها، قال ابن عابدین: لترکه الاضافة ای المعنویة فانها الشرط والخطاب من الاضافة المعنویة وکذا الاشارة نحو هذه طالق.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴٦٦ باب الصریح)

## ..اې طلاق دې وی که ئې اوخوړو..

## یعنی طلاق دې که چرې اونې خوړلو.ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دبغض خلقو میلمانه راشی کوروالاور ته دګډ ذبح کولواراده اوکړه نویومیلمه اووئیل چه مونږ داګډ نه خورواوالفاظ دطلاق ئې دارنګه په پښتوکښې استعمال کړل،، اې طلاق دې وی که ئې اوخوړلو ،،په دې صورت کښې ددې څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی:مولانامحمدهاشم حقانی....۲۷؍دسمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** په ظاهره دالفظ لغوه دې دې سره طلاق نه واقع کیږی ځکه چه په دې کښې اضافت ښځې ته نه لفظاموجوددې اونه معنی،اول خو ظاهردې﴿۱﴾او دویم ځکه چه داالفاظ غیر شادی شده هم استعمالوی-وهوالموفق

## ښځې ته د مورسختې کنزلې کولو سره طلاق نه واقع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس دښځې مور ته سختې کنزلې کوی ایاپه دې سره په نکاح باندې دطلاق وغیره اثر غورځیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل رازق امان کوټ پشاور..........۱۹۷۶ء۱۱۱۲

**الجواب:** چونکه دمورسختې کنزلې دالفاظو دطلاق نه نه دې نه صریح دې اونه

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: لو قال ان خرجت یقع الطلاق او لا تخرجی الا باذنی فانی حلفت بالطلاق فخرجت لم یقع لترکه الاضافة الیها. قال ابن عابدین: ای المعنویة فانها الشرط.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۶۶ قبیل مطلب من الصریح الالفاظ المصحفة)



کنایة دې.لهذادې سره طلاق نه واقع کیږی﴿۱﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله مالم یستعمل الا فیه) ای غالبا کما یفیده کلام البحر وعرفه فی التحریر بما یثبت حکمه الشرعی بلا نیة واراد بما اللفظ او ما یقوم مقامه من الکتابة المستبینة او الاشارة المفهومة...... لان رکن الطلاق اللفظ او ما یقوم مقامه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۴۶۵ باب الصریح)

**"اې طلاق دې وی که ئې اوخوړو"**

## يعنى طلاق دې که چرې اوئې خوړلو ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه دبغض خلقو ميلمانه راشی کوروالاور نه دګډ ذبح کولواراده اوکړه نو يو ميلمه اووئيل چه مونږ داګډ نه خورو اوالفاظ دطلاق ئې دارنګه په پښتو کښې استعمال کړل ،، اې طلاق دې وی که ئې اوخوړلو ،، په دې صورت کښې ددې څه حکم دې؟بينوا توجروا

المستفتى: مولانامحمدهاشم حقانى.... ۲۷دسمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** په ظاهره دالفظ لغوه دې دې سره طلاق نه واقع کيږی ځکه چه په دې کښې اضافت ښځې ته نه لفظاموجوددې اونه معنى، اول خو ظاهردې﴿۱﴾او دويم ځکه چه داالفاظ غير شادی شده هم استعمالوی-وهوالموفق

## ښځې ته د مورسختې کنزلې کولو سره طلاق نه واقع کيږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه يو کس دښځې مور ته سختې کنزلې کوی ائاپه دې سره په نکاح باندې دطلاق وغيره اثر غورځيږی؟ بينوا توجروا

المستفتى: فضل رازق امان کوټ پښاور........ ۲۱۱۱ء۱۹۷۲

**الجواب:** چونکه دمورسختې کنزلې دالفاظو دطلاق نه نه دې نه صريح دې اونه

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: لو قال ان خرجت يقع الطلاق او لا تخرجى الا باذنى فانى حلفت بالطلاق فخرجت لم يقع لتركه الاضافة اليها. قال ابن عابدين: اى المعنوية فانها الشرط.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۶۶ قبيل مطلب من الصريح الالفاظ المصحفة



کناية دې.لهذادې سره طلاق نه واقع کيږی﴿۱﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله مالم يستعمل الا فيه) اى غالبا كما يفيده كلام البحر وعرفه فى التحرير بما يثبت حكمه الشرعى بلا نية واراد بما اللفظ او ما يقوم مقامه من الكتابة المستبينة او الاشارة المفهومة..... لان ركن الطلاق اللفظ او ما يقوم مقامه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۶۵ باب الصريح)

..........

# باب القضاء ودعوی الطلاق والنکاح

**ښځه د طلاق ثلاثه دعوی اوکړي او خاوند منکروی ددې څه حکم دې؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوښځې بیان دې چه زما خاوند ماته درې طلاقه په یووخت راکړل دواقعې ګواهې ددې ښځې د پنځلسو کالولورکوی چه زما پلار طلاق ورکړې دې اودرې طلاق ئې په یوځل ورکړې دی.لیکن خاوند منکردې اووائی چه ماطلاق نه دې ورکړې بلکه ماوئیلی دی چه زه ستامورته آوازکوم اودهغې په مخ کښې تاته طلاق درکوم او فارغوم دې،ددې نه علاوه داخاوند کچه خبرووالادې اودروغ هم وائی په خپله خبره قائم نه پاتې کیږی لیکن ښځه نیک چلنه اود پخو خبرو والا ده او ریښتونې ښځه ده.لهذاددې طلاق حکم واضح کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالخالق جامع مسجد حاجیه ایبټ آباد...۱۲۱شوال۱۴۰۲ه

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دا ښځه په دې خاوندباندې حرامه شوې ده په دې ښځه اوددې په اولیاء باندې ضروري ده چه دې خاوندته په جماع وغیره باندې قدرت ورنه کړی. کمافی الهندیة ۵:۲۴۶ وکذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثاوجحدالزوج ذلک وحلف فردهاعلیه القاضی لم یسعها المقام معه وینبغی لها ان تفتدی لهابمالهااوتهرب منه وان لم تقدرعلی ذلک قتلته الخ﴿۱﴾.وهوالموفق

**ښځه د درې طلاقو مدعیه ده او خاوند د طلاق رجعی مدعی دې؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه مسمی زید خپلې

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۱۳ الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات)



ښځې ته طلاق ورکړې دې عمرحلفیه ګواهی ورکوی چه زید درې طلاقه ورکړې دی اوبکرداګواهی ورکوی چه زید طلاق رجعی ورکړې دې،زید په خپله هم وائی چه ماطلاق رجعی ورکړې دې اوهندهٔ وائی چه زه ئې په درې طلاقو باندې طلاقه کړې یمه،اوس فیصله په څه قسم ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل واحد..............۱۹۷۷ء/۱۵/۸

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې که چرې ښځې درې طلاقه په خپله اوریدلي وی نو دا ښځه دې خاوند ته نه شی حلالیدې اګرچه خاوند مکمل نصاب د شهادت پیش کړی.وفی الهندیة ۵:۳۴۶ وکذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثا وجحد الزوج ذلک وحلف فردهاعلیه القاضی لم یسعهاالمقام معه﴿۱﴾انتهی بقدر الضرورة واماشهادة بینة الزوج فهی علی النفی فتکون ردا﴿۲﴾.وهوالموفق

**خاوند طلاق ورکولونه پس منکرشی اوښځه قسم خوری په طلاق باندې؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړی اوبیامنکرشی اوښځه قسم خوری چه ده ماته درې طلاق راکړی دی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: شوکت علی اسماعیله مردان.........۱۹۷۴ء/۹/۲۷

**جواب:** که چرې واقعی درې طلاقه ئې ورکړی وی نوبیادې کس باندې دا ښځه

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۱۳ قبیل الباب الثانی فی العمل بغالب الرأی)

﴿۲﴾وفی الهندیة: شاهد ان شهدا علی رجل بقول او بفعل یلزمه بذلک اجارة او کتابة او بیع او قصاص او مال او طلاق او عتاق فی موضع وصفاه او فی یوم سمیاه فاقام المشهود علیه بینة انه لم یکن فی ذلک الموضع اولا فی ذلک الیوم فی الموضع الذی وصفاه لم تقبل منه البینة علی ذلک. (فتاویٰ عالمگیریة ۳:۵۱۲ الباب التاسع فی الشهادة علی النفی)

ساتل یابنځې ته ددې خاوند سره وخت تیرول ناجائزدی ﴿۱﴾ خو که چرې حلاله اوکړی نوجائزده ﴿۲﴾-

**نوټ**:......دا ښځه ددې خاوند نه تختیدې شی. ﴿۳﴾-وهوالموفق

## د خاوند اوښځې د طلاق په تعداد کښې داختلاف په صورت کښې فیصله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوجینئ وائی چه ماته زماخاونددوه ځله طلاقه ښو څه زمانه مخکښې راکړی وو بیائې ددې نه پس یکدم درې طلاقه راکړل. ګویاچه ټول پنځه طلاقه ئې راکړی دی؟ددې په جواب کښې هلک داولودوه ځلو اقرارکوی مګرده چه په کوم کلمات باندې د تلفظ اقرارکړي دې هغه الفاظ هغه کس دطلاق الفاظ نه ګڼړی.دده په خیال کښې هغه صرف دهمکی وه یاپه مستقبل کښې دطلاق ورکولواراده ده او روسته دوه ځله طلاق منی،ددریم طلاق هغه اقرارنه کوی،دجینئ پلارته ددې

﴿۱﴾ وفی الهندیة: واما حکم (الطلاق) فوقوع الفرقة بانقضاء العدة فی الرجعی وبدونه فی البائن وزوال حل المناکحة متی تم ثلاثا کذا فی محیط السرخسی.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۴۸ کتاب الطلاق الباب الاول)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: وکذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثا وجحد الزوج ذلک وحلف فردها علیه القاضی لم یسعها المقام معه وینبغی لها ان تفتدی بمالها او تهرب منه وان لم تقدر علی ذلک قتلته واذا هربت منه لم یسعها ان تعتد وتتزوج بزوج آخر قال شمس الائمة السرخسی رحمه الله تعالیٰ ما ذکر انها اذا هربت لیس لها ان تعتد وتتزوج بزوج آخر جواب القضاء اما فیما بینها وبین الله تعالیٰ فلها ان تتزوج بزوج آخر بعد ما اعتدت کذا فی المحیط. (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۱۳ الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات)



واقعې پته اولګیده هغه دمونځ روژوپابنداودین دارسړې دې هغه وائی چه طبعا خوماته داخوخه ده چه نکاح ماته نه شی اودارشته قائمه پاتې شی لیکن دشریعت حکم اګرچه بل څه دې نوزه هغه تسلیمؤم،لهذاهغه د دواړو بیانات په خپله دهغوئ نه اولیکل اویوعالم دبن ته ئې حواله کړل چه ددې بیاناتوپه روشنئ کښې تاسوفیصله اوکړئ اوشرعی حکم واضح کړئ چه آیاحرمت مغلظه ثابت کیږی اوکه نه طلاق رجعی دې؟

دجدایئ نه پس ډیرمفاسددی اونکاح په خپل حال پاتې کیدلو باندې دجینئ اصراردې چه ماته هر کله ښهٔ یقین دې ماپه خپله په خپلوغوږونو پنځه ځله دطلاق داالفاظ اوریدلې دی اوزه قسم خورم اووائم چه ماته د تفسیرقرآن او بهشتی زیورنه اوس مسئله هم معلومه شویده چه زمادپاره دده سره اوسیدل حرام دی. نوزه څنګه دداسې کس ښځه جوړه شم،په دې صورت حال کښې ستاسو په خدمت کښې دااستفتاء درلیږم تاسود دواړو لیکل شوې بیان غور سره اوګورئ ددې متعلق شرعی حکم اولیکئ.

(۱) دجینئ هغه الفاظ کوم چه دوه ځله مخکښې وئیلی وو ،،طلاق واخله،، آیا موجب دطلاق دې؟ (۲) جینئ وائی چه که چرې ګواه نشته نوایاپه خپله ددې لیکلونه نه ثابتیږی چه ده ماته دوه ځله طلاق ښومخکښې راکړې دې اوورسته ددوه ځله هم هغه اقرارکوی نوزه پنځه ځله وایم اوهغه څلورځله منی په دې صورت کښې شرعی حکم څه دې؟ (۳) که چرې هغه په دوه ځله باندې قسم خوری نوزه درې ځله بلکه په پنځه ځلو باندې قسم خوړوته تیاره یم- (۴) هغه عالم دین ددې په باره کښې څه فیصله صادر کړی چه دجینئ پلارته هغه خبره معلومه شی اوهغه جینئ په دې باندې آماده کړی اوعمل پرې اوکړی خواه که هغه وصل وی اوکه فصل؟ بینوا توجروا

المستفتی: .... نامعلوم ........

**الجواب**: که چرې دڅلوروالاواقعه دسابقه واقعې نه په مقداردعدت تیریدلونه پس وی نودابنځه دې خاوندته بغیردتحلیل نه واپس کیدې شی،په شرط ددې چه رجعت قولی یاعملی نه وی شوی.لان کلمة ‘‘جا،،

یتکلم بهاعادة لاعلی نیة الطلاق،و کلمة، طلاق لے لو، یقع بهاالطلاق کمافی الهندیة ۱:۴۰۸ ولوقال لها خذی طلاقک یقع من غیرنیة﴿۱﴾اوکه چرې د څلورو واقعه دعدت تیریدونه مخکښې وی اویادرجعت نه وروسته وی نو خاوند ته به قسم ورکولې شی، لکونه منکرا، اوکه چرې دقسم کولوپه صورت کښې به فیصله په ظاهره د خاوند په حق کښې کیږی، لیکن دفتوی په روسره دا ښځه ازاده ده، کما فی الهندیة ۵:۳۴۶ وکذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثاوجحدالزوج ذلک وحلف فردهاعلیه القاضی لم یسعهاالمقام معه وینبغی لهاان تفتدی بمالها اوتهرب منه وان لم تقدرعلی ذالک قتلته واذاهربت منه لم یسعها ان تعتدوتتزوج بزوج آخرقال شمس الائمة السرخسی ماذکرانهااذاهربت لیس لها ان تعتد وتتزوج بزوج آخر جواب القضاء امافیمابینهما وبین الله تعالی فلها ان تتزوج بزوج آخر بعد ما اعتدت کذافی المحیط﴿۲﴾.وهوالموفق

## خاوند د طلاق ورکولو باوجود انکارکوی اوښځه اقرارکوی نو....؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوې ښځې دعوی اوکړه چه زماخاوندماته په حالت دجهګړې کښې پرله پسې دوه ځله وئیلی دی چه ته مې په درې طلاقوسره طلاقه کړې ئې. خاوندپه جواب کښې اووئیلو چه زمادښځې دمور دعوی غلطه اودروغ ده په مینځ کښې څه شهادت نشته دې. په دې بناء باندې خاوندته قسم واچولې شو، خاوند حلفیه اووئیل چه ما د مدعیه ذکرکړې شوی الفاظو باندې طلاق وغیره څه نه دې ورکړی. په دې حالت کښې مدعیه په خپل بیان باندې کلکه ده نوپه دې صورت کښې هغه د خاوندسره اوسیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدعبدالحئ ماهره ډی آئی خان............۱۹۷۵ء۱۳۱۰۳

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۸۳ الفصل السابع فی الطلاق بالالفاظ الفارسیة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۱۳ قبیل الباب الثانی فی العمل بغالب الرأی کتاب الکراهیة)



**الجواب:** که چرې ښځې ته ددې تغلیظ جزم اویقین وی اوخاوندمنکروی نوکه چرې دا ښځه په خلع یافرارباندې قدرت نه لری نودحاکم یامحکم ته دې مرافعه اوکړی پس که چرې خاوند حلف واخستونوپه دې تقدیر باندې دې ښځې ته ددې سړی سره اوسیدلو کښې به ګناه نه وی، کمافی ردالمحتار: ترفع الامر للقاضی فان حلف ولابینة فالاثم علیه وان قتلته فلاشیئ علیها،وفی ردالمحتار ۲:۷۴۸ وینبغی تقییده بمااذالم تقدرعلی الافتداء اوالهرب﴿۱﴾.وهوالموفق

## که چرې ګواه عادل وی نو د طلاق نه انکارغیر معتبردې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دوه کسانوګواهی ورکړه چه زیدزمونږ په مخامخ خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې لیکن خاوند منکردې په دې صورت کښې دطلاق څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: پرویزاحمدګوجرخان پنډی............۱۹۸۵ء۱۲۱۲۶

**الجواب:** که چرې دواړه ګواهان عادلان وی نودخاوند انکارغیرمعتبردې اوطلاق واقع دې، کمافی الدرالمختار ۴:۵۱۵ ونصابهالغیرهامن الحقوق سواء کان الحق مالااوغیره کنکاح وطلاق ووکالة الخ رجلان الخ اورجل وامرتان﴿۲﴾.وهوالموفق

## په طلاق کښې مختلف اومضطرب شهادت او په الفاظو د طلاق کښې د اختلاف حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ماخپله ښځه په اجازت په خپله دوالدینوکورته اولیږله، اته میاشتې پس دهغې راوستلو دپاره لاړم، خواخې ته مې اووئیل چه جینئ ماسره روانه کړه، په دې کښې زمونږپه مینځ کښې سخت کلامی راغله. په دې وخت کښې دشدت اوغضب په

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۵۹۰، ۵۹۱ قبیل باب الایلاء)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴:۴۱۳ کتاب الشهادات)

حالت کښې زما دخولې نه درې ځله داالفاظ اووتل، که چرې ته دازما سره نه پريږدې نوزه طلاق ورکوم، الفاظ خومې يادی ليکن قصداواراده مې نه وه، ماڅه نورڅه وئيل ليکن زما دخولې نه داالفاظ اووتل،يوه نيمه مياشت پس سخرګنئ مې دطلاقه کيدلودعوه اوکړه، ماورته اووئيل چه مادمستقبل الفاظ وئيلی دی بيازماسخرمانه تپوس اوکړو ليکن هغه په دې مجلس کښې نه وو چه زوم مې څه وئيلی دی، ښځو دالاندې شهادتونه ورکړی دی، يوې ښځې اووئيل چه الله حاضراوناظرګڼړلو حلفيه بيان ورکوم چه ده دکورنه د وتلوپه وخت درې ځله دطلاق لفظ صرف وئيلې دې ددې نه وروسته او وړاندې ئې څه نه دی وئيلی،دويم داګواهی ورکړه چه ده درې ځله داالفاظ وئيلی دی زه طلاق ورکوم،دوه ځله په ناسته وواويوځل اودريدو،يوې جينئ داګواهی ورکړه چه يوځل په کټ باندې ناست وواودوه ځله اودريدو اودا الفاظ ئې وئيلی دی چه ما طلاق ورکړو،منوراووئيل چه تقريبادشپې يوولس بجې د وقفې نه پس درې ځله داالفاظ ئې استعمال کړل چه ما طلاق درکړې، اوس هر کله چه د ګواهانو بيانات هم مختلف دی همدارنګه داهم يقين دې چه داپنځه سړی او ښځه کوم چه ګواهان دی زمونږ اوددوی په مينز کښې دنيوی عداوت هم دې، دې پورې چه زمونږ اوددوئې په مينځ کښې زبانی جهګړې هم شوي دی په دې صورت کښې دطلاق دوقوع څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالرشيد حيدرآباد سندھ.........١٩٧٦ء/٨/٢٤

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دا ښځه مطلقه مغلظه نه ده ځکه چه د اختلاف اواضطراب په وجه داګواهی کالعدم اوناقابل کيږی﴿١﴾البته که چرې

﴿١﴾قال العلامة ابن الشحنة: وفی المنبع الموافقة كما تشترط بين الشهادة والدعویٰ فكذلك تشترط بين شهادة الشاهدين فيما يشترط فيه العدد حتى لو وقع الاختلاف بين شهادتهما لم تقبل شهادتهما وهذا لان اختلافهما اختلاف بين الدعویٰ والشهادة.
(لسان الحكام الملحقة بمعين الحكام ٢٤٧ نوع فی الاختلاف فی الشهادة)



ښځې په خپله دطلاق الفاظ(يعنی طلاقه ده اوطلاقه کيږی وغيره)اوريدلې وی نوددې دپاره ددې خاوند سره اوسيدل حرام دې، کمافی الهندية ٥:٣٤٦ وكذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثا وجحدالزوج ذلک وحلف فردها عليه القاضی لم يسعها المقام معه وينبغی لهاان تفتدی بمالهااوتهرب منه وان لم تقدرعلی ذالک قتلته﴿١﴾.وهوالموفق

## په طلاق کښې د مدعيی مطلقې ګواهان منظور اود ناکح منکرنامنظوردې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه ديوکس سره روپئ نه وې داعتباردپاره ئې داالفاظ اووائيلې که چرې زه صبادې وخته پورې روپئ درنه کړم نوپه ماباندې ښځه طلاقه ده درې ځله ئې داالفاظ اووئيل اوددې واقعې ګواهان موجوددې اوس هغه کس انکارکوی اوس ددې فيصله په څه ډول کيدې شی دچاګواهی معتبرده؟ بينوا توجروا

المستفتی: عتيق الله.................١٣٩١/٦/١٣ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې منکوحه مدعيه طلاق ثلاثه ده اوناکح منکر دې پس دمدعيه ګواهان منظوردې،لان البينة للمدعی واليمين علی من انكر﴿٢﴾ اود ناکح ګواهی نامنظور دې.لانها شهادة علی النفی،

﴿١﴾ (فتاویٰ عالمگيرية ٥:٣١٣ الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات)

﴿٢﴾ قال الشيخ محمد خالد الآتاسی: البينة علیٰ المدعی واليمين علی من انكر..... وهذه القاعدة بعينها لفظ حديث مشهور تلقته الائمة بالقبول، منقول فی شرح العناية بهذا اللفظ، وفی رواية: البينة علی المدعی واليمين علی المدعی عليه وفی رواية مسلم واحمد: لو اعطی الناس بدعواهم لا دعی ناس دماء رجال واموالهم لكن البينة علی المدعی الخ.
(شرح المجلة ١:٢١٤ مادة:٧٦)

کما فی ردالمحتار ٣:٣٨٨(١)وغیره فلیراجع-هوالموفق.

### په طلاق کښې د پنځو ګواهانوپه بیان کښې داختلاف په صورت کښې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس خپلې ښځې ته خور اووئیل اوطلاق ئې ورکړو په دې باندې ګواهان موجوددي،یوګواه نه عدد هیر شوې دې اودوه وائی چه درې ځله ئې خوراودوه ځله ئې طلاق وئیلې دې او باقې دوه ګواهان وائی چه صرف دوه ځله ئې وئیلی دی،اوس په دې صورت کښې دطلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام جیلانی ناظم مدرسه تدریس القرآن فتح جنګ ١٩٧٣ء١٨١٧/

**الجواب:** واضحه دې وی چه په صورت مسئوله کښې په دې کس باندې ښځه مطلقه مغلظه نه ده شوې.دده دپاره زبانی مراجعت کافی دې،لیکن په یو خاص وجه باندې تجدیدنکاح کول بهتردې،والدلیل علی المرام ان اطلاق الاخت علی الزوجة وان کان یکره لکن لایقع به الطلاق لمافی الدرالمختار ٢:٣٩ والاینوشیئا اوحذف الکاف لغاوتعین الادنی ای البرویکره قوله انت امی ویابنتی ویااختی ونحوه انتهی(٢) وراجع الی ردالمحتار،وکذا الشاهد الواحدلایخبر عن العدد والاثنان یخبران عن التغلیظ وآخران عن غیرالتغلیظ ای عن طلقتین فتهاترت البینتان لمافی الدرالمختار ٣:٦٢ ولوشهداحدهما بالف والآخربالفین اومأة

(١)قال العلامة ابن عابدین: (قوله لم تقبل) ای عندهما لانها قامت علی النفی...... وحاصله انه لا یفصل فی النفی بین ان یحیط به علم الشاهد فتقبل الشهادة به او لا فلا بل لا تقبل علی النفی مطلقانعم تقبل علی النفی فی الشروط حتی لو قال لعبده ان لم تدخل الدار الیوم فانت حر فشهدا انه لم یدخلها قبلت ویقضی بعتقه کما فی المبسوط. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣:١٣٧ باب الیمین فی البیع مطلب شهادة النفی لا تقبل فی الشروط)

(٢)(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٦٢٦ باب الظهار)



ومأتین اوطلقة وطلقتین اوثلاث ردت لاختلاف المعنیین،انتهی(١)

پس چونکه دا څلورګواهان په دوه طلاقومتفق دی اودریم کښې مختلف دی لهذادادوه واقع کیږی اوچونکه دادواړه صریح دې لهذاپه عدت کښې دننه رجوع درست ده.وهوالموفق

### محکم نه باقاعده د ثبوت راوړلو

### نه بغیر ښځه مطلقه نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ماخپله ښځه د ګاونډیانو دکورونوته تللونه منع کړه،دښځې په دې حرکت نه سمیدو باندې زمونږ په مینځ کښې تنازعه پیداشوه،زمادسخرخواهش دې چه ځما ښځه زما نه جداکړی اوبله قبیله کښې نکاح کړی،دشپې وخت کښې زمونږ بحث او مباحثه اوتکرارجارې ووحتی چه په ماباندې ئې دباؤ واچولو بلکه دقتل دهمکی ئې راکړه چه خپله ښځه دګاونډیانوکره دتللونه مه منع کوه،چنانچه ما صرف داسې اووئیل چه دازماځه موریا خورنه ده زه ئې هیڅ کله هم دا ګاونډیانوکره نه پریږدم دجینئ د والدینو اودطرفدارئ کولوالاځوکسان ځما خلاف بیان کوی چه ماپه یوځل طلاقه ثلاثه وئیلی دی اوښځه په خپله زمانه جدا کوی.اوس وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیر روشن کوهاله هری پورهزاره.:.......١٩٧٥ء٨١٤١/

**الجواب:** حسب بیان مستفتی په دې خاوندباندې نه څه کفاره واجب ده

(١)(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٤:٤٤٣ باب الاختلاف فی الشهادة)

.......

اونه ښځه طلاقه شویده لیکن محکم ته د باقاعده ثبوت راؤړلونه پس به ښځه مطلقه وی ﴿۱﴾- وهوالموفق

## طلاق مغلظه او په دې باندې د شهادت موجودګئ کښې د زوجیت دعوی مردود ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس خپلې منکوحې ښځې ته طلاق ثلاثه ورکړل جدائې کړه اودده ګواهان هم موجوددې ښځې دعدت تیرولونه پس دویم ځائې کښې نکاح اوکړه چه دهغې اووه بچې پیداشول. اوس شل کاله پس هغه کس وائی چه ماطلاق نه دې ورکړې اود منکوحې کیدودعوی کوی لیکن شل کاله هغه خاموش و. ایاد دوو ګواهانو په مخکښې زبانی طلاق کیږی؟ آیا شل کاله تیریدونه پس دده دا حق شته چه محض د عناد د وجې نه هغه خپله سابقه ښځه بدناموی؟ بینوا توجروا

المسفتی: نامعلوم.................. ۱۴/۲/۱۹۷۳ء

**الجواب:** په شرط دصدق دمستفتی په دې کس باندې ښځه مطلقه مغلظه شوې ده اودشهادت طلاق په موجودګئې کښې به دده دعوی مردودولې شی﴿۲﴾ فی الدرالمختار: ورکنه لفظ مخصوص خال عن الاستثناء (هامش ردالمحتار ۲: ۵۷٤)﴿۳﴾- وهوالموفق

## د وفات نه پس د طلاق د خبرحکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زما پلار یو وادهٔ

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وشرط فیها شهادة رجلین او رجل وامرأتین سواء کان الحق مالا او غیر مال کالنکاح والطلاق. (فتاویٰ عالمگیریة ۳: ٤۵۱ کتاب الشهادات الباب الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ونصابها لغیرها من الحقوق سواء کان الحق مالا او غیره کنکاح وطلاق ووکالة...... رجلان...... او رجل وامرأتان. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٤: ٤۱۳ کتاب الشهادات)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٤۵۳ کتاب الطلاق)



اوکړو بیائې دویم واده اوکړو. ددویم واده نه ئې څه اولاددې چه په هغې کښې زمونږ مشر وروره هم وو. مشر وروږپلارددریم واده نه منع کول غوښتل چه دریم واده مه کوه لیکن پلارمودریم واده اوکړو، چه دهغې نه څه اولاد پیدا شول، اوس موپلاروفات شوي دې دمال موروثة دتقسیم مسئله ده، اوس مشر ورور مو وائی چه په مال متروکه کښې ددریم واده والاداولادڅه حصه نشته دې ځکه چه کله موپلاردریم واده کولونوزما دمنع کولوپه وجه هغه اووئیل که چرې زه دریم واده اوکړم نوپه ماباندې هغه طلاقه ده. لیکن دهغې باوجوددفعل حرام مرتکب شولهذاهغه اولادکوم چه ددریمې ښځې نه دې دهغوی په دې کښې څه حق نشته دې، اومشروروداهم زیاتوی چه ماته داحق دې چه زه ددې اظهار اوکړم ورنه عندالله زه مجرم یم، ایا دا دعوی (دمشر ورور) صحیح ده، بینوا توجروا

المستفتی: عبدالستاربلوچستان.................. ۲۶/۱۰/۱۹۷۷ء

**الجواب:** کله چه مدعی اوګواهان تاحین وفات ساکت وی﴿۱﴾ نودفسق اود تهمت په وجه نه ددوی خبرواجب القبول نه کیږی﴿۲﴾ خصوصًا چه درې الفاظو باندې

﴿۱﴾ قال الشیخ الافغانی: والدعویٰ تندفع بمرور الزمان ایضا اذا کان الترک بلاعذر من کون المدعی غائبا او صبیا او مجنونا ولیس لهما ولی او کون المدعی علیه امیرا جائراً یخاف منه الخ.

(معین القضاة والمفتیین ۲٤ الفصل الخامس فی دفع الدعاوی)

﴿۲﴾ قال العلامة الطرابلسی: ومنه ما حکاه عن شرح الزیادات: مات عن امرأة وورثة فشهد الشهود انه کان اقر بحرمتها حال صحته ولم یشهدوا بذلک حال حیاته لا تقبل اذا کانت هذه المرأة مع هذا الرجل وسکوته لانهم فسقوا وشهادة الفاسق لاتقبل.

(معین الحکام ۷۲ فصل حد العدالة الخ)

دري طلاق ورکول او دحسب العرف دتجدید نکاح احتمال ﴿١﴾ او تحلیل ﴿٢﴾ یا قبول بالفعل ﴿٣﴾ یا دامام محمد په قول باندې دعمل کولو احتمال موجود دي ﴿٤﴾. وهو الموفق

**د نکاح د ثبوت د پاره د نکاح خوان په ځائې ددویم امام د ګواهئ حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیو ښځې دنکاح تقریبا لس کاله شوي دی دیو کس سره شوي وه حقوق زوجیت ئې اداکول، اوس دا ښځه یو بل کس سره اوتختیده او په حکومت کښې ئې دعوی اوکړه چه زما نکاح ددې مخکینی کس سره نه ده شوې. اوس هغه امام کوم چه نکاح تړلې

---

﴿١﴾ قال العلامة ابن نجيم: ولو كرر لفظ الطلاق فان قصد الاستئناف وقع الكل او التاكيد فواحدة ديانة والكل قضاء و كذا اذا اطلق. (الاشباه والنظائر ٥٧ قبيل القاعدة الثالثة)

چونکه زمونږ په عرف کښې دطلاق تکرار دتاکید دپاره وی او بغیر د نیت نه په عرف کښې هم تاکید مراد اخستلې شی په دې وجه دې صورت کښې زمونږ شیخ دامت برکاتهم د طلاق رجعی حکم ورکوی خالانکه بعضې علماء دا تکرار په بائن باندې محمول کوی په دې وجه د نکاح تجدید حکم هم کوی.

(فليراجع الى فصل عد الطلاق والقاء الاحجار من هذه الفتاوىٰ)

﴿٢﴾ مثلاق طلاق مغلظه ئې ورکړی وی او بیا دحلاله نه پس دوباره ددهٔ په نکاح کښې راغلې وی.

كما فى الهداية: وان كان الطلاق ثلاثا فى الحرة او ثنتين فى الامة لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها. (الهداية ٢: ٣٩٩ باب الرجعة كتاب الطلاق)

﴿٣﴾ قال العلامة الشامى: اذا قال كل امرأة اتزوجها طالق والحيلة فيه ما فى البحر من انه يزوجه فضولى ويجيز بالفعل كسوق الواجب اليها.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٥٣٧ مطلب فسخ اليمين المضافة الى الملك)

﴿٤﴾ قال العلامة الحصكفى: وفى المجتبىٰ عن محمد فى المضافة لا يقع وبه افتى ائمة خوارزم انتهى وهو قول الشافعى وللحنفى تقليده بفسخ قاض بل محكم بل افتاء عدل وبفتوين فى حادثتين وهذا يعلم ولا يفتى به بزازية. (الدر المختار على هامش ردالمحتار ٢: ٥٣٨، ٥٣٩ مطلب فى فسخ اليمين المضافة الى الملك)



ده حکومت کښې دعوی نه کوی ځکه چه مدعلیه او امام دیو قوم دی، اوس که چرې ددې امام په ځائې دویم امام دنکاح کولو ګواهی ورکړی نو دا حیله څنګه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نظام الدین احاطه مدنیه دارالعلوم حقانیه

**الجواب:** که چرې دعرف نه معلومه وی چه دا خاوند وغیره به دمقدمې ګټلو نه پس دا ښځه قتل کړی نو ددې امام دوم دپاره دقتل کید وسبب جوړیدل سخت دي په نسبت دزناء کاری باندې اطلاع کیدلو نه. ځکه دا امام دوم ددوې د زنا سبب نه دې جوړ شوې- وهو الموفق

**د خاوند په طلاق باندې مجبوره کولو وجوهات او د خنثٰی مشکل حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ښځه خاوند په کوم وخت کښې په طلاق باندې مجبوره کولې شی؟ همدارنګه خنثی مشکل فاعل یا مفعول جوړیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: تخته خان سعودی عرب......... ٢ذی القعده ١٤٠٣ھ

**الجواب:** خاوند په ماسیوا دظهار ﴿١﴾ لعان ﴿٢﴾ او رعنیت نه ﴿٣﴾ په نورو صورتونو کښې په طلاق نه شی مجبوره کولې، او خنثی مشکل نه فاعل جوړیدې شی

---

﴿١﴾ وفى الهندية: المظاهر اذا لم يكفر ورفع امره الى القاضى يحبسه القاضى حتى يكفر او يطلق كذا فى الظهيرية. (فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٥٠٧ الباب التاسع فى الظهار)

﴿٢﴾ وفى الهندية: اذا التعنا فرق الحاكم بينهما ولا تقع الفرقة حتى يقضى بالفرقة على الزوج فيفارقها بالطلاق فان امتنع فرق القاضى بينهما.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٥١٦ الباب الحادى عشر فى اللعان)

﴿٣﴾ وفى الهندية: ان اختارت الفرقة امر القاضى ان يطلقها طلقة بائنة فان ابى فرق بينهما هكذا ذكر محمد رحمه الله فى الاصل كذا فى التبيين والفرقة تطليقة بائنة كذا فى الكافى.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٥٢٤ الباب الثانى عشر فى العنين)

اونه مفعول یعنی نه خاوند جوړیدې شی او نه ښځه(ردالمحتار)﴿۱﴾. وهوالموفق

## خاوند طلاق معلق ورکړی ؤ اووۀ کاله پس ښځې انکاراوکړو اوس څه حکم دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو خاوند خپلې ښځې ته اووائی که چرې ته زما داجازت نه بغیر خپل مورپلار کورته لاړې نوتاته درې طلاقه دی هغه ښځه لاړله. اوس اووه کاله پس ښځه وائی چه ماته خاوند اجازت راکړې نوهله زه لاړم، او خاوند وائی چه ماته صحیح طورباندې یادنه دی چه ما اجازت ورکړې او که نه؟ اوس شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: دستی خان.............. ۱۷\ربیع الاول۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې که چرې دې ښځې په شهادت عادله سره اجازت ثابت کړونو مطلقه مغلظه نه ده. که چرې دښځې سره شهادت عادله د خاوند اجازت نه وی﴿۲﴾ او خاوند ته داجازت ورکولو اونه ورکولو متعلق معلومات نه وی نوصرف دشک په وجه باندې طلاق نه واقع کیږی لیکن که چرې خاوند داجازت ورکولو نه انکار علی وجه الجزم کړې وی نودې خاوند ته به قسم ورکړې شی او که چرې دقسم نه انکاراوکړی نوښځه مطلقه مغلظه نه

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله فخرج الذکر والخنثی المشکل) ای ان یراد العقد علیهما لا یفید ملک استمتاع الرجل بهما لعدم محلیتهما له وکذا علی الخنثی لامرأة او لمثله ففی البحر عن الزیلعی فی کتاب الخنثی لو زوجه ابوه او مولاه امرأة او رجلا لا یحکم بصحته حتی یتبین حاله انه رجل او امرأة فاذا ظهر انه خلاف ما زوج به تبین ان العقد کان صحیحا والافباطل لعدم مصادفة المحل وکذا اذا زوج خنثی من خنثی آخر لا یحکم بصحة النکاح حتی یظهر ان احدهما ذکر والآخر انثی.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۸۱ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وشرط فیها شهادة رجلین او رجل وامرأتین سواء کان الحق مالا او غیر مال کالنکاح والطلاق. (فتاوٰی عالمگیریة ۳: ۴۵۱ کتاب الشهادات الباب الاول)



کیږی او که چرې قسم اوکړی نوښځه مطلقه مغلظه ده﴿۱﴾-وهوالموفق

## د خیاربلوغ په وجه باندې د تنسیخ نکاح په صورت کښې دصحیح فیصلې صورت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوکس نکاح په شرعی طورباندې یوجینۍ سره اوشوه، بلکه جینۍ نابالغه وه او داکار دهغې دمورپه سرپرستۍ کښې اوشو، بیادهغې موروفات شوه اوروړئې ذهغې سرپرست جوړشو، دجینۍ دبلوغ نه پنځه کاله پس دچاپه شرارت باندې د ې جینۍ دعوی کړیده چه مادبلوغ په کال باندې دناراضګۍ اظهارکړې دې او نکاح مې فسخه کړې ده، قاضی ته فیصله پیش شوه، قاضی صاحب ددې جینۍ نه په دعوه باندې ګواهان طلب کړل اوهغې ګواهان پیش نه کړل، قاضی صاحب ددې نه دپردې نه اخواء قسم واخستو، داهم معلومه نه ده چه داهغه جینۍ وه او که بله، بیاقاضی صاحب دخاوندنه دڅه مطالبه اونه کړه ځکه چه هغه دعوی کوی چه دبلوغ په وخت دې جینۍ سکوت اختیارکړې وو اوپه دې خبرې باندې ګواه هم موجوددې، اوس سوال دادې چه ددې قاضی فیصله درسته ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد اسحاق میاں مایارتیمرګره دیر۱۹\۱جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** ددې قاضی دافیصله غلطه ده ځکه چه ښځې ته هغه وخت قسم ورکولې شی کله چه داصل نکاح په رداوسکوت کښې اختلاف وی، زوج وائی چه تادنکاح د ردنه سکوت کړیدې اوښځه بالغه وائی چه مارد کړیده او دامسئله بحرالرائق۳: ۱۱۷باندې لیکلې شوې ده﴿۲﴾

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: فان اختلفا فی وجود الشرط ای ثبوته لیعم العدمی فالقول له مع الیمین...... الا اذا برهنت فان البینة تقبل علی الشرط وان کان نفیا کان لم تجئ صهرتی اللیلة فامرأتی کذا فشهد انها لم تجئه قبلت وصلقت. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۴۶،۵۴۵ مطلب اختلاف الزوجین فی وجود الشرط)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: ای لو قال الزوج بلغک النکاح فسکت وقال رددت ولا بینة لهما ولم یکن دخل بها فالقول قولها الخ. (البحر الرائق ۳: ۱۱۷ باب الاولیاء والاکفاء)

لیکن دا خیاردبلوغ په وجه سره درداوسکوت مسئله ده کوم کښي چه ښځه دفسخ مدعیه ده او خاوند منکردي لهذاګواهان به دښځي منظوروی اوقسم به خاوندته ورکولي شی(فی الهندیة ۱:۳۰٤)ولووقع الاختلاف فی خیار البلوغ فقالت المراة احترت نفسی ورددت النکاح کمابلغت،وقال الزوج بل سکت وسقط خیارک فالقول قول الزوج کذافی المحیط انتهی﴿۱﴾،لهذاقاضی مذکوردوه واضح غلطیانی کړیدی-وهوالموفق

**شرعی نکاح شوي ده خاوند منکردي په دې صورت کښې دعدالتی پرېکړې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوې ښځې شرعی نکاح دګواهانومخکښې شوي دې لیکن زید دچانکاح چه ددې ښځې سره شوي دې هغې په عدالت کښې خلفابیان کړي دي چه زمانکاح دده سره نه ده شوې،عدالت هم حکم جاری کړیدې چه دا ښځه دزید ښځه نه ده آیا شرعًا دا نکاح قائمه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالعزیزکالاباغ هزاره......۱۷\ذی قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** که چرې دنکاح په وخت کښې دا ښځه نابالغه وه یابالغه کیدلو په صورت کښې والدددې ښځې په رضانکاح کړي وی نوددې عدالتی کاروایئ نه پس هم دانکاح په قانونی طورسره خوکالعدم لیکن شرعی طور باندې به لازم او نافذدې،لعدم وجودرافع النکاح.وهوالموفق

**بلا قاعده عدالتی طلاق قانونی کیدې شی شرعی نه**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ماخپله لورکومه چه کم عمره اونابالغه وه،امیرګل ته په نکاح باندې ورکړه لیکن نه زمالورپه دې

﴿۱﴾(فتاوٰی عالمګیریة ۱:۲۸٦ الباب الرابع فی الاولیاء)،



نکاح باندې راضی وه اونه هلک په دې وخت کښې بالغ وو،مجبوراً دغه وخت نکاح اوشوه، بیا هلک دویم واده اوکړو.وروسته مادهلک والدینوته اووئیل چه زماد لور واده اوکړه،لیکن هغه نه واده ته تیاروواونه په طلاق ورکولو باندې ، بیا مافیملی کورټ ته رجوع اوکړه،عدالت کښې هلک حاضرشو زما د لورسره واده ته تیاروواوراضی وولیکن جینئ راضی نه وه بیاعدالت فیصله واوروله چه جینئ راضی نه ده دې وجې نه عدالت طلاق ورکړې دې،دشرع په رو باندې ددې طلاق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: پیرغلام دره پیزوبنوں............ ۸\۸\۱۹۹۰

**جواب:** که چرې داهلک واده کول غواړی اوپه حقوق زوجیت اداکولو باندې قادر وی یعنی مستقل کمره اونفقه ورکولې شی نوداعدالتی طلاق صرف عدالتی اوقانونی طلاق دې نه اسلامی اوشرعی طلاق﴿۱﴾-وهوالموفق

**د ارتداد اود الفاظ کفریه نه پس بلا طلاق دویم خاوند سره دنکاح مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یومسلمانې واده شوې ښځې لفظادا اقرار اوکړو چه حضرت عیسی علیه السلام (نعوذبالله) د خدائې

﴿۱﴾قال الشیخ شمس الحق الافغانی: حکم القاضی علی خلاف النص کالحکم بحل متروک التسمیةعمداً او علی خلاف السنة المشهورة کالحکم بتحلیل المطلقة ثلاثا بمجرد عقد المحلل بلا دخول او علی خلاف الاجماع کالحکم بصحة نکاح المتعة باطل ولکل قاض نقضه اذا رفع الیه...... الخطاء الذی قضی به القاضی اما ان یختلف الفقهاء فی کونه خطاء اولا یختلفوا الثانی یرجع عنه ویرده لا محالة...... الثانیة اذا قضیٰ ثم ظهر له خطأه فی القضاء بان ظهر ان الشهود کانوا عبیدا او محدودین فی قذف ینقض قضائه الثالثة اذا قضیٰ بخلاف مذهبه علی طبق ما مر سابقا.

(معین القضاة والمفتیین ٦۸،٧٠ اقسام القضاء وما یرد منها ومالا یرد)

خوئې دې او د زړه نه ئې ددې تصدیق اوکړواو په دې باندې عقیده جوړه کړه دې عقیده ساتلو باندې هغه مرتده شوه او هغې خپل ښار پریخودو بل ښار ته لاړله، او هلته د دوباره مسلمانیدو نه پس د دویم کس سره ئې نکاح اوکړه، نو آیا ددې دواړو ښځې خاوند جماع وغیره جائزده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرب حیدرآبار سنده.........١٩٧٩،٩١٩٢

**الجواب**: بناپه قول مفتی به (وهوقول مشائخ بلخ) دا ښځه د اول خاوند په نکاح کښې ده «١» دې دویم خاوند ته ددې ښځې سره جماع وغیره حرام دی، څنګه چه اول خاوند ته د تجدید نکاح نه وړاندې استمتاع حرام ده، والتفصیل فی الحیلة الناجزة ١٥٨ «٢»......

---

«١» **قال العلامة الحصكفی: لو ارتدت لمجئ الفرقة منها...... وتجبر علی الاسلام وعلی تجدید النكاح زجرا لها بمهر یسیر...... وافتی مشایخ بلخ بعدم الفرقة بردتها زجرا وتیسیرا لا سیما التی تقع فی المكفر ثم تنكر قال فی النهر والافتاء بهذا اولی من الافتاء بما فی النوادر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٤٢٦ باب نكاح الكافر)**

«٢» قال الشاه اشرف علی التهانوی: حاصل دا دې چه که ښځه مرتده شی نو د هغې دنکاح په باره کښې د احنافو درې قوله دی، یو دا چه نکاح فسخ کیږی لیکن د اسلام د تجدید نه پس به هغۀ لره دنکاح په تجدید باندې مجبوره کولې شی او بل ځائې کښې دنکاح کولو اختیار به نه شی ورکولې، وهو ظاهر الروایة، دویم دا چه نکاح به نه فسخ کیږی بلکه دوی دواړه دغه شان ښځه او خاوند اوسیږی، دریم دا چه ښځه به د وینځې په طور ساتلې شی.

په دې دریو واړو اقوالو کښې اګرچه لږ اختلاف شته لیکن په دوه مره خبره درې واړه متفق دی چه ښځې ته به په هیڅ شان دا حق نه ورکولې کیږی چه هغه دخپل ړومبی خاوند دنکاح نه جدا شی او بل ځائې کښې نکاح اوکړی، په دې کښې دا خبره متفق علیه شوه چه ښځې ته به بل ځائې کښې د نکاح بالکل اختیار نه وی، اوس په هندوستان کښې په موجوده حالت کښې په دې متفق علیه صورت باندې عمل کول ناممکن دی.....او د نوادر په روایت باندې عمل کول خود ظاهرالروایت نه هم زیات مشکل بلکه په موجوده حالت کښې غیرممکن دې. په دې وجه اوس بغیر ددې نه بل هیڅ صورت باندې عمل نه شی کیدې چه د بلخ او سمرقند د مشائخو قول اختیار کړې شی او په دې باندې فتوٰی ورکړې شی. دبلخ د مشائخو دقول موافق چه دنکاح د بقاء....... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



کفایت ١٦٧ «١». وهوالموفق

## د مرتد او کافر کیدو والا نکاح په خپله ختمیږی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه نولس کاله شوي دې چه زما واده دیو کس سره شوي دې په دې وخت کښې زما دوه بچې دی زما خاوند د اتو کالو نه ما د اسلامی رکنیت نه منع کوی حتی چه مونځ، روزه، تلاوت کلام پاک او کلمه شریفه ته مې نه پریږدی. که چرې څما د خولې نه کلمه اوځی نو ما وهی ټکوی، ما یو ځل کلام پاک شروع کړلو نو قرآن پاک ئې او غورزولو، ما پټ په غلا باندې مونځ کوو نو اوئې لیدم زه ئې داسې اووهلم چه بې هوشه شوم، په رمضان شریف کښې ما مونځ شروع کړو نو هغه دورځې زما د

---

(بقیه حاشیه)...فتوٰی ورکړې شی نو دې سره ددې خبرې لحاظ ساتل ضروری دی چه د اسلام د تجدید نه مخکښې خاوند د پاره دغې مرتدې سره استمتاع یعنی جماع او ددې دواعی مثلاً تقبیل، لمس بالشهوة وغیره ته به جائز نه شی وئیلې، ځکه چه آیت کریمه لا تنكحوا المشركات حتّی یؤمن په وجه کافرو ښځو سره نکاح او استمتاع حرام کیدل ښکاره دی او په دې اجماع هم ده،...ددې مجموعه خلاصې نه ددې فتوې حاصل دا شو چه ښځه به د مخکښې په شان ددې خاوند په قبضه او نکاح کښې اوسیږی بل سړی سره نکاح کول بالکل نه دی جائز. لیکن چه ترڅو پورې تجدید د اسلام کولو سره تجدید دنکاح اونه کړی تر هغه وخته پورې به ددې سره جماع او دواعی د جماع ته جائز نه وئیلې کیږی. (حیله ناجزه ١٨٢ تا ١٨٥ حکم ارتداد زوجه)

«٢» قال المفتی الاعظم مولانا كفایت الله الدهلوی: مرتد کیدو سره ړومبئ نکاح ختمه شوه لیکن مسلمانیدو سره بل سړی سره نکاح نه شی کولې، بلکه مجاز قاضی به جبراً ړومبی خاوند سره ددې نکاح کوی،

**وارتداد احدهما فسخ عاجل فللموطوءة كل مهرها ولغیرها نصفه لو ارتد، ولاشئ لو ارتدت وتجبر علی الاسلام وعلی تجدید النكاح زجرا لها بمهر یسیر كدینار وعلیه الفتوٰی والوالجیة (درمختار مختصراً).**

**(كفایت المفتی ٦:١٣٩ چوتها باب مرتده اور مرتد)**

روږي ماتؤلو کوشش اوکړو بلکه زمادلاس روټۍ هم نه خوری،زماخاوندنه
غسل جنابت کوی اونه ماورته پریږدی نه هغه داسلام قائل دي ماتول روداد
چیئرمین پیپلزپارټی حله کړان ته بیان اوکړو،هغه اووئیل چه په دي باره
کښي دعلماء سره مشوره کول لازم دي.هغه زمادابیان قلمبند کړواوئي وئیل
چه مولانا عبدالحق صاحب اکوړه خټک والاچه کومه فیصله اوکړی هغه مونږ
ته منظوره،هغه زمونږ دټولو غټ مذهبی پیشوادي نوپه دي باره کښي دشریعت
څه حکم دي ایازمانکاح ددي کس سره باقي پاتي کیدلي شي؟بینوا توجروا

المستفتی: شاه زبیرکرا......... ۲۵۱۲۱۱۹۷۳ء

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت ددي کس نکاح باطل اوکالعدم ده دده ښځه د
عدت تیرولونه پس بل ځائي کښي نکاح کولي شی﴿۱﴾ ځکه چه داکس د
اهانت قرآن اودانکارشریعت وغیره په وجه کافر اومرتددي﴿۲﴾-وهوالموفق

محمد فریدعفی عنه دارالعلوم حقانیة اکوړه خټک

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وارتداد احدهما ای الزوجين فسخ...... عاجل بلا قضاء، قال ابن عابدين: ای بلا توقف على قضاء القاضی وكذا بلاتوقف على مضى عدة فی المدخول بها...... وافاد وجوب العدة سواء ارتد او ارتدت بالحيض او بالاشهر لو صغيرة او آئيسة او بوضع الحمل كما فی البحر. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۴۲۵ باب نكاح الكافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: ان الشارع جعل بعض المعاصی امارة على عدم وجود التصديق كالهزل المذكور وكما لو سجد لصنم او وضع مصحفا فی قاذورة فانه يكفر وان كان مصدقا لان ذلك فی حكم التكذيب...... فان فعل ذلك استخفاف واستهانةبالدين فهو امارة عدم التصديق ولذا قال فی المسايرة وبالجملة فقد ضم الى التصديق بالقلب او بالقلب واللسان فی تحقيق الايمان امور الاخلال بها اخلال بالايمان اتفاقا كترك السجود لصنم وقتل نبی والاستخفاف به وبالمصحف والكعبة وكذا مخالفة او انكار ما اجمع عليه بعد العلم به لان ذلك دليل على ان التصديق مفقود. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۱۰ باب المرتد)



# فصل فی تنسیخ النکاح

## د موجوده عدالتونو د تنسیخ نکاح فیصلي که چرې باقاعده وی نو تسلیمولي به شي ګینی نه

**سوال:** محترمی ومکرمی جناب مولانامفتی محمدفریدصاحب زیدمجدکم
السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! ستاسوصاحبانوخیریت نیک مطلوب دي
اود دعاګانوخصوصی اپیل دي.دایومسئله مونږ ته راپیښه شویده چه
موجوده ګورنمنټ دشریعت دیمین اویسارنه دلاعلمی باوجودتنسیخ طلاق
فیصلي کوی،دګوجرانواله مفتی اوزمونږ دمدرسي مهتمم صاحب تنسیخ
نکاح نافذګڼړی،مونږ اوریدلی چه مولاناخیرمحمدصاحب مرحوم و
مغفورهم ددي په حق کیدي.لیکن ماته په دي باندي صبراونه شو،جج
اګرچه مسلمان هم دي لیکن نه دمتعنت مفهوم پیژني اونه تحقیق کوی-بلکه
په اکثر اوقاتو کښي دخاوندپه نه حاضرئي کښي یوطرفه فیصله کوی کومه
چه قضاء علی الغائب ده.حضرت مولاناتهانوی رحمه الله په الحیلة الناجزة کښي
چه کوم شرائط ذکرکړیدی زماپه نظرکښي په مسئله مسئوله کښي مفقود
دی امیددي تاسو د جواب نه خبرکړئ؟ بینوا توجروا

المرسل: امان الله ګوجرانواله......... ۱۰۱۴۱۱۹۷۳ء

**الجواب:** محترمی المقام مولانا امان الله صاحب وفقه الله تعالی لمایحب
ویرضٰی وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته! نه پس واضحه دي وی چه زه په
بفضله تعالی خیریت سره یم الله کریم دي تاسوپه خیریت سره ساتی،اودعلم
دین په خدمت کښي دي مشغول اوساتی،آمین

محترم! تاسوته به شاید معلومه وی چه د علماء په کوششونوسره
دابعض مسائل په قانون کښي داخل کړی شوی وو.لیکن دي اهل هوی په

هغه مسائلو کښې ترمیمات کړی دی بس مونږ ددوی فیصلې ته چه کله باقاعده وی نافذه وو ګڼنی مسترد کوو ئې﴿۱﴾ داحکام په خپل خیال کښې دا مسائل محمډن لا (شریعت) ګڼړی -فقط

محمد فرید عفی عنه.....دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

## په ابتدائی عدالت او وړاندنی عدالت کښې د متضادو فیصلو په صورت کښې د تنسیخ نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوښځې په ابتدائی عدالت کښې دخاوند په نوم تنسیخ نکاح دائر کړلو ،ابتدائی عدالت خاوند طلب کړو ،خاوند بیان ورکړو چه ښځې ته زه نان نفقه ورکوم اؤآبادول ئې غواړم ښځې دتنسیخ نکاح په دعوی کښې اظهار اوکړو چه څلورو کالو نه ماته خاوند څه نان نفقه نه دې راکړې اونه ئې حقوق زوجیت اداکړی دی ابتدائی عدالت دښځې دعوی تنسیخ نکاح خارج کړله او دخاوند په حق کښې فیصله صادر کړه، په پاس عدالت کښې دښځې په اپیل باندې بغیر د خاوند نه بیانونه واخستل، عدالت پاسنی دتنسیخ نکاح حکم صادر کړو او عدالت ابتدائی یعنی د ماتحت فیصله مسترد کړه. ایاشرعادا تنسیخ نکاح درست دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: خواجه عبدالمجید مانسهره هزاره

**الجواب:** که چرې دمقدمې لیکلونه وړاندې داخاوندنه ښځه ازادوی اونه باقاعده ابادوی او دحاکم وړاندې اوس آبادولو ته تیاردې نو ددې خاوند نه څه بعیده ده چه داخبره صرف دفع الوقتی وغیره دپاره کوی. لهذا ددې تنسیخ عدم نفاذ متعلق مونږ فیصله نه شو کولې -وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة بدر الدین الشهیر بابن قاضی سماونه: قضایا القضاة ثلاثة اقسام الاول: حکمه بخلاف نص واجماع وهذا باطل فلکل من القضاة نقضه اذا رفع الیه ولیس لاحد ان یجیزه، الثانی: حکمه فیما اختلف فیه فهو ینفذ ولیس لاحد نقضه، الثالث: حکمه بشیئ یتعین فیه الخلاف بعد الحکم ان یکون الخلاف فی نفس الحکم فقیل نفذ وقیل یوقف علی امضاء آخر فلو امضاه یصیر کان القاضی الثانی حکم فی مختلف فیه فلیس للثالث نقضه فلو ابطله الثانی بطل ولیس لاحد ان یجیزه الخ. (جامع الفصولین ۱: ۲۴ قبیل توکیل ابن القاضی وما یتصل به)



## د دروغو ګواهیانو سره د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زمونږ یوپیش امام (ناخوانده) خپله لوردیو کس سره عقدنکاح اوکړله ورئې کړه. دا خاوند باشعور اوصحت مند کس دې قومی لحاظ سره هم کفوا وښځه هم درې څلور کاله دده سره ابادہ وی. د ناچاقئ په بناء باندې دې پیش امام خپله لورپټه کورته راوسته او څه وخت پس ئې دخاوند خلاف باندې دعوٰی دتنسیخ نکاح دائر کړله، ددروغو ګواهئې ئې قائمې کړې فیصله ئې دخاوند خلاف اوکړه. آیا دجج په طلاق باندې طلاق واقع کیږی؟ دویم ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: احمد عبدالرحمٰن صدیقی ناظم انجمن خدام القرآن نوشهره۱۹۲۹ء۱۹۱۵۱

**الجواب:** دکوموموجوهاتو په بنا باندې چه مسلمان حاکم دفسخ نکاح (طلاق) مجازدې که چرې بالفرض هغه وجوهات ددروغ ګواهئې نه ثابت کړې شوې وی بیاهم دافسخ اوطلاق صحیح دې او دویم ځائې کښې نکاح مشروع دې، ځکه حاکم عالم الغیب نه دې. مدعی علیه دپاره ضروری دی چه هغه جرح اوکړی. فی الدرالمختار: ولوقضی بطلاقها بشهادة الزورمع علمها بذلک نفذوحل لها التزوج بآخر بعدالعدة (وفی ردالمحتار ۲: ۴۰۴) قوله وبقولهما یفتی قال الکمال وقول الامام اوجه واستدل له بدلالة الاجماع الخ﴿۱﴾. وهوالموفق

## بې قاعده تنسیخ نکاح شرعا مسترد اوپه دې کښې معاونت وغیره حرام دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دهندې اوزید نکاح په حالت دبلوغ کښې شوې ده ددوی مورپلار هم مجلس نکاح کښې موجود وو شاهدین اود نکاح تړلو والا د مسجدامام هم موجود دې

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۱۹ قبیل باب الولی)

دستخطونو سره هرڅه موجود دی اوپه رجسټر کښې هم په فارمونو باندې د پس څه زمانه پس د دواړو پلارانو په مینځ کښې نالړی پیدا شوه، نودهندې پلاردبل کس سره ملاوشو د جینۍ دطرفنه ئې په عدالت کښې دفسخ نکاح دعوی اولیکله، ددې نه وړاندې دزید پلارخوجرګې دهندې په پلار باندې کړي وې. رشته واپس کړې او ورتې کړی. لیکن دهندې پلاراول اخوا دیخوا کول وروسته ددېنه صفامنکر شو او بیائې دفسخ نکاح دعوی اولیکله، په عدالت کښې نکاح هوان اوګواهانو دجینۍ دبلوغ کیدلو اوتږلو تقاضوپوره کولو اودنکاح پوره کیدلو ګواهی ورکړه او زید په عدالت کښې بار بار اووئیل چه هغه جینۍ ابادول غواړی لیکن ددې هرڅه باوجودعدالت دفسخ نکاح فیصله دجینۍ یعنی دهندې په حق کښې اوکړه اودنکاح ثانی اجازت ئې ورکړوآیا په شرع کښې دانکاح فسخه کیدلې شی؟ اونکاح ثانی کولې شی؟ اود دویمی نکاح تړلو والااودګواهانو جوړیدلو والو شرعا څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرؤف قریشی ګړهی حبیب الله خان..... ۷\۱۲\۱۹۷۲ء

**الجواب:** کله چه خاوند دښځې باقاعده آبادولو ته تیاروو نو دافسخ شرعا مسترد ده. لانه فسخ من غیرضرورة﴿۱﴾اونکاح ثانی اوپه دې کښې شهادت او معاونت وغیره حرام دی﴿۲﴾-وهوالموفق

## بلا وجه شرعی د تنسیخ نکاح ډګری وغیره شرعا قبول نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کښې چه یوې ښځې دخاوند د

﴿۱﴾قال العلامة شمس الحق الافغانی: الخطاء الذی قضٰی به القاضی اما ان یختلف الفقهاء فی کونه خطاءً اولا یختلفوا، الثانی یرجع عنه ویرده لا محالة والاول یمضیه اذا کان بعد دعوی صحیحة وشهادة مستقیمة.

(معین القضاة والمفتیین ۷۰ الفصل الثامن فی رجوع القاضی عن حکمه)

﴿۲﴾قال الله تبارک وتعالیٰ: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان (الآیة).

(سورة المائدة آیت: ۲ رکوع: ؛ پاره:۶)



وفات نه دوه کاله پس دلیورسره په خپله نکاح دشرع په طریقه اوکړه درې ورځې خاوندسره دتیرولونه پس دمذکوره ښځې پلارد لالچ په وجه خپله لور جدا کړه اودنکاح بالجبردعوی ئې اوکړه، دسیشن جج په عدالت کښې مقدمه دروغ ثابته شوه دفیصلې اورؤلونه پس دتحقیق نه وروسته ثابته شوه چه د مذکوره ښځې پلارکمینه اخلاقو والادې اوداهرڅه ئې دڅه لالچ په خاطر کړي دی اودانکاح درضا اورغبت په وجه درست ده اودمدعی دروغ دعوی ئې ختم کړه. ددې نه پس دمذکوره ښځې پلارجونئیرسول عدالت کښې دتنسیخ دعوی اوکړه اودې عدالت دسیشن جج دفیصلې خلاف دخلع ډګری ورکړه مقدمه ئې خارج کړه، ددې تنسیخ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فرمان الدین اونورمشران جلبی صوابی ۲۰\۱ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که چرې داامرتسلیم شده یادشهادت شرعیه نه ثابت شده وی چه دې ښځې ددې لیور سره په رضا اورغبت نکاح کړي وی نودانکاح لازم اوناقابل فسخ ده، لوجودرکن النکاح وشرائطه﴿۱﴾وهوالموفق

## د نابالغه د خیاربلوغ اود ډی سی د طرف نه د طلاق نامې د ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوه نابالغه جینۍ پلارپه نکاح شرعی باندې ورکړه، دې جینۍ په دې وخت دنکاح نه انکار اوکړو، بیادامقدمه ډی سی صاحب دکوهاټ سره پیش شوه اوهلک اوجینۍ هم موجودشو، جناب ډی سی صاحب دې کس په مخ کښې طلاق نامه ورکړه او خاوند هم موجودوو، اوس دانکاح فسخ کیدې شی اوکه نه؟ اودنابالغه جینۍ انکار قوی دې اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانامحبت خان مندوری ضلع کوهاټ..... ۲۱\۱۱\۱۹۶۹ء

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: نفد نکاح حرة مکلفة بلا رضا ولی...... وله ای للولی اذا کان عصبة...... الاعتراض فی غیر الکفء، قال ابن عابدین: : (فیفسخه القاضی) فلا تثبت هذه الفرقة الا بالقضاء لانه مجتهد فیه وکل من الخصمین یتشبث بدلیل فلا ینقطع النکاح الا بفعل القاضی. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۳۲۲ باب الولی)

**الجواب:** چونکه نکاح ئې پلارتړلې ده لهذا اجینئ داعقد او نکاح نه شی فسخ کولې. نه دقبول په وخت نه د قبول نه وړاندې﴿١﴾ او چونکه حاکم صرف دناکح په مخکښې طلاق نامه ورکړې ده ناکح خو طلاق نه دې ورکړې لهذا افسخ دنکاح دپاره ناکافی ده﴿٢﴾-وهوالموفق

## سره د آبادولو نه خاوند ته د تنسيخ نكاح ډګرى وركول شرعاً كالعدم ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دکوثربی بی واده د رشیدخان سره شوې دی. درواج مطابق یوورځ خاوند کره اووسیده د پلار کورته لاړه. شپږمیاشتې پس دې دتنسیخ نکاح دعوی او کړه لیکن رشیدخان بهرملک ته لاړوواودې ښځې وئیلی ووچه زه دخاوند په عدم موجودګئې کښې دپلارکورکښې اوسیږم اونان نفقه نه راوړی لیکن ددې باوجودئې خپل رور د تنسیخ نکاح پیروئ ته مقررکړو. کیس شروع شو دمقدمې په وخت کښې رشیدخان په خپله په عدالت کښې حاضرشواودابیان ئې ورکړو چه دادمال په واپسئ یعنی دمهریادڅه په صورت کښې ښځه طلاقول نه غواړی بلکه هغه داپه هرصورت کښې آبادوی. لیکن عدالت دطلاق خلع ډګری ورکړه. آیا دا طلاق واقع کیدې شی اونکاح فسخ شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشید ګوجرخان راولپنډی...... ١٥ ذی قعده ١٤٠١هـ

---

﴿١﴾ وفی الهندية: فان زوجهما الاب والجد فلا خيار لهما بعد بلوغهما وان زوجهما غير الاب والجد فلكل واحد منهما الخيار اذا بلغ ان شاء اقام على النكاح وان شاء فسخ.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١:٢٨٥ الباب الرابع فی الاولياء)

﴿٢﴾ وفی الهندية: وكذلک كل كتاب لم يكتبه بخطه ولم يمله بنفسه لا يقع به الطلاق اذا لم يقر انه كتابه كذا فی المحيط.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١:٣٧٩ قبيل الفصل السابع فی الطلاق بالفارسية)



**الجواب:** کومه ښځه چه خاوندباقاعده آبادوی اوابادولې شی نوهغه دتنسیخ نکاح حقداره نه ده اوده ته دتنسیخ نکاح ډګری ورکول شرعاکالعدم دې﴿١﴾-وهوالموفق

## مجبوراً ښځه تنسيخ نكاح په مسلمان جج باندې كولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دهندې نکاح دصابرخان سره په پاکستان کښې اوشوه ددې نه یوه جینئ پیداشوه هغې نوم ئې په پاسپورټ کښې اولیکلو، صابردانګلینډ نه دخپلې ښځې هندې په نوم طلاق اولیکلواوراوئ لیګو. هندې دعدت نه پس دحسین خان سره واده اوکړو اودا ماشومه ددې سره په پرورش کښې وه، کله چه پیغله شوه نودهغې واده انګلینډ کښې دنثارعلی سره باقاعده شرعی اوشوه. ایجاب اوقبول دعالم دین په مخ کښې اوشو. مګردهغې ځائې دقانونی اعتبارسره نکاح رجسټرډنه شوه دخاوندخیال ووچه دادپلاریوه لورده لهذادډیردولت سره به راځی، په دې کښې صابرخان اووئیل چه دازمالورنه ده اودناکح په خیالاتو کښې تبدیلی شروع شوه چه دولت خواوس نه راځی لهذاخاونداوس ددې دښځې جوړولونه انکاراوکړو، چه دازمابښځه نه ده اونه مې ورسرد نکاح شویده، په دې کښې د نثارعلی نه یوهلک هم پیداشوی وواودرې میاشتې پس هغه مړشو، اوس دا هلک دازدواجی تعلقاتونه منکردې. او طلاق هم نه ورکوی چه فارغه ئې کړی اووائی چه اول پنځه زره پونډه راکړئ نوموږبه ئې فارغه کړو، لیکن دجینئ والاددې رقم نه معذوره دی اوس جینئ په دې چکرکښې ده لهذاکه چرې د خلاصی څه صورت وی نووئی لیکئ اوپیش ئې کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: یو بنده مسلم برمنګهم انګلینډ........ ١٢٧محرم ١٤٠٣

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفی: ولا يفرق بينهما بعجزه عنها بانواعها الثلاثة ولا بعدم ايفائه لو غائبا حقها ولو موسرا وجوزه الشافعی باعسار الزوج وبتضررها بغيبته ولو قضى به حنفی لم ينفذ. (الدر المختار على هامش ردالمحتار ٢:٧١٢ مطلب فی فسخ النكاح بالعجز عن النفقة)

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دامجبوره ښځه دمسلمان جج په ذریعې سره طلاق (تنسیخ نکاح) حاصلولې شي، اوعدت تیرولو نه پس بل ځائې کښې نکاح کولې شي (حیله ناجزه) ﴿۱﴾ - وهوالموفق

## تنسیخ نکاح په ظاهره خلع بالاکراه او حقیقت کښې طلاق بائن دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه عدالت دتنسیخ نکاح فیصله صادره کړې ده ایا په دې سره ښځه طلاقیږي، اودویم ځائې کښې نکاح کولې شي؟ که چرې طلاق واقع کیږي نوددې څه صورت دې؟ خلع او که بل صورت؟ ددې په باره کښې فیصله صادره کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاری محمدانور ګلواله سرګودها........ ١٥١٩١٠١٩٧٩

**الجواب:** کوم خاوند چه ښځه نه باقاعده آباده وی اونه ئې آزادوی، نو دامظلومه ښځه د تنسیخ نکاح مستحقه ده اودا تنسیخ نکاح جائز اونافذه دې ﴿۲﴾ اودا تنسیخ په

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: اوصورت دتفریق (زوجه متعنت) دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم اوددوی دنۀ موجود کیدو په صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شي هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوٰی صحیح ثابته شي چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نو دهغې خاوند ته دې اووئیلې شي چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی یا شرعاً چه څوك دهغۀ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی. (حیله ناجزه ۴۷ حکم زوجه متعنت)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیر کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شي نو د سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکې مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته.... صورت: د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنۀ موجود کیدو په صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شي هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوٰی صحیح ثابته شي چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نو دهغې خاوند ته دې اووئیلې شي چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ........ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



ظاهره خلع بالاکراه اوپه حقیقت کښې طلاق بائن دې ﴿۱﴾ - وهوالموفق

## چرته چه قاضی نه وی هلته دعلماء جمعیت د ضرورت په وجې سره تنسیخ نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوکس دوه ښځې دی دیوې ښځې څه نه څه حقوق اداکوی لیکن دویمه په خپل ځائې باندې همداسې پریخې ده حقوق شرعی ئې نه اداکوی اونه ئې دنان نفقې څه بندوبست کوی اوداځائې داسې آزاده علاقه ده هلته څه قاضی وغیره نشته دې چه هغه دابښځه آزاده کړی اوحال دادې چه خاوندئې هم طلاق نه ورکوی، پس که چرې دابښځه په دې حالت کښې دطلاق نه بغیر دخاوند نه جداشی او دویم واده اوکړی چه خاوند دچاخبره نه اوری نو ښځې ته ایاداکار کول جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ شیرعالم دوآبه هنګوکوهاټ.......... ١٤٠١١٧١٦هـ

**الجواب:** که چرې دتفحص اوتحقیق نه پس دامعلومه شي چه داخاوند ظالم دې نه دابښځه آبادوی اونه ئې آزادوی نو دڅو بااثره علماء په جمعیت کښې ددې تحقیق نه پس دابښځه طلاقولې شي اودادامام مالک رحمه الله مذهب دې اود

(بقیه حاشیه).. به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی یا شرعاً چه څوك دهغۀ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی. په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته. (الحیلة الناجزه ۷۴ حکم زوجه متعنت)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ان اختارت الفرقة امر القاضی ان یطلقها طلقة بائنة فان ابی فرق بینهما هکذا ذکر محمد رحمه الله تعالیٰ فی الاصل کذا فی التبیین والفرقة تطلیقة بائنة کذا فی الکافی.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۵۲۴ الباب الثانی عشر فی العنین)

ضروت په وخت د احنافو په نزد په دې باندې عمل کول جائز دي﴿۱﴾ وهو الموفق

## د باقاعده تحقیق نه پس د قاضی یکطرفه د تنسیخ نکاح فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه مونږ د خپلې خور نکاح د رفیق خان سره کړي وه کله چه دواده وخت راځی نو هغه یودوه ورځې وړاندې او تحتی ډیره پریشانی ده دخور عمر موهم پنځه ویش کاله دې د مور پلار په کور کښې ده پنځه نیم کاله وړاندې ئې نکاح شوي ده او رفیق خان همدغه روپوشی اختیاروی لهذا زمونږ خور په عدالت کښې درخواست ورکړو او تنسیخ نکاح ئې اوکړو نو آیا دخاوند د روپوشئ باوجود دا سرټیفیکیټ حاصلول دعدالت نه درست دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حامدشیر شیلډ بلاک اټک........۱۴۰۱۱۲۱۱۲ه

**الجواب:** کله چه خاوند جوندې غائب شی نو باقاعده دتحقیق نه پس جج غائبانه

---

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: او چرته چه مسلمان حاکم موجود نه وی یا مسلمان حاکم ته په عدالت کښې د مقدمې اوړلو قانوناً اختیار نه وی یا مسلمان حاکم د شرعی قواعدو مطابق فیصله نه کوی نو په دې صورت کښې دفقه حنفی مطابق خو دښځې جدا کولو دپاره دخاوند دطلاق وغیره نه بغیر هیڅ صورت نشته، او ممکن حده پورې لازم ده چه دخلع وغیره کوشش اوکړی لیکن که خاوند په هیڅ شان نه منی یا دمجنون کیدو په وجه یا د لاپته کیدو په وجه هغۀ سره خلع وغیره ممکن نه وی او ښځه صبر نه شی کولې نو مجبوراً دمالکی مذهب مطابق د دینداره مسلمانانو جماعت کښې معاملې پیش کولو ګنجائش شته.لیکن په مالکی مذهب کښې د قاضی وغیره نه کیدو حالت کښې دا صورت هم جائز دې چه دمحلې د دینداره مسلمانانو یو جماعت چه ددوی شمیر کم از کم درې وی مشری اوکړی او د واقعې تحقیق اوکړی اود شریعت موافق حکم اوکړی نو دا هم د قاضی د قضاء قائم مقام کیدې شی.

**صرح بذلک العلامة الصالح التونسی مفتی المالکیة فی المسجد النبوی بالمدینة المنورة فی فتواه الملحقة بهذه الرسالة فی الروایة السابعة عشر،**

اود سخت ضرورت اود عام ابتلاء په وخت د احنافو په نزد د نورو امامانو مذهب اختیارولو سره په هغې باندې فتوی ورکول هم جائز دی. الخ (الحیلة الناجزة ۳۴ تفریق زوجین بحکم حاکم)



فیصله (یکطرفه فیصله) کولو مجازوی، کذافی قضاء ردالمحتار عن جامع الفصولین﴿۱﴾. وهو الموفق

## بلا وجه تنسیخ نکاح کول غیرمعتبر او د دینی امورو خنمؤل دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې ښځه دخاوند نه په څه خبره خفه شی او کورته لاړله شی او بیا تنسیخ نکاح اوکړی، نو آیا ددې تنسیخ څه اعتبار شته؟ بینوا توجروا

المستفتی: چوهدری صفدر راولپنډی.....۱۲ربیع الثانی۱۴۰۲ه

**الجواب:** که چرې خاوند دا ښځه نه آبادوی او نه ئې په ښه طریقه آزادوی نو د تحقیق نه پس د مسلمان جج دتنسیخ نکاح ډګری جاری کول قابل قبول ده، او د عدت نه پس دې ښځې ته دویم ځائې کښې نکاح جائز کیږی (حیله ناجزه)﴿۲﴾ او که چرې ښځه آبادوی یائې په ښه طریقه ازادوی نو بیا ددی تنسیخ شرعا اعتبار نشته، او دویم ځائې کښې نکاح درست نه ده او د دینی امورو د پامالئ

---

﴿۱﴾ **قال العلامة الشامی: لکن فی الخامس من جامع الفصولین عن الخانیة: غاب المدعی علیه بعد ما برهن علیه او غاب الوکیل بعد قبول البینة قبل التعدیل او مات الوکیل ثم عدلت تلک البینة لا یحکم بها وقال ابویوسف یحکم وهذا ارفق بالناس. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۴: ۳۷۳ مطلب فی القضاء علی الغائب)**

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: ښځه دې خپله مقدمه د اسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنۀ موجود کیدو په صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی او چا ته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی او که دښځې دعوی صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نو دهغې خاوند ته دې اووئیلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی یا شرعاً چه څوک دهغۀ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی.په دې کښې دڅه مودې انتظار او مهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته.

**(الحیلة الناجزه ۱۶۴ المرقومات للمظلومات حکم متعنت فی النفقة)**

مترادف دي﴿۱﴾-وهو الموفق

## د تعنت فی النفقة په وجه په مذهب غيرباندې فتوىٰ او د قضاء على الغائب حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه هنده ددې خاوند تر څلورو کالو پورې غيرآباده او ساتله او دخوړلو دپاره نه نان نفقه ورکوی نه ئې معاف کړه او نه ئې دې عرصه کښې دننه خبروا خستلو دهندې اقرباء اورشته دارو خاوند کافی پوهه کړو او ډير خطوط ئې ورله اوليږل چه هنده آباده کړه ګينې د خرچې دعوی به درباندې اوليکو ،ليکن خاوند هيڅ پروا اونه کړه، آخر دهندې پلاردخاوند پلاربکر طرفته څو خطوط اوليکل اويو رجسټری ئې وراوليګل چه زما دلور څه انتظام اوکړه ګينې زه دتنسيخ نکاح دعوی کوم، چنانچه مجبورا عدالت سول جج دمسلمان په عدالت کښې هندې دتنسيخ نکاح دعوه اوليکله عدالت څو ځله سمن رجسټرپه نوم دخاوند کوم چه دپلار سره اوسيږی ور او ليګله باوجود دعلم نه درجسټريانو نه پټيږی اودده پلارليکی چه فلان چک کښې اوسيږی لهذا اوپس لاړشئی، په اخبار کښې نوټس جاری کړې شو ليکن عدالت ته حاضر نه شو ،بالآخره دخاوند پلار ته ئې رجسټری اوليږله چه ته هلک عدالت ته حاضر کړه او يا په خپله حاضر شه د مقدمې پيرداری اوکړه مګرپه دواړو کښې يو هم حاضرعدالت نه شو ،آخر عدالت دخاوند په عدم موجودګئ کښې دطلاق حکم ورکړو ،اياشرعاهم داطلاق واقع کيږی؟ آيا شرعی تقاضی په تقاضائې فقه حنفی په دې کښې پوره دې؟بينوا توجروا

المستفتی: محبوب الهی ساهيوال............ ۱۹۷۰ء۱۵۱۳

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دا ښځه مطلقه شويده دعدت دتيرولو نه پس

﴿۱﴾ قال العلامة ابن قاضى سماونه: حکم القاضى بخلاف نص واجماع وهذا باطل فلکل من القضاة نقضه اذا ارفع اليه وليس لاحد ان يجيزه.
(جامع الفصولين ۲۴ الفصل الثانى فى القضاء فى المجتهد فيه)



بل ځائې کښې نکاح کولې شی په دې شرط چه ددې ښځې دنفقې څه انتظام نه وی يعنی نه ئې په خپله کولی شی اونه ئې بل څوک ذمه اخلی اويا دنفقې انتظام ممکن وی ليکن بغير دخاوندنه دعصمت د(وقوع زنا)ويره موجود وی، دليل ددې دادې چه دتعنت فی الفقه په وجه دامام مالک په نزدفسخ نکاح جائزدې﴿۱﴾ اوداحنافو په نزدپه مذهب غيرباندې قضاء اوفتوی دضرورت په وخت جائزده، صرح به فی ردالمحتارفی مواضع منها (۳:٤٥٦)﴿۲﴾اوقضاء على الغائب هم عندالضرورت جائزدې، قال العلامة الشامى فى ردالمحتار ٤: ٢٣٩

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف على التهانوى: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طريقه خاوند سره خلع وغيره اوکړی ليکن که د ډير کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نود سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته ځکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفريق حق ملاويږی.اود سختې مجبورئ دوه صورته دی يودا چه دښځې دخرچ څه انتظام نه کيږی،.....او دويم دا چه دخاوند نه جدا اوسيدو کښې په معصيت کښې د مبتلا کيدو قوی خطره وی.او صورت د تفريق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی يا مسلمان حاکم ته اوددوی دنۀ موجود کيدوپه صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پيش کړی اوچاته چه پيش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغيره ذريعې سره د معاملې پوره تحقيق اوکړی اوکه دښځې دعوىٰ صحيح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نودهغې خاوند ته دې اووئيلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه يا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی يا شرعاً چه څوک دهغۀ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی.په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکيه ضرورت نشته.
(الحيلة الناجزة ۱۶۴ حکم زوجه متعنت فی النفقة المرقومات للمظلومات)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله خلافا لمالک)...... لقول القهستانی لو افتىٰ به فی موضع الضرورة لا بأس به على ما اظن قلت ونظير هذه المسئلة عدة ممتدة الطهر التى بلغت برؤية الدم ثلاثة ايام...... وعند مالک تنقضی عدتها بتسعة اشهر وقد قال فی البزازية الفتوىٰ فی زماننا على قول مالک وقال الزاهدی كان بعض اصحابنا يفتون به للضرورة واعترضه فی النهر وغيره بانه لا داعی الى الافتاء بمذهب الغير لا مكان الترافع الى مالكی يحكم بمذهبه وعلى ذلک مشى ابن وهبان فی منظومته هناک لكن قدمنا ان الكلام عند تحقق الضرورة حيث لم يوجد مالكی يحكم به. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳۶۲ مطلب فی الافتاء بمذهب مالک فی زوجة المفقود)

فالظاهر عندی ان یتامل فی الوقائع ویحتاط ویلاحظ الحرج والضرورات فیفتی بحسبها جوازا وفسادا لخ﴿۱﴾.وهوالموفق

## د باقاعده آبادۍ په صورت کښې د طلاق ورکولو نه بغیر په تنسیخ نکاح باندې ډګری د کارنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زمونږ یو دوست د لور واده پنځه کاله مخکښې په پاکستان کښې شوي دې دواده نه پس دښځې او خاوند جهګړه اوشوه جینۍ هالینډ ته دوالدینو خواته راغله،ددې ځائې نه په لاهور کورټ کښې په ذریعه دوکیل دطلاق مطالبه اوشوه کیس اوس هم چلیږی.جینۍ دڅلوروکالونه په هالینډ کښې ده دلته ددې بچی هم پیدا شو اوس داجینۍ دویم ځائې کښې واده کول غواړی لیکن هغې ته طلاق نه دې ملاؤ شوې.ایاشرعاًدېته دجوازګنجائش دې؟بینوا توجروا

المستفتی: محمدطارق خان هالینډ......... ۱۲۱۱۱۱،۱۹۷۴

**الجواب:** که چرې ددې ښځې خاوند دا ښځه باقاعده آباده ساتله په حقوق کښې دڅه شی مرتکب نه وونو بیا ددې باوجود دښځې او خاوند په مینځ کښې د نالګۍ په صورت کښې دخاوند دطرف نه باقاعده دطلاق نه بغیر ښځه نه شی آزادیدلې.اوپه داسې صورت کښې دعدالت نه تنسیخ نکاح ډګری حاصلولو سره هم ښځه نه آزادیږی﴿۲﴾ پس په صورت مسئوله کښې دحالات مسطورو

﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدر المختار ۴:۳۷۷ قبیل مطلب فی القضاء علی المسخر)

﴿۲﴾قال الشیخ شمس الحق الافغانی: حکم القاضی علی خلاف النص کالحکم بحل متروک التسمیة عمدا او علی خلاف السنة المشهورة کالحکم بتحلیل المطلقة ثلاثا بمجرد عقد المحلل بلا دخول او علی خلاف الاجماع کالحکم بصحة نکاح المتعة باطل ولکل قاض نقضه اذا رفع الیه.

(معین القضاة والمفتین ۶۸ الفصل السادس فی اقسام القضاء)



مطابق دا ښځه تراوسه پورې آزاده نه ده ددې دخاوند سره چه رابطه قائمه شی د طلاق اچولو نه پس به دا ښځه آزاده شی﴿۱﴾-وهوالموفق

## مجبوره ښځه اولاً مصالحت ثانیاً خلع او په آخر کښې د تنسیخ نکاح مطالبه کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوه ښځه چه دخو بچو مورده خاوند هغه اوس په کور کښې نه اوسوی اودکورنه ئې ویستې ده ددې تقریباًدوو کالونه زیات موده شوي ده چه دوالدینو په کور کښې کښې ده او خاوند نان نفقه هم نه ورکوی ددې څه حل دې؟بینوا توجروا

المستفتی: محمدفرید عباسی مری......۱۲۱۱۰۱،۱۹۷۸

**الجواب:** اول ددې زوجینو په درمیان کښې دمصالحت کوشش دې اوکړې شی، ثانیاً په خلع باندې راضی کړې اوکه چرې دادواړه کارونه ناممکن وی نو بیا کوم مسلمان حاکم یادمسلمان نیک او دصلحاء د جماعت په واسطه دې تنسیخ نکاح اوکړې شی(ازحیله ناجزه)﴿۲﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: اوچرته چه مسلمان حاکم موجود نه وی یا مسلمان حاکم ته په عدالت کښې د مقدمې اوړلو قانوناً اختیار نه وی یا مسلمان حاکم د شرعی قواعدو مطابق فیصله نه کوی نو په دې صورت کښې دفقه حنفی مطابق خو دښځې جداکولو دپاره دخاوند دطلاق وغیره نه بغیر هیڅ صورت نشته. او ممکن حده پورې لازم ده چه دخلع وغیره کوشش اوکړی.(الحیلة الناجزه ۳۴ جماعت مسلمین کاحکم)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیر کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نو د سختې مجبورۍ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته ځکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویږی.او د سختې مجبورۍ دوه صورته دی.... صورت د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه د اسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته او ددوی د نۀ موجود کیدو په صورت کښې د مسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعویٰ صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی........ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## صرف د مهر نه ورکولو په وجه باندې تنسیخ نکاح نه کیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوې ښځې په عدالت حاضره کښې دمهردعوی اوکړه چه ماته دې خاوند مهر راکړی، خاوند په عدالت کښې حاضرنه شوعدالت تنسیخ نکاح اوکړه، ایاداښځه اوس بل ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی دواخانه اندرون مهربان ګیټ بنوں......۲۹۱۸۱ء۱۹۸۵

**الجواب:** په ظاهره دا تنسیخ نکاح قانونی تنسیخ دې نه اسلامی، نکاح دڅه د ماشومانو لوبې نه دی چه په هرعلت سره ختمیږی﴿۱﴾-وهوالموفق

## د خاوند اراده د قتل او نفقه نه ورکولو په صورت کښې د تنسیخ یا د خلع حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید هندې سره نکاح اوکړه، دزیدسره ئې وخت تیرکړولیکن دبلوغه پورې نه وه رسیدلې، یوه ورځ زیدمورد کورنه دبوتلوپه بهانه په لاره کښې ددې دقتل په اراده باندې په توپک ډزې اوکړې اواوتختیدو، ښځه زخمی شوه اودپلارکورکښې اوسیږی علاج ئې کولوپنځلس کاله تیرشول اوخاوند په دې موده کښې تپوس اونه کړو، نوپه دې عمل طلاق واقع کیږی اوکه نه؟ اودویم ځائې کښې واده کولې

(بقیه حاشیه)......نودهغې خاوند ته دې اووئیلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنې مونږ به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نوقاضی یاشرعاًچه څوک دهغهٔ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته.
(الحیلة الناجزه ۷۴ حکم زوجه متعنت)

﴿۱﴾ قال العلامة شمس الحق الافغانی: الاعسار بالصداق یوجب التخیر اذا لم یدخل بها وبه قال الشافعی ومالک، وقال ابو حنیفة هو غریم من الغرما لا یفرق بینهما، واما الاعسار بالنفقة فقال مالک والشافعی واحمد یفرق بینهما وقال ابو حنیفة لا، کما فی بدایة المجتهد.
(معین القضاة والمفتین ۸۹ الفصل الرابع عشر فی زوجة المفقود والمجنون وغیره)



شی اوکه نه؟ که چرې نه ئې شی کولې نودخلاصی څه صورت دې؟
بینوا توجروا

المستفتی: خائسته رحمن......۲۰۱۴۱ء۱۹۷۴

**الجواب:** قتل اودقتل اراده اونفقه نه ورکول ټول په ټول حرام اوناجائزدی لیکن دې سره ښځه نه طلاقیږی﴿۱﴾ لهٰذا طلاق یاخلع یادمسلمان حاکم تنسیخ نکاح نه وړاندې داښځه بل ځائې کښې نکاح نه شی کولې﴿۲﴾-وهوالموفق

## د عجزعن النفقه وغیره په وجه باندې د جرګې فیصله دتنسیخ نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه تنسیخ نکاح د لاندینو بیاناتوپه روشنئ کښې شوې ده ایاشرعاداتسلیم دې؟ بیانات دادی:

**بیان مدعیه:**...... زه فلانه ولدفلان قوم فلان تحصیل بهکرمیاں والی دعوی کوم چه درې څلورکالونه پیغله شوې یم مسمیٰ فلان ولدفلان سره څما پلار څما نکاح کړې وه، هغه په وخت دنکاح اواوس هم نابالغ دې د حقوق زوجیت اوداوده کولوپه مذکورکښې صلاحیت نشته دې هغه په خپله اونه ئې پلار آئنده دواده کولواراده ساتی، څمادنان نفقې اودزندګئ دضروریاتوخرچه ورکولو نه هم دهلک والداوهلک انکاری دې زه په خپله هم دزندګئ د ضروریاتو متکفل نه یم ځکه چه څماپلاروفات شوې دې لهذاجرګه کوم چه په یولسو کالوباندې مشتمل ده استدعاکوی چه ناکح اودده پلارڅمادنان او نفقه قطعاانتظام نه شی کولې مجبوراجرګه مذکور حکم تسلیم کوم چه زما نکاح فسخ کړی.

دستخط اودګوتې نشان

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ورکنه لفظ مخصوص خال عن الاستثناء طلقة الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۵۳ کتاب الطلاق)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره وکذلک المعتدة کذا فی السراج الوهاج. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۸۰ القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

**بیان والد مدعاعلیه** ......مسماه فلانه په ماباندې اوزمانابالغ ځوې مسمی فلان والالفظ په لفظ مااورؤلي ده دمسماه فلانې باندې چه دعوه کیږیده جرګې دعوی بلکل صحیح ده زه خپل ځوئ ته نه واده کوم اونه دنان نفقې (تربلوغ هلک) په وجه اوچتوم نه هلک په خپله دنان نفقې کفیل کیدی شی لهذا دفسخ نکاح کومه فیصله چه جرګه اوکړی نوهغه ماته په حیثیت دمتولی منظورده.

دستخط د پلاراو ځوی

المستفتی: شیرعباس اعوان کلورکوټ میاں والی...... ۱۹۷۰،۱۳۱،۳۰

**الجواب:** چونکه د شوافع اوحنابله وغیره په نزدعجز عن النفقه په وجه فسخ نکاح صحیح ده اوفقهاء احناف دضرورت په وخت کښې په مذهب غیر فتوی ورکول جائزګرزؤلي دی ﴿۱﴾ لهذاکه چرې ددې ښځې دنفقې څه انتظام نه وی اونه ئې څوک ذمه اخلی نوپه دې صورت کښې دمسلمان جج په ذریعې سره فسخ نکاح فیصله حاصلول جائزدې. یعنی حاکم دتحقیق نه پس دافیصله اوکړی چه ماستانکاح فسخه کړه صرف اختیاراومرضی باندې به ئې نه پریږدی اوداهم جائزده چه مقامی بااثرعلماء اوغیرعلماء (چیرمین ممبران) د تحقیق نه پس که چرې دافیصله اوکړی چه مونږ دانکاح فسخه کړه نوداهم کافی ده ﴿۲﴾- وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الشیخ شمس الحق الافغانی: طریق تطلیق زوجة المفقود او الغائب الذی تعذر الارسال الیه او ارسل الیه فتعاند لعدم النفقة فان الزوجة تثبت بشاهدین ان فلانا زوجها وغاب عنها ولم یترک لها نفقة ولا وکیلا بها ولا اسقطتها عنه وتحلف علی ذلک فیقول الحاکم فسخت النکاح او طلقتک منه او یأمرها بذلک ثم یحکم به وهذا بعد التلوم بنحو شهر او باجتهاده عند المالکیة او فورا او متراخیا عند الحنابلة.

(معین القضاة والمفتین ۸۹ الفصل الرابع عشر فی زوجة المفقود وغیره)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیرکوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نو د سختې مجبورئ په حالت کښې په ............ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## ښځه د مجبورئ په وجه باندې تنسیخ نکاح کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوه جینئ کومه چه عیسائی مذهب کښې وه دکومې نوم چه مارګریټ وو هغه جینئ ځوانه شوه مسلمانه شوه اودیومسلمان کس سره ئې نکاح اوکړه ددې نوم بشیره بی بی کیخودلې شو. دخاوند سره څلورکاله وه. څلورکاله پس خاوندهغه دکورنه ویسته نه نان نفقه ورکوی اونه ورسره څه تعلقات ساتی تقریبادوه څلورځله په جرګه امام صاحب اودوه څلورکسان دده خواته لاړل چه خپله ښځه بشیره بی بی ځان سره اوساته اویاخرچه ورکوه. لیکن خاوندوانی چه نه داکورکښې پریږدم اونه خرچه ورکوم اونه دیته طلاق ورکوم اوس ددې مسئلې شرعی حل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداکبراسلام آباد

**الجواب:** داجینئ مسلمان حاکم یاباآثرجمعیت د مسلمانان په کوم چه اکثریت علماء وی. په ذریعه فسخ نکاح حاصلولې شی اوددګرئ نه پس کله چه عدت تیرشی نوبل ځائې کښې نکاح کولې شی (هکذافی الحیلة الناجزه) ﴿۱﴾ وهوالموفق

(بقیه حاشیه)..... مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته ځکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویږی......اوصورت د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنه موجود کیدوپه صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوی صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نودهغې خاوند ته دې اووئیلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو. که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نوقاضی یاشرعاً چه څوک دهغه قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته (الحیلة الناجزة ۱۶۴ حکم زوجه متعنت فی النفقة)

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: اوصورت د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی............ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## مجبوره ښځه باقاعده د مسلمان جج په ذریعه تنسیخ نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو ښځه دکومې نکاح چه دیو کس سره شوي وولیکن یولس کالوپورې خاوند تعلقات منقطع کړی او بیادویمه نکاح اوکړی اوس دقرآن او حدیث په روښنئ کښې ددې مجبوره ښځې څه حکم دې؟ بینوا توٓجروا

المستفتی: حاجی محمد اسلم پنډګهیپ اټک......۱۹۹۱ء۱۱\۹

**الجواب:** کومه ښځه چه خاوندنه ابادوی اونه ئې ازادوی نوداسې مجبوره ښځه په ذریعه دمسلمان جج تنسیخ نکاح کولې شی اوعدت تیریدلونه پس بل ځائې کښې نکاح کولې شی(والتفصیل فی الحیلة الناجزه)﴿۱﴾.وهوالموفق

(بقیه حاشیه)..... دنهٔ موجود کیدوپه صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوٰی صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نودهغې خاوند ته دې اوویلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو، که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نوقاضی یاشرعاچه څوك دهغهٔ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی.په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته.(الحیلة الناجزة ۱۶۴ حکم زوجه متعنت فی النفقة)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیر کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نود سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته ځکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویږی،اود سختې مجبورئ دوه صورته دی یودا چه دښځې دخرچ څه انتظام نه کیږی،.....او دویم داچه دخاوند نه جدا اوسیدو کښې په معصیت کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی.او صورت د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنهٔ موجود کیدوپه صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوٰی صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نودهغې خاوند ته دې اوویلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئې درنه جدا کړو،.........(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## دغلط تنسیخ نکاح نه پس ددویم وادهٔ دوجې نه دطعن اوبائیکاټ مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه تقریبا ۱۹۳۹ء کښې د زینب خاوند دقتل عمد په جرم کښې دعمرقید سزاتورې اوبه شو. زینب مذکوره دسول جج په په عدالت کښې دتنسیخ نکاح دعوی اوکړه،جج د یو طرفه کاروائی لاندې نکاح فسخه کړه اوښځې دویمه نکاح اوکړله، علماء کرامو داتنسیخ ناجائزاوګرزولو اودنوی خاوند مثلازیدنه ئې دبائیکاټ حکم اوکړو بلکه بعض علماء په خپله فتوی کښې کافرهم کړو(چه حرام ته حلال وائی) څو میاشتې اوشوی چه زید مړشو ،اوعام خلق دعلماء د بائیکاټ دوجې نه ډیرکم تعدادباندې په جنازه کښې شریک شو اوحال دا دې چه زیدپه ژوند کښې داول خاوند درهائې نه پس په دې کښې هرقسمه کوششونه اوکړل چه هغه خلع اوکړی یاطلاق علی المال ورکړی لیکن هغه او نه منله،دده دوفات نه پس ددې ښځې بچوهم کوشش اوکړومګرهغه په ضددې اوښ دتپوس دا دې چه په زینب باندې طعن کول،ددې نه بائیکاټ کول،ددې دمرګ په صورت کښې عواموته ددې په جنازه شرکت نه کول وغیره څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی:مولاناعبدالسلام مدرسه اشاعت القرآن حضرو۱۳شعبان۱۴۰۲ه

**الجواب:** واضحه دې وی دعصمت دخوف په صورت کښې دمسلمان حاکم تنسیخ نکاح نافذ او منظوریږی ﴿۱﴾ همدارنګه واضحه دې وی چه بغیر د

(بقیه حاشیه)..... که ددې نه پس هم دغه ظالم په دې صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی یا شرعاً چه څوك دهغهٔ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی.په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالکیه ضرورت نشته.للروایة الثالثة والعشرین من الفتوٰی للعلامة سعید بن صدیق.(الحیلة الناجزة ۷۴ حکم زوجه متعنت)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیر کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نود سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته ځکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویږی،اود سختې مجبورئ دوه صورته دی یودا چه دښځې دخرچ څه...(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

ضرورت نه تنسیخ نکاح نامنظوره وی. خو بیا هم ددویم خاوند دوفات دوجې نه اصرار گناه ختم شو او دهرې گناه نه پس توبه منظورده. لمافی الحدیث: التائب من الذنب کمن لاذنب له (الحدیث) ﴿۱﴾ پس بهرحال په صورت مسئوله کښې بائیکاټ ختمول پکاردی. وهو الموفق

## په رسم سوره کښې د نابالغو جینکو د ورکولو صورت کښې د حق تنسیخ نکاح او د خیار مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه په دوو قبیلو کښې جهګړه وه په مینځ کښې جنګونه او شول او په دې جنګ کښې... دخیل څه کسان زخمي شول څه ورځې پس صلح اوشوه او په صلح کښې دافیصله اوشوه چه.... چه خیل دې لس زره روپئ او دوه جینکئ ورکړې دوئ داسې او کړل لیکن دجینکو خاوند نامعلوم وو دمهر ذکر هم نه وو شوې والدین په دې باندې هرګز راضي نه وو. څه زمانه پس په فیصله کښې خلل پیدا شولو.... خیل درې جینکئ نورې ورکړې. دلته هم دجینکو پلاران موجود نه وو. داهم یادساته چه دا ټولې جینکئ نابالغې وې او س سوال دادې چه ایا داجینکئ تنسیخ نکاح کولې شي او که نه؟ لیکن داهم اندیښنه ده چه کله داجینکئ بالغې شي نو د نورو سره به اوتختي؟ براه کرم زرنه زرددې مسئلې وضاحت او فرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: پیرعبدالرزاق مالی باغ کوئټه بلوچستان..... ۱۹۱۵۱۱۹۸۴ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې داجینکئ دخیاربلوغ په وجه باندې باقاعده تنسیخ نکاح کولې شي. لان العاقدههناغیرالاب والجد ﴿۲﴾ وعلی تقدیر کون غیر

(بقیه حاشیه)... انتظام نه کیږي. او نه پخپله د کار کسب طاقت لرلې شي. او دویم صورت د مجبورئ داچه اګرچه په سهولت یا په مشکله د خرچ انتظام کیدې شي لیکن دخاوند نه جدا او سیدو کښې په معصیت کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی.
(الحیلة الناجزة ۷۳ حکم زوجه متعنت)

﴿۱﴾ (رواه ابن ماجه والبیهقی فی شعب الایمان مشکواة المصابیح ۱:۲۰۶ باب الاستغفار والتوبة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان زوجها غیر الاب والجد فلکل واحدٍ منهما الخیار اذا بلغ ان شاء اقام علی النکاح وان شاء فسخ وهذا عند ابی حنیفة ومحمد رحمهما الله تعالیٰ ویشترط فیه القضاء. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)



الاب عاقدا کونه معروفابسوء الاختیارمانع من لزوم النکاح ﴿۱﴾ واعلم ان انکارالآباء علی نکاح بناتهم الغیر البالغات یفسخ به النکاح الموقوف ﴿۲﴾. وهو الموفق

## د بلوغ نه پس د جج د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید دخپلې نابالغې خور واده دبکر سره او کړو. دبکر پلار عمر دخپلې لور زینب نکاح دخالد سره او کړو دزید چه کشرروردې هغه سره ئې په نکاح کړه. یعنې دتبادلې او شغار نکاح شوه. هنده نابالغه او وړه ده دکوم چه رخصتی نه ده شوې او دویم ځائې کښې زینب یعنې دعمر لور کومه چه بالغه وه ددې رخصتی شوې وه. بیا څو کالونه پس عمر خپله لور زینب ده کره او دخاوند دکور دا و سیدو نه انکاری کړه زینب دخاوند کورپریخودو او دوالد سره او سیده. ډیره موده پس ئې دتنسیخ نکاح او کړه او دخالد طرفنه جج زینب ته طلاق ورکړو او دبکر بنځې هندې ته جج طلاق ورکړو. ددې تنسیخ نکاح شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل منان کرک........ ۲۴۱۷۱۱۹۹۰ء

**الجواب:** که چرې داخاوند دابنځه آبادوله او کولې هم شوه نو دمسلمان جج دا

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: والحاصل ان المانع هو کون الاب مشهورا بسوء الاختیار قبل العقد فاذا لم یکن مشهورا بذلک ثم تزوج بنته من فاسق صح وان تحقق بذلک انه سیئ الاختیار واشتهر به عند الناس فلو زوج بنتا اخریٰ من فاسق لم یصح الثانی لانه کان مشهورا بسوء الاختیار قبله بخلاف العقد الاول لعدم وجود المانع قبله.
(ردالمحتار هامش الدرالختار ۲:۳۳۰ باب الولی)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (والا الخ) ای وان لم یستووا فی الدرجة وقد رضی الابعد فللاقرب الاعتراض بحر عن الفتح وغیره.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۲۳ باب الولی)

تنسيخ نكاح صرف قانونى تنسيخ دي شرعى نه دي﴿١﴾او كه چري دي منكوحى دعلم بلوغ نه پس متصل په دي نكاح باندي دناراضګئ اظهار كړي وى نو حاكم ددي تنسيخ نكاح كولي شى ګيني نشى كولي﴿٢﴾وهوالموفق

## د سيئ الاختيار نيكه او د عدالت د يو طرفه تنسيخ نكاح مسئله

**سوال:** څه فرمائى علماء دين ددي مسئلي په باره كښي چه نيكه دخپلي نمسئ رشته په وخت دپيدائش كښي وكړله ليكن دجينئ پلاز راضى نه وو ،دري كالو پوري رشته په خپل ځائي وه اوبيادجينئ والدوفات شو ،دوالددوفات نه پس په فريقينو كښي جهګړي شروع شوي.نيكه چه ئي كوم ځائي كښي رشته وركړي وه هغه انكاراوكړو اوفوراً ئي دنمسئ نكاح دخپل نمسى سره اوكړه ددي دپاره چه هرخاص اوعام ته پته اولګى چه رشته ختمه شوه نوسي ئي په وخت دنكاح كښي نابالغه وو .دجينئ دطرفنه نيكه ايجاب اوقبول اوكړو كومه چه ددي نمسى په نامه (كويژدن) وه.اوس مسئله داده چه د نابالغه جينئ نكاح ددي پلار يا نيكه اوكړى نوديته خياربلوغ نه وى.مګر چه نيكه ياپلار په سيئ الاختيار كيدل ثابت شى.نوايا په دي صورت كښي چه د نابالغه نمسئ نكاح د نوسى سره ئي اوكړه.بياڅه وخت پس دنمسى دتره لور سره ئي نكاح اوكړه آيا د نمسئ سره زياتي نه دي كه چري داسيئ الاختيارنه وى نودائي ولي كول چه هغه رشته دنمسئ دپاره بهتره نه وه مزيد تحقيق دادي چه جينئ مجبوره شوه عدالت ته لاړه.هغه په عدالت كښي حاضرنه شوعدالت يونيم كال پس يوطرفه فيصله دجينئ په حق كښي اوكړه.اوس ددي حالاتو پيش نظرجينئ خياربلوغ

﴿١﴾قال العلامة شمس الحق الافغانى: حكم القاضى على خلاف النص...... او على خلاف السنة المشهورة...... او على خلاف الاجماع...... باطل ولكل قاض نقضه اذا رفع اليه.
(معين القضاة والمفتيين ٦٨ الفصل السادس فى اقسام القضاء وما يرد منها)

﴿٢﴾قال الحصكفى: ولكن لهما اى لصغير وصغيرة خيار الفسخ ولو بعد الدخول بالبلوغ او العلم بالنكاح بعد...... بشرط القضاء للفسخ.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٢: ٣٣٢ باب الولى)



حاصلولي شى اوعدالتى فيصله شرعاجائزده؟بينوا توجروا

المستفتى: مشتاق احمد سنګهوئى جهلم........١٩٧٢ء١٠١١٣١

**الجواب:** كه چري داكس(زوج)داجينئ باقاعده نه آبادوى اونه ئي ازادوى اوپه دي بناء باندي حاكم مسلمان فسخ نكاح د(طلاق) فيصله كړي وى نو شرعًا دا جينئ آزاده شوي ده،بل ځائي كښي نكاح كولي شى﴿١﴾اوكه چري داتنسيخ دخياربلوغ په بناء باندي شوي وى نودنيكه سيئ الاختيارد غير معروف كيدلو په وجه نامنظوره ده ځكه چه نه دنوسي سره نكاح عقدكولو كښي څه سوء الاختيارموجوددي اونه ئي سابق نكاح كښي سوء الاختيارمعلوم دى.فى ردالمحتار٢: ٤١٨:والحاصل ان المانع هوكون الاب مشهورابسوء الاختيارقبل العقد فاذالم يكن مشهوربذلك ثم زوج بنته من فاسق صح الخ﴿٢﴾.وهوالموفق

﴿١﴾ وفى الحيلة الناجزة: زوجه متعنت له اول لازم دى چه په څه طريقه خاوند سره خلع وغيره اوكړى ليكن كه د ډيركوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شى نود سختي مجبورئ په حالت كښي په مالكى مذهب باندي دعمل كولو ګنجائش شته ځكه چه ددوى په نزد زوجه متعنت ته د تفريق حق ملاويږى،او صورت د تفريق دادي چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضى يا مسلمان حاكم ته اوددوى دنۀ موجود كيدوپه صورت كښي دمسلمانانو جماعت ته پيش كړى اوچاته چه پيش كړي شى هغه دشرعى شهادت وغيره ذريعي سره د معاملي پوره تحقيق اوكړى اوكه دښځي دعوٰى صحيح ثابته شى چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه وركوى نودهغي خاوند ته دي اووئيلي شى چه دخپلي ښځي حقوق اداكړه يا طلاق وركړه ګنى مونږ به ئي درنه جدا كړو ،كه ددي نه پس هم دغه ظالم په څه صورت باندي عمل اونه كړى نو قاضى يا شرعاً چه څوك دهغۀ قائم مقام وى طلاق دي واقع كړى.په دي كښي دڅه مودي انتظار اومهلت ته په اتفاق د مالكيه ضرورت نشته.
(الحيلة الناجزه ١٦٤ المرقومات للمظلومات حكم زوجه متعنت فى النفقة)

﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٣٣٠ قبيل مطلب مهم هل للعصبة تزويج باب الولى)

## د پلار دوکیل کړې د نکاح په وجې سره جینۍ

## ته د خیاربلوغ او د تنسیخ حق حاصل دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید په یوناحقه قتل کیس کښې گرفتارشوپه کوم کښې چه څلوروا قعي قاتلان اوزیدهسې هم بدنام وو. بالآخر دملزمانوورثاء دمقتول دوارثانوسره صلح او کړه. په صلح کښې دقاتلینوورثه ددرې جینکورشتې اوڅلورزره روپۍ باندې رضامند شول. درې دتې ماشومانو جینکوعقدنکاح ئې اوکړه اوورئې کړلې د زید د لورنکاح دهغه پنځه دیرش کالوعمرکس سره اوکړې شوه کوم چه دمقتول روراولوفر کس وودزیدپه اجازت باندې عقدنکاح اوکړي شووروسته پنځو ملزمانوته د سزائې موت حکم واورولې شو. څلورزره روپۍ خوثالث دورکولونه انکار اوکړو چه تادهوکه کړیده لهذادمقتول وارثان حقدارنه دی لیکن عقد خو وړاندې شوي وؤ. اوس لس پنځلس کاله پس دزیدلورځوانه شوله نوهغې دخپل عقدد تنسیخ اعلان اوکړو. اوس شرعی طورباندې مسئله پکار ده چه پلارئې کله دمرګ اوژوند کشمکش کښې مبتلاء وو اود دښمن په کورکښې د تی دماشومې جینئې عقداوکړوبله داچه یولوفر اوپه عمرکښې ددمره غټ تضاد باوجودصرف دخپل ځان دخلاصولودپاره اوددې مظلومې جینئ به هلته ذلت اوخواری نصیب شی ایاشرعاداعقددرست دي؟ آیا داجینئ بل ځائې کښې دعقدکولواوزندګې تیرولومجازده؟ ایا په پلار باندې په دې صورة کښې د سوء الاختیارمسئله نه جاری کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: خدابخش سرګودها........٢٧١٩١ء١٩٦٩

**الجواب:** چونکه داعقددپلاروکیل کړي دي اوپلارپه خپله نه دي کړې لهذا د خیاربلوغ په وجه سره حاکم(مسلمان)ددې نکاح تنسیخ کولې شی اوددې نه پس بل ځائې کښې نکاح کولې شی. فی الدرالمختار:وان کان المزوج غیرهما ای غیرالاب وجده ولوالام اوالقاضی اووکیل الاب.......لایصح النکاح من غیر



کفؤ......وبمهرالمثل صح،ولکن لهمااى لصغیر وصغیرة خیارالفسخ ولوبعد الدخول بشرط القضاء للفسخ انتهى مختصرا﴿١﴾وهکذا فی کتب الفروع.

**نوټ:**......چونکه دانکاح ددفع دفتنې دپاره دي لهذاددې وجې نه پلارسیئ الاختیارنه جوړیږی﴿٢﴾-وهوالموفق

## د عاقلې بالغې نکاح کښې د والدینو د عدم موجودګۍ

## په بناء باندې د عدالت د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که دجینئ اوددې د والدینو اوقریبی رشته دارانوپه رضامندئې اودګواهانوپه موجودګئې کښې په حکم دوالدجرګې ته دنکاح کولواجازت باوجودکه چرې اوس والدین دا اعتراض اوکړی چه دانکاح زمونږ په عدم موجودګئ کښې شوي ده نوایاددې وجې نه په عدالت عالیه کښې دتنسیخ نکاح شرعی لحاظ سره حق رسیږی؟

---

﴿١﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٣١،٣٣٢ مطلب مهم هل للعصبة تزویج الصغیر امرأة غیر کفئ له)

﴿٢﴾قال العلامة ابن عابدین: ان المانع هو کون الاب مشهورا بسوء الاختیار قبل العقد فاذا لم یکن مشهورا بذلک ثم زوج بنته من فاسق صح وان تحقق بذلک انه سیئ الاختیار واشتهر به عند الناس فلو زوج بنتا اخری من فاسق لم یصح الثانی لانه کان مشهورا بسوء الاختیار قبله بخلاف العقد الاول لعدم وجود المانع قبله...... قلت ومقتضی التعلیل ان السکران او المعروف بسوء الاختیار لوزوجها من کفئ بمهر المثل صح لعدم الضرر المحض ومعنی قوله والظاهر من حال الصاحی انه یتأمل ای انه لو فور شفقته بالابوة لا یزوج بنته من غیر کفئ او بغبن فاحش الا لمصلحة تزید علی هذا الضرر کعلمه بحسن العشرة معها وقلة الاذی ونحو ذلک الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٣٣٠،٣٣١ قبیل مطلب مهم هل للعصبة تزویج الصغیر)

چه هرکله ئي دګواهانوپه مخامخ ئي ددووکنالوزمکي مهرهم مقررکړي وو، همدارنګه دجينئ عمرکاغذی اوډاکټری دواړو لحاظ سره تقريبااتلس کاله وو؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوی محمدروشن کوکاروی.........۱۹۷۳ء

**الجواب:** دعاقلي بالغې په خپله مرضئ نکاح کول نافذاولازم ناقابل تنسيخ دي، اګرچه والدين راضی نه وی. فی الهندية ۱:۳۰۵ نفذنکاح حرة مکلفة بلاولی عندابی حنيفة وابی يوسف رحمهماالله تعالی کذافی التبين﴿۱﴾وفی الهندية ۲۹۳:۲ وينعقد نکاح الحرة العاقلة البالغة برضائهاوان لم يعقد عليها ولی الخ﴿۲﴾ والمسئلة واضحة.وهوالموفق

## د صغيرې د پلار د فسخ نکاح د اختيار په باره کښې د حيله ناجزه د عبارة وضاحت

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه حيلة الناجزه ۱۴۸ باندې خزانة المفتيين په حواله ليکلې دې چه..دصغيرې پلارته دنکاح فسخ کولواختيارشته دې کله چه دته معلومه شی چه هغه نان نفقه اود مهر معجل ورکولونه قاصردې يادته يعنې پلارته ددې ګمان اوشی چه هغه به قاصروی دنان نفقې اومعجل نه..اوس ددې فسخ کولودپاره به پلار ازروئ شرع کوم طريقه اختياروی دجواب نه موخبرکړې؟ بينوا توجروا

المستفتي:مولاناحافظ ګل رحيم جامع مسجداډه ضلع صوابی ۱۹۷۴ء۵/۱۵

**الجواب:** ددې مقصددادې چه والدحاکم يادجماعت علماء په وساطت سره نکاح باقاعده فسخ کولې شی په خپله ئي نه شی کولې﴿۳﴾-وهوالموفق

---

﴿۱﴾(فتاوی عالمګيرية ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولياء)

﴿۲﴾(هدايه ۲:۲۹۳ باب فی الاولياء والاکفاء)

﴿۳﴾☆وفی الهندية: ولا يکون التفريق بذلک الا عند القاضی اما بدون فسخ القاضی فلا تنفسخ النکاح بينهما وتکون هذه فرقة بغير طلاق حتی......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د والدينو د نابالغو کړې شوې نکاح ناقابل فسخ دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه ديونابالغې جينئ نکاح ددې پلارديونابالغه هلک سره اوکړې،دهلک اوجينئ دطرفنه ايجاب او قبول ددواړووالدين اوکړې،اوس ددواړووالدين غواړې چه دانکاح باقی پاتې نه شی.هلک اوجينئ اوسه پورې نابالغ دې ايا په دې صورت کښې د هلک پلارته داحق حاصل دې چه دخپل نابالغ ځوئ د طرفنه نابالغه جينئ ته طلاق ورکړې يائې فسخ کړې؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرحيم پيش امام مسجدمياں خانی مايارمردان ۱۹۷۳ء۲۶/۳/۱

**الجواب:** دانکاح دفسخ قابله نه ده.فی الهندية(۱:۳۷۶)لايقع طلاق الصبی وان کان يعقل﴿۱﴾وفيها ايضا(۱:۵۲۹)اذاخالع الاب علی ابنه الصغير لايصح ولا يتوقف علی اجازته کذافی فتاوی قاضی خان﴿۲﴾وفی ردالمحتار(۲:۵۸۵)قوله الطلاق لمن اخذبالساق کناية عن ملک المتعة انتهی﴿۳﴾ولاملک للاب، فافهم. وهوالموفق

---

(بقيه حاشيه) لو لم يکن الزوج دخل بها فلا شيئ لها من المهر. (فتاوی عالمګيرية ۱:۲۹۲ الباب الخامس فی الاکفاء)

:: وفی الحيلة الناجزة: په دې ټولو صورتونوکښې دښځې خلاصولو دپاره شرعی صورتونه جدا جدا دی چه دا به تفصيل سره ليکلې شی ليکن په دغه ټولو کښې دا خبره مشترک ده چه په دې آزادولوکښې ښځه يا دهغې اولياء خود مختاره نه دی بلکه قضاء د قاضی شرط ده يعنی ضروری ده چه ښځه خپله مقدمه د قاضی په عدالت کښې پيش کړې او قاضی د باقاعده شرعی تحقيق نه پس د تفريق وغيره حکم اوکړې.(حيله ناجزه ۱۴۸ مقدمه فسخ نکاح)

﴿۱﴾(فتاوی عالمګيرية ۱ : ۳۵۳ فصل فيمن يقع طلاقه وفيمن لا يقع طلاقه)

﴿۲﴾(فتاوی عالمګيرية ۱ : ۵۰۴ قبيل الباب التاسع فی الظهار)

﴿۳﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۲۲ قبيل مطلب فی طلاق المدهوش)

## د مهرنه اداکولو په وجه باندې ښځې ته د تنسیخ نکاح حق حاصل نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو ښځه دخاوند سره آباده وی او مبلغ پنځه زره روپئ مهر مقرر شو. او ددې اداکول هم او نه شول. ښځې دعوی او کړه چه ماته دې مهر راکړې شی او یادې په بل ځائې کښې دنکاح کولو حکم راکړې شی. دادشپږ کالونه دخپل مورپلار په کور کښې غیر آباده ده داسې ښځې ته ددویمې نکاح کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد احمد...... ۲۱۴۱،۱۹۷۴

**الجواب:** چونکه دامهر معجل نه دې. لهذا دطلاق یامرګ نه وړاندې په خاوند باندې اداکول ضروری نه دې. لمافی الهندیة ۱: ۳۳۹ وان کان لاالی غایة معلومة فقد اختلف المشائخ فیه قال بعضهم یصح وهوالصحیح وهذالان الغایة معلومة فی نفسها وهوالطلاق اوالموت﴿۱﴾ پس ددې ښځې دپاره دمهردوجې نه دتنسیخ نکاح حق حاصل نه دې- وهوالموفق

## د نکاح په وخت. په عدالت کښې بلا خلع د فسخ نکاح.. شرط لګولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید دزینب سره نکاح اوکړه او په سټامپ کښې ئې اولیکل که چرې زمونږ په مینځ کښې نالګی راغله نو رجوع عدالت ته کولو سره زینب بلاخلع د فسخ نکاح حق لری. اوس بغیر دنالګئ نه زینب رجوع عدالت ته کړې دفسخ نکاح حکم ئې اخستې دې ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مقبول الرحمن هزاره...... ۲۹۱۱۲۱،۱۹۷۵

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۱۸ الفصل الحادی عشر فی منع المرأة نفسها بمهرها الخ)



**الجواب:** بشرط صدق مستفتی داتنسیخ دبلاوجې نه شرعادرست نه دې﴿۱﴾- وهوالموفق

## د جنازې د مونځ نه د منکر او د لوفر خاوند نه نکاح فسخ کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زما واده فلان بن فلان سره اوشوه. ده او دده کوروالاؤ زما سره ناروا سلوک شروع کړل. کله چه زه مونځ کوم نو هغه ماته وائی چه زه کمیونسټ یم زما په مخ کښې مونځ مه کوه. زما دخیتې نه مړبچې هسپتال کښې پیدا شو ما اوئیلې چه دمړبچې جنازه نشته دې بیاده او وئیلې چه کمیونسټ یم زما په مخ کښې دجنازې دمونځ ذکر مه کوه. ددې نه علاوه زما خاوند دشپې خانته کمره کښې غلطو خلقو سره دقوم لوط په فعل کښې مصروفه وی. په دې حالاتو کښې څما نکاح دده سره برقراره ده یا خود بخود ختمه شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مسماة...... سټیلایټ ټاؤن راولپنډی...... ۱۷\شعبان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** که چرې داخاوند انکاری نه وی نو ستادده سره نکاح ختمه شوې ده﴿۲﴾ (البته دقانونی خطراتو نه دبچ کیدلو دپاره حاکم ته مرافعه ضروری ده) وهوالموفق

## د بې غیرته خاوند سره اوسیدل حرام او تختیدل ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو بدکردار کس دې

﴿۱﴾ قال الشیخ سلیم رستم باز: المعلق بالشرط یجب ثبوته عند ثبوت الشرط ای اذا علق بالشرط یلزم ثبوت المعلق به مثلا اذا قال لآخر انا ضامن مالک اذا سرقه فلان فمتی ثبت الشرط ای السرقة یثبت المعلق به ای الضمان.

(شرح المجلة لرستم باز ۱: ۵۴ المادة: ۸۲).

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ارتد احد الزوجین عن الاسلام وقعت الفرقة بغیر طلاق فی الحال قبل الدخول وبعده. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۳۹ الباب العاشر فی نکاح الکفار)

او خپلې ښځې باندې جبرزناکوی ښځې کافی منت اوزاری اوکړل چه د خدائې نه اووېرېږه زه ددلت رزق نه غواړم مادعذاب الهی نه بچ کړه، مګرهغه خاوند یوخبره هم نه منی، دخاوندڅه حلال کاروبارنشته دې اونه څه مزدوری کوی ښځه ددې بې غیرته اوذلیل نه اوتختیده دیورشته دارپه کورکښې ناسته ده او س دابنځه دیوشریف انسان سره واده کول غواړی لیکن بې غیرته خاوند طلاق نه ورکوی نوایاددې خاوند (کوم چه ښځه چلوی په بدچلنی باندې ئې مجبوره وی) سره ددې ښځې نکاح باقی ده؟بینوا توجروا

المستفتی: عزیزخان خیبربازارپشاور.......١٩٧٧ء١٨١٣٠

**الجواب:** دې ښځې ته ددې خاوندسره اوسیدل حرام دی اوددې خاوندنه تختیدل ضروری دې اودابنځه بغیر دطلاق نه یابغیردتنسیخ نکاح نه بل ځائې کښې نکاح نشی کولې په ګناه اوزناسره نکاح نه ماتیږی ﴿١﴾-

وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال الشیخ عزیزالرحمن الدیوبندی: هرکله چه داسړې دومره شریرالنفس او ظالم او بدکاردې (یعنی په بدفعلئ اوکسب کولو باندې مجبوره کوی) کوم چه په سوال کښې ذکردی او سائله په معصیت باندې مجبوره کوی نوپه مذکوره حالت کښې دهغهٔ سره اوسیدل پکارنه دی.او داسې ظالم اوفاسق سره اوسیدلو باندې شریعت نه مجبوره کوی البته دهغهٔ (خاوند) د طلاق ورکولو نه بغیر دنکاح ماتیدلو اود بلې نکاح کولو د جواز هیڅ صورت نشته.پس چه هرڅنګه وی د حکام وغیره په ذریعه په هغهٔ باندې زور راوستلې شی اوپه زبردستئ سره په هغهٔ طلاق ورکړې شی د طلاق او عدت تیرولو نه روسته دویمه نکاح صحیح ده.

(فتاوٰی دارالعلوم دیوبند ٢٤٩: ١٠ باب سیزدهم، د نامرد مجنون وغیره احکام)

........



# فصل فی تفریق زوجة مفقود الخبر والمجنون وغیره

## د مفقود الخبر د ښځې د پاره د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس دڅلورکاله اووه میاشتونه مفقوددې دډیرتالاش نه پس اوسه پورې دهغه څه پته اونه لګیده، اوټول رشته دارئې نا امیده شوي دی، دمفقودیوځوئ اوځوانه ښځه هم شته، اوښځې مطالبه کړې ده چه یازماخاوندپیداکړئ، یازه په خپل اختیار دویم واده کول غواړم دمفقودرشته دارهم تنګ راغلی دی اوښځه هم هغوئ تنګوی لهذاددې باره کښې شرعی حکم څه دې؟بینوا توجروا

المستفتی: عصمت الله ناوګئ ١٩٧٥ء١١١٢٨

**الجواب:** که چرې دابنځه دنفقې انتظام نه شی کولې، یاپه عصمت باندې ویریږی نود مسلمان حاکم (جج) په ذریعه تنسیخ نکاح کولې شی، په داسې طریقه چه مسلمان حاکم باقاعده دتفتیش نه پس دیته دکم ازکم دیوکال زیات انتظار حکم ورکړی اوداهم ظاهره کړئ چه په دې زیات وخت کښې دمایوسئ په صورت کښې (دیوکال تیریدونه پس) دعدت نه پس نکاح کولې شی اوداظاهره کړی چه نکاح ماتنسیخ کړیدې، والتفصیل فی الحیلة الناجزة﴿١﴾.وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة اشرف علی التهانوی: د مفقود دښځې دپاره د نورو څلورو کالو د انتظار حکم په دې صورت کښې خو بالاتفاق ضروری دې کله چه ښځه دومره مودې پورې صبر او برداشت او پاکدامنئ سره تیرولې شی لیکن که دا صورت ممکن نه وی یعنی ښځه د ابتلاء خطره ښکاره کړی اوهغې یوې اوږدې مودې پورې د مفقود د انتظارکولو نه پس مجبوره کیدو..(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مفقودالخبر د ښځې په فسخ نکاح کښې د شرائطو رعایت ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیو جینئ نکاح د ماما دځوئ سره شویوه واده ئې په کم عمر کښې شوې وو هغه هلک بیاد سخرګنئ سره اوسیدلو څه وخت پس دغه هلک دخپلې منکوحې ښځې خور اوتختوله لیکن هغه جینئ په لاره کښې اونیولې شوه او واپس راغله څه وخت پس هغه هلک واپس راغلو چه زما ښځه ماسره اولیګئ ګینې ماسره دخپلې جینئ فیصله اوکړې، نو دجینئ پلار او وئیل چه زمونږه تاسره دفیصلې ضرورت نشته دې مونږ په عدالت فیصله کړې ده. فیصله داسې شوې وه چه دجینئ والو چیئرمین یونین کونسل ته درخواست ورکړو چه زمونږ لور ډیرې زمانې نه غیر آباده ده او ددې خاوند دکله نه ورک شوې دې، چیئرمین قاضی صاحب ته دفیصلې لیکلو او وئیل قاضی صاحب دهلک دتلاش کولو او وئیل اوکه چرې دتلاش نه پس هلک ملاؤنه شو نو په عدالت کښې به نکاح فسخ کړې شی، څه زمانه پس دجینئ والا دقاضی خواته لاړل چه هلک مونږه تلاش کړو لیکن مونږ ته ملاؤنه شو. قاضی صاحب عدالت ته ولیکل چه هلک ددمره وخت نه ورک دې نو ددې وجې نه دې نکاح فسخه کړې شی. عدالت نکاح فسخه کړه اوس چونکه زه دنکاح رجسټراریم دازماخواته راغلو چه نکاح رجسټرډ کړه. ما او وئیل چه زه دامسئله نه منم دې وجې نه زه دنکاح مجلس ته نه راځم او نه نکاح رجسټرډ کوم او نکاح دمحلې امام اوتړله. اوس دمحلې خلق

(بقیه حاشیه)...... سره په دې حالت کښې درخواست ورکړې وی چه د صبر نه عاجزه شوه نو په دې صورت کښې ددې ګنجائش هم شته چه د مالکیه مذهب موافق د څلورو کالو په موده کښې کموالې اوکړې شی ځکه چه کله د ښځې د ابتلاء سخته خطره وی نو ددوی په نزد کم ازکم د یو کال صبر نه پس تفریق جائز دې...... لیکن چرته چه د قوی قرائنو نه په زنا کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی نو د یو کال په قول باندې هم حاکم له دحکم ورکولو ګنجائش شته خو معامله دالله تعالی سره ده بهانه دې تلاش نه کړې شی.

(الحیلة الناجزة ۷۱ اندیشه ابتلاء کی وقت ایک مزید وسعت)



وائی چه دې امام پسې مونځ نه کیږی، ځکه چه نکاح نه ده فسخه شوې ترڅو پورې چه خاوند طلاق ورنه کړی، بیا دیونین کونسل دطرفنه ماته حکم ملاؤشو چه نکاح رجسټرډ کړه، ما نکاح رجسټرډ کړه، ایاپه ما باندې څه شرعی حکم عائد کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد امین کیملپور...... ۱۹۷۴ء۱۷۱۰۲

**الجواب:** واضحه دې وی چه اولا داهلک مفقود نه دې ثانیا په دې فسخ کښې د شرائطو رعایت هم نه کړې شوې، مثلا کم ازکم یو کال نه زیات انتظار کول«۱» لهٰذا په جینئ والو ضروری ده چه دغه هلک په خلع باندې راضی کړی ددې نه مخکښې په نکاح کښې کوم قسم اعانت کول اګرچه قانونی طور باندې جائز دې لیکن داسلامی اصولو په بناء باندې ناجائز دی، او ضروری ده چه دالله تعالی نه معافی طلب کړی- وهو الموفق

## زوجه مفقودالخبر کښې قضاءِ قاضی یا د علماء جماعت ضروری دې په فتوی باندې اکتفاء کافی نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس دلسو کالو نه د محنت او مزدورئ دپاره دکورنه وتلې دې او اوسه پورې واپس رانغلو، د

«۱» قال العلامة شمس الحق الافغانی: المفقود غائب لم تدر حیاته ولا موته کما فی البحر وهو حی فی حق نفسه لا تتزوج امرأته...... عن ابی حنیفة ان مدة الفقد مفوض الی رأی القاضی فیحکم بما ادی الیه اجتهاده فیقسم ماله حینئذ بین الاحیاء من ورثته فتاوٰی انقروی واختار الزیلعی تفویضه للامام قال فی الفتح فای وقت رأی المصلحة حکم بموته قال فی النهر وفی الینا بیع قیل یفوض الی رأی القاضی ولا تقدیر فیه فی ظاهر الروایة کذا فی ردالمحتار...... وتعتد زوجة المفقود بعد مضی اربع سنین عند مالک وهو مذهب الشافعی القدیم...... قال القهستانی لو افتی بقول مالک فی موضع الضرورة لا بأس به علی ما اظن (من المحل المذبور).

(معین القضاة والمفتیین ۸۸ الفصل الرابع عشر فی زوجة مفقود)

پاکستان په کوټ کوټ کښې دده کلک تالاش اوکړې شومګرپته ئې اونه لګیده،دده په جائیداد باندې هم بل وارث قابض دې ښځه دځوان عمروالاده دخواهشاتونفسیانی اونان نفقې نه مجبوره ده دحراموادارتکاب احتمال غالب دې آیا شرعًادې ښځه لاره کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...................... ۱۹۲۸ء\۱۱\۲۲

**الجواب**: بتوفیق الملک الوهاب هواعلم بالصواب:شرعاداول نه اختلاف بین الائمة المجتهدین واقع دې،په مذهب حنفیه کښې ښځه لاره نشته ځنګه چه د حضرت علی رضی اللہ عنہ قول دې چه دهغې مؤید حدیث شریف دې مګرد محدثینو په نزد ددې سندضعیف دې کوم چه دهدایه په حاشیه باندې مفصل تشریح شوې دې اوموده اویااونوی کاله دی،په مسلک د امام مالک باندې فتوی حاصلولې شی چه د قاضی دحکم نه پس عدت تیرکړی او بل ځائې کښې نکاح اوکړی نجات حاصلولې شی.هدایة ۲:۶۰۲ وقال مالک اذامضی اربع سنین یفرق القاضی بینه وبین امراته تعتدعدة الوفات ثم تزوج من شاء ت لان عمر هکذا قضی فی الذی استهواه الجن بالمدینة وکفی به اماما الخ،اودامام مالک رحمۃ اللہ علیہ نه طاؤس روایت کوی،ان عمربن الخطاب قال ایماامراة فقدت زوجها فلم تدراین هوفانهاتنظراربع سنین ثم تعتداربعة اشهروعشراثم تحل للازواج، اومحمدبن عبدالباقی ددې په شرح کښې لیکی:وروی نحوه عن عثمان وعلی قیل واجمع الصحابة علیه ولم یعلم لهم مخالف فی عصرهم وعلیه جماعة من التابعین،دامام مالک رحمۃ اللہ علیہ په مذهب باندې دافتوی ضرورة جائز ده، په جامع الرموز۴۶۸ کښې دی:وقال مالک والاوزاعی الی اربع سنین فینکح عرسه بعدها کمافی النظم فلوافتی به فی موضع الضرورة،ینبعی ان لاباس به علی ماالظن،اوردالمحتارحاشیه درمختارکښې دی:ذکرابن وهبان فی منظومة انه لوافتی بقول مالک فی موضع الضرورة یجوز،اوپه فتاوی عبدالحئ ۱:۱۳۹ کښې فتوی ورکړې ده دمفقودالخبرپه موت باندې په موجب د مسلک دامام مالک په دې کښې اختلاف بین الصحابة والتابعین وبین الائمة المجتهدین شوې دې نوپه صورت



مجبورئ کښې په قول دحضرت عمر رضی اللہ عنہ په مذکوره صورت کښې ښځه وخته پورې تفتیشات اوبیادورکیدوپه شهادت باندې جائز ده چه دویم خاوندنکاحاحاصل کړی،دفیصله شرعی نه بغیر نکاح هرګز جائز نه ده،په دې باندې زیات حکومت اسلامی. فقط

کتبه..........محمدمرتضٰی مولیا.........۲۸\۱۱\۲۲

الجواب صحیح: لانه جازالافتاء عندالضرورة بمذهب مالک وغیره صرح به العلامة الشامی وغیره﴿۱﴾ لکن لابدمن قضاء القاضی المسلم اوحکم جماعة العلماء وعامة المسلمین،ولایصح الاکتفاء بالافتاء وتفصیل المسئلة مسطورفی الحیلة الناجزة فلیراجع الیها﴿۲﴾.وهوالموفق......محمدفریدعفی عنه

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: لقول القهستانی لو افتی به فی موضع الضرورة لا بأس به علی ما اظن...... وقد قال فی البزازیة الفتویٰ فی زماننا علی قول مالک وقال الزاهدی کان بعض اصحابنا یفتون به للضرورة...... لکن قدمنا ان الکلام عند تحقق الضرورة حیث لم یوجد مالکی یحکم به.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۶۲ کتاب المفقود)**

﴿۲﴾ وفی الحیلة الناجزة: مالکیه په نزد د مفقود دښځې دپاره د مفقود د زوجیت نه آزادولو دپاره په دارالاسلام کښې خودا صورت دې چه ښځه د قاضی په عدالت کښې مرافعه پیش کړی او د شرعی شهادت په ذریعه دا ثابته کړی چه زما نکاح فلانی سړی سره شوې وه........ کما فی المنتقی للباجی المالکی......ددې نه پس ګواهانو سره دهغهٔ (خاوند) لاپته کیدل ثابته کړی.ددې نه پس دې قاضی پخپله هم د مفقود تفتیش اوتلاش اوکړی......د مفقود ښځه په هیڅ صورت کښې دنکاح نه خارجیدو کښې خود مختاره نه ده، بلکه په هرحال کښې قضاء د قاضیٰ شرط ده......اوکه مسلمان حاکم موجود نه وی.....نوبیا د مالکی مذهب موافق د دینداره مسلمانانو یو جماعت مشری اوکړی اود مذکوره بیان مطابق دې تحقیق اوکړی اود کامل تحقیق نه پس دې فیصله اوکړی نودا فیصله به هم د قاضی د قضاء په حکم کښې وی،الخ.(الحیلة الناجزة ۶۲، ۶۴ حکم زوجه مفقود)

## په افغان جنګ کښې د مفقود مجاهدینو د ښځو د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه څه مجاهدین په محاذ جنګ افغانستان کښې په محاصره کښې راغلل یاشهیدان شول دشپږ اوؤه کالونه مفقود دی ددوئ ښځې په کورونو کښې موجودې دی ایاد ښځې بل ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمود حقانی افغانستان...... ۱۴/۱۲/۱۹۸۷ء

**الجواب:** ددې خاوندانو ښځې دضرورت په وخت کښې (یعنی دخوف زنایا دخوف د نفقې) مسلمان حاکم یادباا ثرعلماء په وساطت سره تنسیخ نکاح کولې شی(۱) وهومذهب مالک وجازعلیه الفتوی کما فی ردالمحتارباب المفقود(۲). وهوالموفق

## په جهاد افغانستان کښې د مفقود الخبر مجاهدینو د ښځو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین په حق د مجاهدینو د افغانستان کښې چه په صفوف دجنګ کښې دکفاروسره په معرکه کښې مفقودشوي دی او اوسه پورې ئې دمرګ اوژوند حالت معلوم نه دې اوغالبه داده چه ددهریانو دظلم په وجه سره مړه شوې دی اوس ددوئ دښځو دنکاح څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدرسول مجاهداکوړه مهاجرکیمپ...... ۱۲/۱۰/۱۹۸۵ء

**الجواب:** په دې صورت کښې پس دحاکم نه په مرګ ددې مفقود، په دې مفقود باندې احکام دمړی جاری کیږی. کمافی ردالمحتار۳: ۴۵۷ ومقتضاه انه یجتهد ویحکم القرائن الظاهرة الدالة علی موته الخ(۱). وهوالموفق

## د سقوط مشرقی پاکستان په وخت د مفقود ازواج د ښځو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دسقوط مشرقی پاکستان په وخت کوم فوجیان چه هلته ورک شوی دی اوس خوټول قیدیان واپس شوې دی اوددې ورک شویو فوجیانونومونه حکومت دشهداء په فهرست کښې درج کړې دی اودته ئې پنشن جاری کړې دې ددې مفقود الخبر فوجیانو ښځې دویمه نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدسعیدشاه شکری علی خیل کرک...... ۱۲/۱۰/۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا ښځې دمسلمان حاکم یاد څو با اثره علماؤپه ذریعه باندې فسخ نکاح(حکم بالموت)حاصلولې شی کله چه حکم ورکونکی دباقاعده تالاش کولو نه پس فیصله اوکړی. یدل علیه مافی ردالمحتار۳: ۳۳۱ ومقتضاه انه یجتهد ویحکم بالقرائن الظاهرة الدالة علی موته وعلی هذاینبتنی مافی جامع الفتاوی حیث قال واذا فقد فی المهلکة فموته غالب فیحکم به کما اذافقدوقت الملاقاة مع العدو، قال العلامة الشامی لکن لایخفی انه لابدمن مضی مدة طویلة حتی یغلب

---

(۱) قال الشاه اشرف علی التهانوی: که چرې ښځه د ابتلاء خطره ښکاره کړی اوهغې یوې اوږدې مودې پورې د مفقود د انتظارکولو نه پس مجبوره کیدو سره په دې حالت کښې درخواست ورکړې وی چه د صبر نه عاجزه شوه نوپه دې صورت کښې ددې ګنجائش هم شته چه د مالکیه مذهب موافق د څلورو کالوپه موده کښې کموالې اوکړې شی ځکه چه کله د ښځې د ابتلاء سخته خطره وی نو ددوی په نزد کم ازکم د یو کال صبر نه پس تفریق جائزدې. کما فی الروایة الثانیة من فتوی العلامة الفاهاشم ...... لیکن چرته چه د قوی قرائنو نه په زنا کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی نود یو کال په قول باندې هم حاکم له دحکم ورکولو ګنجائش شته.(الحیلة الناجزة ۷۱ فائده)

(۲) قال العلامة الشامی: وقال فی الدرالمنتقی لیس باولی لقول القهستانی لو افتی به فی موضع الضرورة لا بأس به علی ما اظن ...... وقد قال فی البزازیة الفتویٰ فی زماننا علی قول مالک وقال الزاهدی کان بعض اصحابنا یفتون به للضرورة الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۶۲ مطلب فی الافتاء بمذهب مالک فی المفقود)

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳۶۳ مطلب الافتاء بمذهب مالک فی زوجة المفقود)

على الظن موته لابمجرد فقده عندملاقاة العدواخ(۱) اوددې حکم نه پس دې عدت وفات تیرکړی دويمه نکاح کولې شی(۲)-وهوالموفق

## د مفقود الخبر ښځې ته د مسلمان حاکم په ذریعه د حکم بالموت حاصلولو فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس په مشرقی پاکستان (بنګله دیش) په مخکښې جنګ کښې ورک شوې دې ددې نه مخکښې هغه په باقاعدګئ سره کله کله کورته تلو راتلواو خطونه ئې هم لیکل دې ځائې نه دده په تالاش کښې خلق هم لاړل مګرهلته ئې دنشت والې نه علاوه هیڅ اونه لیدل. اوس په داسې جنګ کښې په کوم کښې چه دعام مغربی پاکستان خلقوقتل مقاتله وی. په دې صورت کښې ښځه بل ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل عظیم جهلم.......۱۹۷۵ء۱۱\۲۱

---

{۱} (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳٦۲ کتاب المفقود)

{۲} قال العلامة شمس الحق الافغانی: عن ابی حنیفة ان مدة الفقد مفوض الی رأی القاضی فیحکم بما ادی الیه اجتهاده فیقسم ماله حینئذ بین الاحیاء من ورثته فتاویٰ انقرویة، واختار الزیلعی تفویضه للامام قال فی الفتح فای وقت رأی المصلحة حکم بموته قال فی النهر وفی الینا بیع قیل یفوض الی رأی القاضی ولاتقدیر فیه فی ظاهر الروایة کذا فی ردالمحتار...... وتعتد زوجة المفقود بعد مضی اربع سنین عند مالک وهو مذهب الشافعی القدیم...... وعند احمد ان کان یغلب علی حاله الهلاک کمن فقد فی الصفین او فی مرکب قد انکسر او خرج لحاجة قریبة فلم یرجع فهذا بعد اربع سنین یقسم ماله وتعتد زوجته بخلاف ما اذا لم یغلب کالمسافر لتجارة او سیاحة فانه یفوض الی رأی الحاکم فی روایة...... قال القهستانی لو افتی بقول مالک فی موضع الضرورة لا بأس به علی ما اظن (من المحل المزبور).

(معین القضاة والمفتیین ۸۸ الفصل الرابع عشر فی زوجة المفقود)



**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دمسلمان حاکم دحکم بالموت یادحکم طلاق نه وړاندې دامنکوحه دا بل ځائې کښې نکاح نه شی کولې. لان هذا المفقود لم یبلغ سبعین سنة ومافقدفی المهلکة کمااذافقدفی وقت الملاقات مع العدووقال العلامة الشامی فی حقه: لایخفی انه لابدمن مضی مدة طویلة حتی یغلب عن الظن موته لابمجردفقده عندملاقات العدواوسفر البحر ونحوه (ردالمحتار۳: ٤۵۸) {۱} واماتطلیق الحاکم فبناء علی الافتاء بمذهب الامام مالک عندالضرورة {۲}. وهوالموفق

---

{۱} (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳٦۳ کتاب المفقود)

{۲} قال العلامة محمد امین: لقول القهستانی لو افتی به فی موضع الضرورة لا بأس به علی ما اظن...... وقد قال فی البزازیة الفتویٰ فی زماننا علی قول مالک وقال الزاهدی کان بعض اصحابنا یفتون به للضرورة...... لکن قدمنا ان الکلام عند تحقق الضرورة حیث لم یوجد مالکی یحکم به.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳٦۲ کتاب المفقود مطلب الافتاء بمذهب مالک)

☆ وقال العلامة عبد الحیٔ اللکنوی: عمل کرده شود (برمذهب امام مالک) فی جامع الرموز: وقال مالک والاوزاعی الی اربع سنین فینکح عرسه بعده کما فی النظم فلو افتی به فی موضع الضرورة ینبغی ان لا بأس به کما اظن انتهیٰ، وفی تعالیق الانوار علی الدر المختار: نعم مذهب مالک والقدیم من مذهب الشافعی تقدیره باربع سنین لکن فی حق عرسه لا غیر فینکح بعدها کما فی النظم فلو افتیٰ به فی موضع الضرورة ینبغی ان لا بأس به علی ما اظن کما فی القهستانی، انتهیٰ، وفی حسب المفتیین: قول مالک معمول به فی هذه المسئلة وهو احد قولی الشافعی ولو افتی الحنفی فذلک یجوز فتواه لان عمر رضی الله عنه قضیٰ هکذا فی الذی استهوته الجن بالمدینة و کفی به اماما ولانه منع حقها بالغیبة فیفرق القاضی بینهما بمضی هذه المدة اعتبارا بالایلاء فی العدد وبالعنه فی السنة عملا بالشبهین انتهیٰ.

(مجموعة الفتاویٰ علی هامش خلاصة الفتاویٰ ۴: ۴۳۷ کتاب المفقود)

## د مفقود الخبر خاوند په باره کښې د مسلمان حاکم د فیصلې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس د څلورو کالو نه ورک دې ددې کس ښځه اوبچې هم دې ددېر کوشش باوجود هم ورک دې اوس ښځه وائی چه زه ددویم خاوند سره واده کؤم مقامی علماء دیونیم کال نور انتظار کولو ووئیل مګر ښځه وائی چه زه نکاح کول غواړم، ایا په دې صورت کښې څه شرعی جوازشته؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی نورالحق باړه پشاور.......۸/۱۱شعبان ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** دا ښځه دې حکومت ته مرافعه اوکړی اوحکومت دې باقاعده دتفتیش نه پس کله چه مایوسه شی نودې ښځې ته دې کم ازکم دیوکال انتظارحکم اوکړی اویادې حالاتسنیخ نکاح اوکړی په حالت اولی کښې دې دیوکال ختمیدو نه پس عدت دوفات تیرکړی اوپه دویم صورت کښې دې عدت د طلاق تیرکړی اوبل ځائې کښې دې عقدنکاح اوکړی﴿۱﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دمالکیه په نزد د مفقود دښځې دپاره د مفقود د زوجیت نه آزادولو دپاره په دارالاسلام کښې خودا صورت دې چه ښځه د قاضی په عدالت کښې مرافعه پیش کړی او د شرعی شهادت په ذریعه دا ثابته کړی چه زما نکاح فلانی سړی سره شوې وه........ددې نه پس ګواهانو سره دهغهٔ (خاوند) لاپته کیدل ثابته کړی.ددې نه پس دې قاضی پخپله هم.د مفقود تفتیش اوتلاش اوکړی اوکله چه د پتې ملاویدو نه مایوسه شی نوښځې ته د نورو څلورو کالو دانتظار حکم ورکړی بیا که په دې څلورو کالو کښې دننه هم د مفقود پته اونه لګی نو مفقود به ددې څلورو کالو مودې ختمیدو باندې مړ تصور کولې شی.او ددې څلورو کالو تیریدو نه پس به څلورمیاشتې او لس ورځې د وفات عدت تیرولو سره به ښځې ته بل ځائې کښې د نکاح کولواختیاروی......فائده: که چرې دا صورت ممکن نه وی یعنی ښځه د ابتلاء خطره ښکاره کړی اوهغې یوې اوږدې مودې پورې د مفقود د انتظارکولو نه پس مجبوره کیدو سره په دې حالت کښې درخواست ورکړې وی چه د صبر نه عاجزه شوه نوپه دې صورت کښې ددې ګنجائش هم شته چه د مالکیه مذهب موافق د څلورو کالوپه موده کښې کموالې اوکړې شی ځکه چه کله د ښځې د ابتلاء سخته خطره وی نو ددوی په نزد...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د مفقودالخبر په باره کښې ظاهرالروایت او په مذهب د امام مالک باندې د فتوٰی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوښځې خاوند چرته ورک شوې دې ددې ښځې دنکاح په باره کښې زمونږ په مذهب کښې مفتٰی به قول کوم دې؟ اوپه دې مسئله کښې دامام مالک مذهب اختیارول څنګه دی یعنې دهغه په مذهب باندې فتوی ورکول ضروری دی اوکه نه د ضرورت په وخت کښې پرې فتوی ورکړې شی؟دامسئله په دلیل سره اولیکئ مهربانی به مووی؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولاناعبدالقاهربندرروډپشین بازارکوئټه....۲۰/۸/۱،۱۹۷۷

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم: دالسلام علیکم نه پس واضحه دې وی چه تاسوددې سوالاتوتفصیلی جوابات په حیله ناجزه کښې اوګورئ﴿۱﴾ مختصر طورباندې زه هم څه لیکمه.هغه دادې چه دمفقود متعلق ظاهر الروایت موت الاقران دې. کمافی شرح التنویرفی باب المفقودبل یوقت قسطه الی موت اقرانه فی بلده علی المذهب﴿۲﴾الی آخر کلامه،که چرې تعین دمودې وی نو اویا کاله(دپیدائش دورځې نه)ارجح دې په نسبت دنوروقوالو، کمافی ردالمحتار: وقدره ابن الهمام بسبعین للحدیث لانهاية هذاالغالب﴿۳﴾اودضرورت

(بقیه حاشیه).....کم ازکم د یوکال صبر نه پس تفریق جائزدې،که چرې تفریق ددې قاعدې موافق اوکړې شی نوددې خبرې خیال ساتل ضروری دی چه دا تفریق به طلاق رجعی وی اوپه دې صورت کښې به د مفقود ښځه د وفات د عدت په ځائې د طلاق عدت درې حیضه تیروی.(الحیلة الناجزة ۶۲، ۷۱ حکم زوجه مفقود)

﴿۱﴾(الحیلة الناجزة ۵۲ زوجه مفقود کا حکم)

﴿۲﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۳۶۲ مطلب الافتاء بمذهب مالک فی زوجة المفقود)

﴿۳﴾(ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳۶۳ مطلب الافتاء بمذهب مالک باب المفقود)

په وخت یعنی کله چه دښځې دنفقې څه انتظام نه وی یابغیر دخاوند نه په گناه کښې دابتلاء ظن غالب وی نوپه مذهب غیربانډې فتوی جائزده، وفی ردالمحتار: وقال الزاهدی کان بعض اصحابنایفتون به للضرورة الخ﴿۱﴾ (۳۳۰:۳) اودفتوی ورکولونه پس به دې دیته مذهب حنفی وئیلې شی فافهم﴿۲﴾.وهوالموفق

## د مفقود الخبر د ښځې د پاره د انتظار مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه د مفقودالخبرښځه څومره وخته پورې بل خاوندنه شی کولې؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل محمد خان سرائې نورنگ........۴/۵/۱۹۷۴ء

**الجواب:** کم ازکم اویا کالو رسیدلوپورې انتظارضروری دې﴿۳﴾ یاپه موافق د

﴿۱﴾(فتاویٰ شامیة ۳: ۳۶۳ مطلب فی الافتاء بمذهب مالک باب المفقود)

﴿۲﴾وفی البشریٰ لارباب الفتویٰ: لما کان الافتاء علیه عند الضرورة من اصول الحنفیة کان الحکم المبنی علیه مذهب الحنفیة ایضا لابتناء ه علی قواعدهم کما صرح به العلامة الشامی فی عقود رسم المفتی فیما اذا خالف فیه الاصحاب امامهم الاعظم.

(البشریٰ لارباب الفتویٰ ۳۷ الفصل السادس الافتاء بالقول المرجوح وبمذهب غیره)

﴿۳﴾قال العلامة الشامی: (قوله علی المذهب) وقیل یقدر بتسعین سنة بتقدیم التاء من حین ولادته واختاره فی الکنز وهوالارفق هدایة وعلیه الفتویٰ ذخیره وقیل بمأة وقیل بمأة وعشرین واختار المتأخرون ستین سنة واختار ابن الهمام سبعین لقوله علیه الصلاة والسلام اعمار امتی ما بین الستین الی السبعین فکانت المنتهی غالبا وذکر فی شرح الوهبانیة انه حکاه فی الینابیع عن بعضهم قال فی البحر والعجب کیف یختارون خلاف ظاهر المذهب مع انه واجب الاتباع علی مقلد ابی حنیفة واجاب فی النهر بان التفحص عن موت الاقران غیر ممکن او فیه حرج فعن هذا اختاروا تقدیره بالسن الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۶۲ کتاب المفقود)



مذهب دامام مالک رحمه الله حکم بالموت دې حاصل کړی.والتفصیل فی الحیلة الناجزة﴿۱﴾.وهوالموفق

## په بل خائې کښې د نکاح نه پس د مفقودالخبر د واپسۍ د صورت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس تقریبااته کاله مفقودالخبروی، په دې وخت کښې دده ښځې دویم خاوند اختیارکړو، حالانکه دې خاوندښځې ته ډیراخراجات پریخې وو، اوس هغه کس اچانک کورته راغلواوښځه ئې ددویم خاوندسره واده کښې اوموندده، دابال بچه داره هم دې ددې کس په حق کښې شرعی فیصله به څنگه وی؟بینوا توجروا

المستفتی: مولاناعزیزالرحمٰن خطیب کوهاله........۲۲/۱۱/۱۹۷۵ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې داښځه به اول خاوندته حواله کیولې شی، او که چرې ددویم خاوندنه ئې اولادپیداشوې وی نوداولادددویم خاوندنه ثابت النسب دې اول خاوندته دتجدیدنکاح ضرورت نشته دې لیکن ددویم خاوند د جماع وغیره په وجې سره عدت تیرول واجب دې (والتفصیل فی الحیلة الناجزة ۱۰۴ تا ۱۰۷)﴿۲﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دمالکیه په نزد د مفقود دښځې دپاره د مفقود د زوجیت نه آزادولو دپاره په دارالاسلام کښې خوداصورت دې چه ښځه د قاضی په عدالت کښې مرافعه پیش کړی اودشرعی شهادت په ذریعه داثابته کړی چه زما نکاح فلانی سړی سره شوې وه......ددې نه پس گواهانو سره دهغهٔ (خاوند) لاپته کیدل ثابته کړی.ددې نه پس دې قاضی پخپله هم د مفقود تفتیش اوتلاش اوکړی اوکله چه د پتې ملاوېدو نه مایوسه شی نوښځې ته د نورو څلورو کالو دانتظار حکم ورکړی بیاکه په دې څلوروکالوکښې دننه هم د مفقود پته اونه لگی نو مفقود به ددې څلوروکالو مودې ختمیدو باندې مړ تصورکولې شی.او ددې څلورو کالو تیریدو نه پس به څلورمیاشتې او لس ورځې د وفات عدت تیرولو سره به ښځې ته بل ځائې کښې د نکاح کولو اختیاروی.....(الحیلة الناجزة ۶۲ حکم زوجه مفقود)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب په دې باره کښې دادې چه که چرې مفقود دحکم بالموت نه پس هم واپس راشی نو دهغهٔ ښځه به په هرحال کښې هغهٔ ته ملاویږی (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د غائب خاوند واپس راتلل اود ښځې دویم واده اود طلاق اونکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوکس واده کړې دولس کالونه ورک وو دده ښځې ددویم خاوند سره نکاح کړې ده دولس کاله پس هغه واپس راغلو اوس دده دښځې دطلاق یانکاح متعلق دشریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیرختک کوهاټ شهر.........۱۴/۱۱رمضان ۱۴۱۰ھ

---

(بقیه حاشیه)...که د وفات په عدت کښې دننه راشی اوکه د عدت تیریدو نه پس، یا اګرچه دنکاح ثانی اود خلوت اوصحبت نه پس راشی اوکه مخکښې. کما صرح به شمس الائمة فی المبسوط حیث قال وقد صح رجوعه (یعنی عمر رضی الله عنه) عنه الی قول علی رضی الله عنه فانه (ای علیا رضی الله عنه) کان یقول ترد الی زوجها الاول ویفرق بینها وبین الآخر ولها المهر بما استحل من فرجها ولا یقربها الاول حتی تنقضی عدتها من الآخر وبهذا کان یأخذ ابراهیم فیقول قول علی رضی الله عنه احب الی من قول عمر رضی الله عنه وبه نأخذ ایضا (۱۱:۳۷) وفی میزان الشعرانی ۲:۱۲۴ ومن ذلک قول ابی حنیفة ان المفقود اذا قدم بعد ان تزوجت زوجته بعد التربص یبطل العقد وهی للاول وان کان الثانی وطئها فعلیه مهر المثل وتعتد من الثانی ثم ترد الی الاول،

او احنافو پاره د غیراحنافو په مذهب باندې فتوٰی ورکول د سخت ضرورت په وخت جائزدی لکه د مفقود د ښځې تاجیل وغیره صورتونو کښې، لیکن د مفقود د واپسئ په صورت کښې په بل مذهب باندې دعمل کولو ضرورت داعی نشته.

(وقال فی ذیله: وما فی العالمگیریة ۳:۱۷۶ عن التاتارخانیة فان عاد زوجها بعد مضی المدة فهواحق بها وان تزوجت فلا سبیل له علیها الخ فلا یعول علیه فی مقابلة تصریح المبسوط والله اعلم)...... ددې اولاد نسب به دویم خاوند نه ثابت وی، کما صرح به العلامة الشامی فی ردالمحتار (باب المفقود ۳:۳۶۱) والیه ذهب المالکیة ایضا کما صرح به فی الروایة الثالثة والثلاثین من فتوٰی العلامة الصالح المالکی الملحقة بآخر الکتاب.

(الحیلة الناجزة ۶۸، ۷۱ واپسی مفقود کے احکام)



**الجواب:** که چرې دې ښځې دتنسیخ نکاح نه پس بل واده کړې وی نودا ښځه ددې دویم خاوند سره به اوسیګی. اوکه چرې دتنسیخ نکاح نه بغیرئې دویم واده کړې وی نو داول خاوند مرضی ده چه طلاق ورکوی اوکه واپس ئې اخلی.

**نوټ:**.........د عدت خیال ساتل ضروری دی ﴿۱﴾-وهوالموفق

## د مفقود او متعنت فی النفقه په وجه باندې د تنسیخ نکاح په صورت کښې د خاوند د واپسئ مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوښځه کومه چه د خاوند نه پنځلس کاله جدا اوسیږی. اودې خاوندپه دې موده کښې دیته څه خرچه وغیره نه وی ورکړی. پنځلس کاله پس دې ښځې دکوم بل کس سره دویم

---

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: که غائب دحکم بالطلاق نه پس راشی نوددې دوه صورتونه دی یو داچه په عدت کښې دننه واپس راشی او باقاعده په خرچ ورکولو باندې راضی وی نوپه دې صورت کښې خو دۀ ته د رجعت حق شته که رجعت اوکړی نوصحیح به وی اوکه رجعت اونه کړی تود عدت نه پس به ددۀ د نکاح نه بالکل آزاده شی.

دویم صورت داچه دعدت ختمیدونه پس واپس راغلې وی نوپه دې کښې تفصیل دې چه که هغۀ د ښځې د دعوې خلاف څه خبره ثابته کړه مثلاً داچه ما دې ته دمخکښې نه خرچ ورکړې وو یا داچه دهغه ځائې نه به مې رالیږلو یا داچه ښځې نفقه معاف کړې وه بیا خوبه هغۀ ته په هرحال کښې ښځه ملاویږی یعنی اګرچه دغه ښځې دعدت نه پس دویمه نکاح هم کړې وی تردې که چرې د دویم خاوند نه ئې اولاد هم وی بیا به هم د ړومبی خاوند نکاح باقی ګڼلې کیږی. اود دویم خاوند نکاح به اوس باطل ګرځولې شی اوکه خاوند د ښځې ددعوې خلاف څه خبره ثابته نه کړه نو ښځه به هغۀ ته نه ملاویږی ځکه چه د عدت ختمیدو نه پس د رجعت حق نه پاتې کیږی. وهذا کله مصرح فی الروایة الرابعة عشر والسادسة عشر. اود دویم صورت په ړومبی جزء کښې کوم کښې چه ړومبی خاوند ته ښځه ملاویږی هغې کښې نه تجدید دنکاح ته ضرورت شته نه تجدید د مهر ته. البته چه دویم خاوند سره ئې خلوت صحیحه شوې وی نو عدت واجب دې یعنی د عدت تیریدو نه مخکښې ړومبی خاوندته دجماع او ددې د دواعی ارتکاب جائز نه دې

(الحیلة الناجزة ۷۸، ۷۹ حکم زوجه غائب غیرمفقود)

واده وکړو، اوس پنځلس کاله پس هغه سابقه خاوند ددي ښځې د اخستو دپاره راشي نوآیا سابقه خاوند ددې ښځې حقدار دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نثارالله بقلم خود

**الجواب**: که چرې مسلمان حاکم ددې غائب نکاح د تعنت فی النفقه(ښځې ته نان نفقه نه ورکول) په وجه باندې فسخ کړی وی نو دا ښځه به ددویم خاوند سره اوسیږی﴿۱﴾او که چرې حاکم دا فسخ دمفقوداو دور کیدو په وجه کړې وی نو دا ښځه به اول خاوند ته واپس کولې شی، دویم خاوند ته دطلاق ورکولو او داول خاوند سره دتجدید نکاح څه ضرورت نشته، لیکن اول خاوند به دعدت تیریدو نه پس جماع کوی. ددې نه وړاندې جماع کول جائزنه ده﴿۲﴾ والتفصیل فی الحیلة الناجزة ۱۰۴ .وهوالموفق

**د مفقود الخبر دمرګ په باره کښې د یوکس په خبر باندې داعتماد مسئله**

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه جان احمد غالبًا د دوؤ کالونه مفقوددې دده سره ماماګل احمدهم وو، یوځوورځې هغه دده نه غائب شوي وو روسته چاووئیل چه فلانی کس مړشوي دې کله چه هغه هلته

﴿۱﴾ قال العلامة اشرف علی التهانوی: متعنت که دخپل حرکت نه هغه وخت منع شی کله چه حاکم دهغۀ په ښځه باندې طلاق واقع کړی او عدت هم تیرشی نو اوس دهغۀ هیڅ اختیار په ښځه باندې نه پاتې کیږی...الخ.

(الحیلة الناجزة ۷۴ حکم زوجه متعنت)

﴿۲﴾ قال العلامة التهانوی: لیکن دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مذهب په دې باره کښې دادې چه که مفقود دحکم بالموت نه پس هم واپس راشی نو دهغۀ ښځه به هرحال کښې هغۀ ته ملاویږی که د وفات په عدت کښې دننه راشی یا دعدت تیریدو نه پس، اوکه د دویمې نکاح او خلوت اوصحبت نه پس راشی یا مخکښې، کما صرح به شمس الائمة فی المبسوط.....الخ، (الحیلة الناجزة ۶۸ واپسی مفقود کی احکام)



حاضرشونو پولیس والاهلته جمع وواوهغه ئې په خپل تحویل کښې واخسته او هغه مړ وو بیاهغه وائی چه زه چونکه هلته بیماراوم دې وجې نه درې میاشتې پس مې دهغه خورته اطلاع ورکړه چه جان احمد مړشوې دې اوس سوال دادې چه دده په ښځه باندې دوقوع زناسخته خطره ده اودنان نفقې والا ئې هم څوک نشته نودې ښځې ته دنکاح ثانی څه حکم دې؟

بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن حقانی لنډیوه بنوں.........۱۵\محرم۱۳۹۲ھ

**الجواب**: دې ښځې ته ددې کس په خبرباندې اعتمادکول جائزدې، فی الهندیة ۳۴۶:۵ اذاغاب الرجل عن امراته فاتاهامسلم عدل فاخبرها ان زوجها طلقها ثلثااومات عنهافلها ان تعتدوتتزوج بزوج آخروان کان المخبر فاسقاتتحری ثم اذا اخبرها عدل مسلم انه مات زوجها انما تعتمد علی خبره اذاقال عاینته میتااوقال شهدت جنازته امااذاقال اخبرنی مخبرلا تعتمد علی خبره﴿۱﴾.داجواب په دې تقدیر باندې دې چه دې کس ګل احمد دمرګ مشاهده کړې وی یاپه جنازه کښې شریک وی او که چرې نه ئې مشاهده کړې وی او نه ئې په جنازه کښې شریک شوې وی اویائې دپولیس وغیره معین کسانونه اوریدلی وی چه فلانی مړ شوې دې نو په دې باندې هم اعتماددرست دې، لمافی ردالمحتارعن جامع الفصولین: ولوسمع من هذالرجل آخرله ان له ان یشهدلانه من باب الدین فیثبت بخبر الواحد (ردالمحتار۲ :۸۴۷).وهوالموفق

**د پنځلس کالو نه د ورک شوی خاوند ښځې ته دتنسیخ نکاح حکم**

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوښځه دخپل

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۵ :۳۱۲ الفصل الثانی فی العمل بخبرالواحد فی المعاملات)

خاوند په نکاح کښي ده اودمهرڅه رقم ئي هم اداکړې دی،دواده نه پس ئي څو میاشتې تیرې کړې ورک شوروسته پته اولګیده چه هغه په کراچئ کښي دې او دویم واده ئي کړې دې،په کراچئ کښې په اوسیدو پخلس کاله تیرشو،اوس اوله ښځه مطالبه کوی چه یادې زماخاوند ماته طلاق راکړی یادې زما سره زندګی تیره وی،دې ښځې په عدالت کښي مقدمه درج کړې ده،دحکومت د بار بار اطلاع اود اخباری اشتهازاتو باوجود خاوند نه حاضریږی،اوس ښځې ته دشرعی فتوی مطابق څه کارپکاردې ددې دپاره چه دامعامله حل شی؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولانامحمد یوسف قریشی جامعه اشرفیه پشاور ۲۲/۷/۱۹۸۵ء

**الجواب:** کومه ښځه چه خاوندنه باقاعده آبادوی اونه ازادوی،نودامجبوره ښځه دمسلمان حاکم په ذریعه تنسیخ نکاح کولې شی،یعنی کله چه ددې د نفقې څه انتظام نه وی اویابغیر دخاوندنه په عصمت باندې ویریږی (ماخوذ ازحیله ناجزه)﴿۱﴾-وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: زوجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که ډیر کوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نود سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته...... اود سختې مجبورئ دوه صورته دی یودا چه دښځې دخرچ څه انتظام نه کیږی......او دویم داچه اګرچه په آسانئ یا په مشکله سره دخرچ انتظام کیدې شی لیکن دخاوند نه جدا اوسیدوکښې په معصیت کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی. اوصورت د تفریق دا دې چه ښځه خپله مقدمه د اسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنه موجود کیدوپه صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی اوکه دښځې دعوی صحیح ثابته شی چه د وسعت (طاقت) باوجود خرچ نه ورکوی نودهغې خاوند ته دې اوویلې شی چه دخپلې ښځې حقوق اداکړه یا طلاق ورکړه ګنی مونږ به ئي درنه جدا کړو،که ددې نه پس هم دغه ظالم په هیڅ صورت باندې عمل اونه کړی نو قاضی یا شرعاً چه څوک دهغهٔ قائم مقام وی طلاق دې واقع کړی. وبعد صفحتین ...... (زوجه غائب غیرمفقود) اول دې قاضی ته مقدمه پیش کړی د ګواهانو په ذریعه دې دې غائب سره ...... (بقیهٔ حاشیه په راروانه صفحه



## د مفقودالخبر لوفر سړی د ښځې د پاره بل ځائې کښې د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید یوآواره اودبد کردار والا انسان دی، یوه جینئ ئي اوتختوله اوپټ شو،داتوکالونه دده څه پته نشته چه ژوندې یامړیاچرته دې،وارثانوئې ډیر کوشش اوکړو لیکن څه پته ئې اونه لګیده،اوس ددې زید منکوحه داتوکالونه بې یاره او مددګاره ده اوخوانه ده، ایاددې دپاره بل ځائې کښې واده کول جائزدی؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمن...... ۱۴/۷/۱۹۷۴ء

**الجواب:** دمسلمان حاکم دحکم بالموت یادتنسیخ نکاح نه وړاندې ددې ښځې سره دچا نکاح کول مشروع نه دې﴿۱﴾ قال الله تبارک وتعالی:والمحصنت من النساء(الایة)﴿۲﴾.وهوالموفق

## د خاوند په لرې وطن کښې د ښځې اوسولو او بیا هلته د تلو نه د انکار وغیره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه زید عمرته خپله لور په دې شرط سره په نکاح ورکړه چه عمر به جیتئ خپل وطن ته نه بوځی بلکه دزید په وطن کښې به اوسیږی.عمرشرط منظور کړونکاح ئي اوکړه.څه موده

---

(بقیه حاشیه)......دخپلې نکاح کول ثابت کړی بیا دې دا ثابت کړی چه ده ماته نفقه نه وه راکړې او تلې وو اونه ئي دهغه ځائې نه ماته نفقه رالیږله. نه ئې دلته څه انتظام اوکړو اونه ورته ما نفقه معاف کړې ده...... قاضی دې دغه سړی ته حکم اولیږی چه یا خوته پخپله حاضر شه دخپلې ښځې حقوق ادا کړه یا دا ځانته اوغواړه یا ددغه ځائې نه څه انتظام اوکړه ګنی دې ته طلاق ورکړه اوکه تا په دې خبروکښې یوه خبره هم اونه منله نوبیا به مونږ په خپله دواړو کښې جدائی راولو...الخ

(الحیلة الناجزة ۷۳،۷۷ حکم زوجه متعنت وحکم زوجه غائب غیر مفقود)

﴿۱﴾ (الحیلة الناجزة ۵۹ حکم زوجه مفقود)

﴿۲﴾ (سورة النساء آیت: ۲۴ پاره: ۵ رکوع: ۱)

پس ئې یوبچې هم پیداشو، ددې نه پس عمرخپل وطن بدخشان ته لاړو او غائب شو، بیابوه ورځ دیوخط په ذریعه ئې خپلې ښځې ته دبدخشان تللو اووئیل، لیکن والدینوبدخشان ته دتګ نه منع کړه اګرچه هغه غواړی چه بدخشان ته لاړه شی، په دې وخت کښې اوه کاله تیرشو، بنده عارض وطن بدخشان ته لاړو نو هلته معلومه شوه چه دزید وطن ته لاړشه مګرعمراوئیل چه زه هیڅ کاله نه ځم اونه طلاق ورکوی دازمابښځه ده اودلته به وی چه زه ددې دټولو اخراجاتو ذمه واریم که چرې دپلارکورکښې اوسیږی نوصحیح ده خرچه به ورکوم لیکن طلاق به هیڅ صورت کښې نه ورکوم اوس د زید د وطن نه بعض مولیانوپه بل مذهب باندې فتوی ورکړې ده چه دانکاح ددویم خاوندسره نکاح کولې شی اګرچه عمرطلاق ورنه کړی صحیح مسئله څه ده؟

بینوا توجروا

المستفتی: لعل بادشاه مهمند......۳۰۱۵۱۰۱۹۷۲

**الجواب:** د زید دا شرط لګول بې سوده دې ځکه چه ددې شرط په عدم ایفاء باندې نکاح ته نقصان نه رسی، فی الدرالمختار: ومایصح ولایبطل بالشرط الفاسد القرض والهبة والصدفة والنکاح، (هامش ردالمحتار۴:۲۲۸)﴿۱﴾

قلت: هذالشرط فاسد عندنایخالف قوله تعالی: اسکنوهن من حیث سکنتم﴿۲﴾ خلافاللامام احمد والامام البخاری﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴:۲۵۴ کتاب البیوع، ما یبطل بالشرط الفاسد ولا یصح تعلیقه به)

﴿۲﴾ (سورة الطلاق پاره:۲۸ آیت:۶)

﴿۳﴾ وفی المنهاج: اعلم! ان الشرائط ثلثة اقسام، الاول ما یکون مقتضی النکاح کالنفقة وهو مقبول، والثانی ما یکون معارضا للوحی وهو ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



وافتی فقهاء نابمذهب الغیر عندالضرورة والظاهرانه لاضرورة ههنالرضاء الزوجة بالذهاب الی بدخشان﴿۱﴾. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) مردود لحدیث البخاری کل شرط لیس فی کتاب الله فهو باطل، والثالث ما لا یکون کذلک فیلزم عند الاشتراط، قوله وشرط لها ان لا یخرجها من مصرها: فیلزم الایفاء به لحدیث الباب ولما ذکره البخاری عن عمر رضی الله عنه ووصله سعید بن منصور وابن ابی شیبة، مقاطع الحقوق عند الشروط، ای ایها الزوج کان لک حق الاخراج شرعا ولکن لما قبلت عند العقد شرطها بعدم الاخراج فقطعت حقک، وقال فقهاء نا لا یلزم الایفاء بهذا الشرط لانه معارض بقوله تعالیٰ: اسکنوهن من حیث سکنتم، وهو عبارة فی المطلقات ودلالة فی المنکوحات، ولما ذکره الترمذی وغیره عن علی رضی الله عنه، والجواب عن حدیث الباب واضح لانه شرط معارض بالقرآن، والجواب عن اثر عمر ان ابن وهب روی عن عمر انه وضعَ الشرط وقال: المرأة مع زوجها، قال ابو عبید تضادت الروایات عن عمر فی هذا، فبقی اثر علی بلا معارض فیکون اولیٰ بالعمل وهی روایة عن مالک والشافعی ایضا (فائدة) قال الله تعالیٰ: ﴿ولا تضاروهن لتضیقوا علیهن﴾ فلا بد للقاضی والمفتی من ان یجتهد حتی یعلم المفسد من المصلح.

(منهاج السنن شرح سنن الترمذی ۴:۲۷۶ باب فی الشرط عند عقدة النکاح)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: واختار فی الفصول قول القاضی فیفتی بما یقع عنده من المضارة وعدمها لان المفتی انما یفتی بحسب ما یقع عنده من المصلحة، فقوله فیفتی الخ صریح فی انه لم یجزم بقول الفقیه ولا بقول القاضی وانما جزم بتفویض ذلک الی المفتی المسئول عن الحادثة وانه لا ینبغی طرد الافتاء بواحد من القولین علی الاطلاق فقد یکون الزوج غیرمامون علیها یرید نقلها من بین اهلها لیؤذیها او یأخذ مالها بل نقل بعضهم ان رجلا سافر بزوجته وادعی انها امته وباعها فمن علم منه المفتی شیئا من ذلک لا یحل له ان یفتیه بظاهر الروایة لانا نعلم یقینا ان الامام لم یقل بالجواز فی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د دیوانه او عمر قید کس د ښځې د نکاح د تنسیخ مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیوښځې خاوند دیوانه اوپاګل وی نوهغه به خپلې ښځې ته څنګه طلاق ورکوی چه په شریعت کښې هغه درست وی، همدارنګه چه دیوښځې خاوند تقریباشل کاله قیدشی نو دده ښځه طلاق حاصلولې شی اوکه نه؟بینوا توجروا

المستفتی: ملک ممتازپشاور......۱۷رمضان۱۳۹۹ھ

**الجواب:** دیوانه دطلاق ورکولواهل نه دې﴿۱﴾البته په بعض صورتونوکښې د دیوانه ښځه دمسلمان حاکم په ذریعه تنسیخ نکاح کولې شی﴿۲﴾......

(بقیه حاشیه) مثل هذه الصورة والحاصل انه لم یوجد الضرر الذی علل به القائل بخلافه بل وجد الضرر للزوج دونها فنعلم یقینا ایضا ان من افتی بخلاف ظاهر الروایة لا یقول بالجواز فی مثل هذه الصورة الا ترى ان من ذهب بزوجته للحج فقام بها فی مکة مدة ثم حج وامتنعت من السفر معه الی بلده هل یقول احد بمنعه عن السفر بها وبترکها وحدها تفعل ما ارادت فتعین تفویض الامر الی المفتی ولیس هذا خاصا بهذه المسئلة الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۹۱ مطلب فی السفر بالزوجة)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: لا یقع طلاق...... والمجنون والصبی الخ . (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۲۲ قبیل مطلب فی طلاق المدهوش)

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: اصل په دې باره کښې دادې چه هغه جنون چه دهغې په وجه ښځې ته دامام محمد رحمه الله په نزد خیار فسخ حاصلیدې شی ددې په حد بیانولو کښې مختلف الفاظ مذکوردی د مبسوط الفاظ دادی لا تطیق المقام معه، اوپه کتاب الاثارکښې یخاف علیها قتله مذکور دی په دې دواړو کښې د تطبیق صورت داکیدې شی چه کوم مجنون نقصان رسولې شی دهغۀ متعلق د غالب عادت نه اکثر دا خطره هم وی چه کیدې شی قتل ئې کړی خلاصه داشوه چه دکوم مجنون نه چه ناقابل برداشت ایذاء رسیږی دهغۀ دا حکم دې....الخ

(الحیلة الناجزة ۵۲ حکم زوجه مجنون)........ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



............همدارنګه دعمرقید کس ښځه هم﴿۱﴾حیلة ناجزه۵).وهوالموفق

(بقیه حاشیه)...... ☆قال الشیخ شمس الحق الافغانی: زوجة المجنون اذا کانت لا تطیق المقام معه فلها خیار الفسخ کالعنة عند محمد کما فی کتاب الآثار لمحمد فی باب الرجل یتزوج وبه العیب، ان کان الجنون حادثا وان کان قدیما او به مرض لا یرجیٰ برئه کالجب فلها الخیار ان شاء ت رضیت وان شاء ت رفعت الامر الی الحاکم حتی یفرق بینهما کذا فی المضمرات وفی الهندیة عن الحاوی القدسی وبه ناخذ .

(معین القضاة والمفتیین ۸۹ الفصل الرابع عشر فی زوجة المفقود)

﴿۱﴾ حیله ناجزه کښې دی: وجه متعنت له اول لازم دی چه په څه طریقه خاوند سره خلع وغیره اوکړی لیکن که د ډیرکوشش باوجود هم څه صورت نه جوړ نه شی نود سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته. اود سختې مجبورئ دوه صورته دی...... دویم صورت د سختې مجبورئ داچه اګرچه په آسانئ یا په مشکله سره دخرچ انتظام کیدې شی لیکن دخاوند نه جدا اوسیدو کښې په معصیت کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی.او صورت د تفریق دادې چه ښځه خپله مقدمه داسلام قاضی یا مسلمان حاکم ته اوددوی دنۀ موجود کیدو په صورت کښې دمسلمانانو جماعت ته پیش کړی اوچاته چه پیش کړې شی هغه دشرعی شهادت وغیره ذریعې سره د معاملې پوره تحقیق اوکړی......په دې کښې دڅه مودې انتظار اومهلت ته په داتفاق د مالکیه ضرورت نشته انتهٰی، هم دې زوجه متعنت سره دجدید اضافې په طور باندې دحضرت مولانا مفتی محمد شفیع رحمه الله فتوٰی ملحق کړې شوې ده. دوی فرمائی: اصل خبره داده چه د غائب غیرمفقود د نکاح د فسخ مسئله د مالکی مذهب نه اخستې شوې ده خو بعضې قیود او شرائط احتیاطاً زیات کړې شوی دی اوپه آخرکښې لیکی بناءً علیه خیال هم دادې چه په مذکوره صورت کښې فسخ دنکاح شرعاً صحیح او درست او نافذ شوې ده.(حیله ناجزه ۳۷ حکم زوجه متعنت، وفتوٰی درباره بیس ساله قیدی)

په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند کښې د دیرشو کالو دقیدی باره کښې مولانا مفتی عزیزالرحمٰن صاحب لیکی: اصل مذهب د احنافو په دې صورت کښې دادې چه نکاح نه فسخ کیږی اود خاوند دطلاق ورکولونه بغیر دویمه نکاح ښځې له کول صحیح نه دی، کما فی الدر المختار: ولا یفرق بینهما بعجزه عنها ولا بعدم ایفائه لوغائبا حقها الخ درمختار، لیکن بعضې نور آئمه په داسې صورت کښې (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## د مجنون منکوحه د خوف زنا او عدم نفقې وغیره په وجه تنسیخ نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یوښځه دیو کس په نکاح کښې ده اودلس کالونه زیاتې شوې دی چه هغه پاګل دې ددې پاګل والدین دې ښځې ته نان نفقه نه شی ورکولې، جینۍ دلسو کالونه دوالدینو په کور کښې ده، ددې والدین هم غریبانان دې ښځه هم ځوانه ده اوس دې ښځې ته ددویم کس سره دنکاح شرعی اجازت به څنګه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټر عنایت علی نوشهره........ ۲۸/۲/۱۹۷۲ء

---

(بقیه حاشیه)...فسخ د نکاح ته جائز وائی. او احنافو له په وخت د ضرورت کښې دې باندې عمل کول صحیح دی. او احوط دادی چه دچا مذهب د تفریق او دنکاح د فسخ کولو دې په هغې باندې فسخ اوکړی.

**قال فی الدرالمختار: وجوزه الشافعی باعسار الزوج وبتضررها بغیبته ولو قضیٰ به حنفی لم ینفذحکمه نعم لو امر شافعیا فقضی به نفذ اذا لم یرتش الآمر والمأمور، بحر درمختار، او په شامی کی دی: والحاصل ان عند الشافعی اذا اعسر الزوج بالنفقة فلها الفسخ وکذا اذا غاب وتعذر تحصیلها منه علی ما اختاره کثیرون منهم لکن الاصح المعتمد عندهم ان لا فسخ ما دام موسرا، (شامی) وفیه بعد اسطر قال فی غرر الافکار ثم اعلم ان مشائخنا استحسنوا ان ینصب القاضی الحنفی نائبا لمن مذهبه التفریق بینهما اذا کان الزوج حاضرا وابی عن الطلاق لان رفع الحاجة الدائمة لا یتیسر بالاستدانة اذا لظاهر انها لا تجد من یقرضها وغنی الزوج مآلا امر متوهم فالتفریق ضروری اذا طلبته وان کان غائبا......**

پس ښکاره ده چه روایات په دې باره کښې ډیر مختلف او مضطرب دی لیکن په وخت د ضرورت کښې حنفی له ګنجائش شته چه تفریق اوکړی اود عدت نه پس د دویمې نکاح دجواز فتویٰ ورکړی.

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ۱۰:۲۳۰ کتاب الطلاق سوال: ۹۴۹)



**الجواب:** دا ښځه ددې وجوهاتو په بناء باندې (یعنی دزنا دویرې اودعدم انتظام نفقه(۱)) په ذریعه دمسلمان حاکم فسخ نکاح حاصلولې شی، اودفسخې نه پس باقاعده بل خائې کښې نکاح کولې شی. کذافی الحیلة الناجزة(۲) وهوالموفق

## په خاوند باندې د جنون راتلو په وجه باندې تنسیخ نکاح کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس دواده نه پس پاګل شو اودپنځو کالونه ئې دماغی توازن خراب دې، اوپه ظاهره دده دصحیح کیدلو توقع نشته دې، نوایا دده ښځه په ذریعه دعدالت تنسیخ نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل الرحمٰن........ ۱۹/۵/۱۹۷۴ء

---

(۱) قال العلامة اشرف علی التهانوی: د سختې مجبورئ په حالت کښې په مالکی مذهب باندې دعمل کولو ګنجائش شته. څکه چه ددوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویږی. اود سختې مجبورئ دوه صورته دی یو داچه دښځې د خرچ څه انتظام نه کیږی یعنی نه خوځوك سرې دخرچ بندوبست کوی اونه پخپله ښځه دعزت حفاظت سره په کسب دمعاش باندې قدرت ساتلې شی. اودویم صورت دمجبورئ دادې دخاوند نه جدا اوسیدو کښې په معصیت کښې د مبتلا کیدو قوی خطره وی.
(حیله ناجزه ۳۷ حکم زوجه متعنت)

(۲) قال الشاه اشرف علی التهانوی: صورت د تفریق دادې چه د مجنون ښځه د قاضی په عدالت کښې درخواست ورکړی اود خاوند خطرناك مجنون کیدل ثابت کړی قاضی د واقعې تحقیق کولو سره که صحیح ثابته شی نومجنون ته دې علاج دپاره د یو کال مهلت ورکړی اود کال ختمیدو نه پس که ښځه بیا درخواست ورکړی اود خاوند دجنون مرض اوس موجود وی نو ښځې ته دې اختیار ورکړې شی په دې باندې که ښځه هم په دغه مجلس دتخییر کښې جدائی طلب کړی نوقاضی دې تفریق اوکړی. کما مر فی الجواب الاول من العالمگیریة.
(الحیله الناجزة ۵۴ حکم زوجه مجنون)

**الجواب:** که چرې دجنون د حادث کیدلو نه پس، ښځې نه په رضامندئ باندې تصریح کړې وی اونه ئې په جماع وغیره باندې قدرت ورکړې وی نو په دې صورت کښې دا ښځه دمسلمان حاکم په ذریعه طلاق حاصلولې شی په دې شرط چه داجنون خطرناک وی. دناقابل برداشت تکلیف سخته خطره وی، نودا ښځه به حاکم ته مرافعه اوکړی حاکم به دعلاج دپاره نور یو کال موقع ورکړی پس که چرې صحیح نه شو نو ښځې ته به اختیارورکولې شی او ښځه به په هغه مجلس کښې نکاح ختمه کړی او واضحه دې وی که چرې دنان نفقې څه انتظام نه وی نو په دې صورت کښې هم مسلمان حاکم طلاق ورکولې شی او تنسیخ نکاح کولې شی. په دې شرط چه د لیونتوب دحادث کیدونه وړاندې یعنی دنکاح په وخت دا کس غریب نه وو. والتفصیل فی الحیلة الناجزة﴿۱﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دمذکوره عباراتو نه معلومه شوه چه د شیخینو په نزد خو دخاوند دجنون په وجه ښځې ته دنکاح فسخ کولو اختیار نشته لیکن دامام محمد رحمه الله په نزد دې ته دا اختیار حاصل دې چه قاضی ته درخواست ورکړی اود تفریق مطالبه اوکړی اوبیا خپل ځان د مجنون د زوجیت نه جدا کړې په دې شرط چه جنون دومره وی چه دهغهٔ سره اوسیدل د قدرت نه بهروی مثلاً دهغهٔ نه د قتل خطره وی...... خلاصه دا شوه چه دکوم مجنون نه ناقابل برداشت تکلیف رسیږی دهغې حکم دادې...... صورت د تفریق دادې چه دمجنون ښځه دقاضی په عدالت کښې درخواست ورکړی اود خاوند خطرناك مجنون کیدل ثابت کړی، قاضی د واقعې تحقیق کولو سره که صحیح ثابته شی نومجنون ته دې علاج دپاره د یو کال مهلت ورکړی...... په دې کښې اکثر شرائط داختیار دمجنون ښځې دپاره هم دی چه دهغې اجمال دادې (۱) دنکاح نه مخکښې ښځې ته دخاوند د مجنون کیدو علم نه وی. (۲) دنکاح نه پس علم کیدو باندې د رضا صراحت نه وی. (۳) کله چه د مهلت کال تیریدو نه پس په دوباره درخواست باندې قاضی ښځې ته اختیار ورکړی نو ښځه هم په دغه مجلس کښې جدائی اختیار کړی..... فائده: د مجنون د زوجې دنکاح فسخ کولو دپاره چه کوم شرائط پورته مذکوردی که دا شرائط چرته موجود نه وی نو د جنون په بنا باندې تفریق نه شی کیدې لیکن که دا مجنون د آمدنئ څه ذریعه نه لری او ښځې دپاره دخپلې نفقې څه بله لاره هم نه وی نو په داسې صورت کښې مفتی دپاره د ښځې د اضطرار (مجبورئ) پوره تحقیق کیدلو او د یو څو عالمانو سره د مشورې نه پس ددې فتوې گنجائش دې چه د مالکی مذهب په بنیاد باندې دعدم نفقې په وجه قاضی یا دهغهٔ قائم مقام په دوی واړو کښې جدائی اوکړی..... چه دهغې نه یو شرط دا هم دې چه (بقیه په راروانه صفحه)



## د لیونتوب په وجه باندې د تنسیخ نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو دماغی مریض دډاکټر په مشورې سره واده اوکړو لیکن دې بیمارئ زیات شدت اختیار کړو اوس دده ښځه ددې کس په نکاح کښې اوسیدل نه غواړی ځکه چه دا ښځه ځوانه ده بغیر دخاوندنه اوسیدلو کښې په عصمت باندې ویریږی دنان نفقې هم څه انتظام نشته ددې دماغی مریض کس دوه بچی دی یو دیولسو کالو دې دویمه جینئ د اتو کالو ده. داتو کالونه ددې ښځې سره څه همبستری نه ده شوې بلکه دخاوندنه ئې دمرګ خطره ده تردې پورې چه دمرګ په ویره باندې مونږ هغه په یو ځانله کوټه کښې بند کړې شرعی حل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید رحمٰن تهانه متنی پشاور......... ۱۹۸۵ء۱۷۱۴

**الجواب:** که چرې دې لیونتوب شدت اختیار کړې وی ښځه دده نه دهلاکت خطره لری او په دې ښځه باندې بغیر دخاوندنه دعصمت و یره وی او یا دا ښځه دا خراجاتو نه په خپله طاقت لری او نه ئې بل څوک دکفالت بوج اوچتوی نو ددې وجوهاتو په وجه باندې دامجبوره ښځه تنسیخ نکاح کولې شی﴿۱﴾-

**نوټ:** که چرې دا دیوانه صاحب جائیدادوی نو صرف په اوله وجه هم تنسیخ نکاح کولې شی- وهو الموفق

(بقیه حاشیه)...عدم نفقې په وجه دنکاح د فسخې حکم هغه وخت ورکولې شی کله چه د عقد نکاح نه مخکښې هغې ته دخاوند د فقیر او غریب کیدو علم نه وی ګنی که د فقیرئ علم کیدو سره عقد دنکاح شوې دې نو د عدم نفقې په وجه به هغې ته د تفریق دمطالبې حق نه وی...الخ (الحیلة الناجزة ۵۲ تا ۵۸ حکم زوجه مجنون)

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دامام محمد رحمه الله په نزد هغې ته دا حق حاصل دې چه قاضی ته درخواست ورکړی اود تفریق مطالبه اوکړی اوخپل ځان دمجنون د زوجیت نه جدا کړی په دې شرط چه جنون دومره زیات وی چه هغهٔ سره اوسیدل دقدرت نه بهروی مثلاً دهغهٔ نه د قتل خطره وی، اصل په دې باره کښې دادې چه هغه جنون چه دهغې په وجه ښځې ته دامام محمد رحمه الله په نزد خیار د فسخې حاصل دې کیدې شی چه ............(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د لیونتوب په وجه باندې د امام محمد او امام مالک رحمهماالله په نزد فسخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې که چرې خاوند پاګل شی نود ښځې په درخواست باندې ددوئ په مینځ کښې جدائی کیدلې شی؟ داجواب لیکلې شوې دې که چرې جنون حادث شی نودعنین په شان به یوکال مهلت ورکولې شی ددې نه پس که چرې صحیح نه شونوښځې ته اختیاردې او که چرې لیونتوب مطبق وی نونکاح فی الفورفسخ کولې شی،دمهلت ورکولو حاجت نشته دې.فی المجمع البرکات ان کان بالزوج جنون اوجذام اوبرص فلا خیارلها وقال محمدلها الخیاردفعا للضررعنها کمافی الجب والعنة کذافی الکافی، قال محمدان کان الجنون حادثا یومایؤجله سنة کالعنة ثم یخیرالمراة بعد الحول اذالم یبراوان کان مطبقا فهو کالجب وبه ناخذکذا فی فتاوی العالمگیریة ناقلا من الحاوی (ازمجموعة الفتاوی۲:۸۶)لوکان احدهما مجنونافانه لایؤخرالی عقله فی الجب والعنة لعدم الفائدة،ویفرق بینهما للحال،باب العنین بحرالرائق جلدچهارم صفحه ۱۲۳ ،وقدکتبنافی القواعد الفقهیة من مذهب الحنفیة ان القاضی لوقضی برد احد الزوجین بعیب نفذ قضاءه،ازبحرالرائق ۴:۱۲۷،که چرې داجواب صحیح نه وی نود مفصل جواب نه موخبرکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمالک مهمندایجنسی

(بقیه حاشیه)...چه ددې په حد بیانولو کښې مختلف الفاظ مذکوردی د مبسوط الفاظ دادی لا تطیق المقام معه، اوپه کتاب الاثارکښې یخاف علیها قتله مذکور دی په دې دواړو کښې د تطبیق صورت دا کیدې شی چه کوم مجنون نقصان رسولې شی دهغهٔ متعلق د غالب عادت نه اکثر دا خطره هم وی چه کیدې شی قتل ئې کړی خلاصه داشوه چه دکوم مجنون ناقابل برداشت ایذاء رسیږی دهغهٔ دا حکم دې.

(الحیلة.الناجزة ۵۲ حکم زوجه مجنون)



**الجواب:** کوم لیونتوب چه دنکاح نه مخکښې موجودوی ددې وجې نه فسخ د نکاح دامام محمد رحمه الله په نزدجائزده،اوکوم لیونتوب چه دنکاح نه پس حادث وی نوددې په وجه باندې دمالکیانوپه نزدفسخ نکاح جائزده،په دې شرط چه ښځه ددې لیونتوب په موجب دفسخ کیدلودعلم نه پس دې خاوندته په خپل اختیاراواراده باندې قدرت علی الجماع والدواعی نه وی ورکړې، ګینې دې ښځې ته حق دفسخ نکاح نه حاصلیږی،څنګه چه دزبانی رضاپه وخت دا اختیارنه دې حاصل،واجازه الفقهاء عندالضرورة والتفصیل فی الحیلة الناجزة ۹۵﴿۱﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾(الحیلة الناجزة ۵۱ حکم زوجه مجنون) (قد مر مراراً)

.........

**د محکمه عالیه قضاء د سوات ریاست متفقه فیصله**

# الحکم المحمود فی مسئلة الْمفقود

**سوال:** په حضور دعالی مفتی اعظم شیخ الحدیث مولانامفتی محمدفرید صاحب دارالعلوم حقانیة اکوړه خټک زمونږ دنیکه مولانافضل سبحان صاحب (کاکاجی) رحمة الله علیه او مولانافضل الرحمٰن صاحب (لالاجی) رحمة الله علیه په ذاتی کتب خانه کښې د مسئله مفقود په باره کښې دعلماء اوقضاة سوات متفقه فیصله اوفتوی په نوم د (الحکم المحمودفی مسئلة المفقود) داقلمی نسخه موجوده ده ایادامسئله اوفیصله صحیح اوقابل عمل ده. دمسئلې فوټو کافی هم ورسره ده.

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی، امابعدفاقول: داعلی حضرت میاں گل عبدالودودصاحب بادشاه صاحب ریاست سوات خلدالله ملکه دخپل ریاست علماء دمفقودخاوند دښځې په باره کښې په مذهب مالکی باندې د فتوی طلب کولووجه داوه چه څه ضروریات او اسباب کوم چه علماء مالکیه په دې مسئله کښې دفتوی اوعمل سبب جوړ کړې دي یعنی دمفقود ښځې ته د مفقود نه دجداکولونه پس دمیعادڅلور کاله هغه اسباب دادی:

(۱) دخاوند نه واجب نفقه نه ملاویدل (۲) دخاوندحق واجبه نه اداکول (۳) اود خاوند دخپلې ښځې سره نه اوسیدل چه په دې کښې ډیرمفاسد دی (۴) ضروری مسکن نه مهیاکول (۵) اوددې حقوق دفوت کیدلو په وجه باندې ښځه په زنا کښې مبتلاکیدل وغیره۔

داهغه اسباب دي کومو که چه مختلف وطنونواوممالکو کښې علمائې احناف په مذهب غیرباندې په فتوی ورکولوباندې مجبور کړې. مثلاً ددې



علماء احنافونه یوصاحب جامع الرموزدې. دویم ابن عابدین صاحب فتاوٰی شامیه دي دریم صاحب بزازیه دې. څلورم مولاناعبدالحئ صاحب دې، صاحب مجموعة الفتاوی، اوهمداسې ډیرعلماء دی لکه علماء دیوبند، علماء مظاهرالعلوم سهارنپوروغیره وغیره۔

اوداواقعات دداسې قسم ښځودی چه دهغوئې خاوندانودوئ پریخې وی اودابلانفقه. بلامسکن. بلاشوهر. په زناکښې مبتلاء. دحقوق شرعیه نه محروم، دبې اسرې اوخاوندانودراتلوپه ناامیدی سره خپل وطنونوکښې زندګی تیرویحکومت سوات ته پیش وو. نوحکومت ددې فسادعظیم په ازاله او رفع باندې مجبورشو. اوددې فساددفع په مذهب مالکی باندې دفتوی نه بغیرنه شوه کیدې ددې وجې نه علماء ریاست سوات صانهاالله عن الافات خاص په مسئله مفقودکښې دوخت دمجبورئ په وجه باندې په مذهب مالکیه باندې عمل اوفتوی ورکړه. چه په لاندینوشروطوباندې مشروط ده کوم چه علماء مالکیه معتبرمنلی دی.

(۱) ښځې دپاره مرافعه الی القاضی یاقائم مقام د قاضی ته (۲) ددې ښځې ددې مفقودسره دنکاح شرعی اثبات (۳) ددې مفقودپه شهادت شرعی سره د مفقود یت اثبات (۴) دقاضی په خپله ددې مفقودپه حال اوتحقیق دمیلاویدو پته (۵) دقاضی دپاره دناامیدئ اومایوسئ نه پس دښځې دپاره څلورکاله نور انتظار (۶) څلورکاله تیریدونه پس که چرې دمفقودمعلومات اونه شو نودا مفقود به مړمتصور کیږی اوقاضی به دې ښځې ته دعدت وفات تیرولوحکم کوی، دعدت دمودې تیریدونه پس به دې ښځې ته اختیاروی چه نکاح ثانی کوی اوکه صبراختیارکوی اوکه چرې نکاح ثانی کوی نوددې دپاره حکم دقاضی شرط دې (۷) دڅلوروکالودمودې ابتداء به قاضی ته د مرافعه کولو اود قاضی ددې مفقودد حالت او پته لګولونه پس کیږی.

نور تاکیددادې چه قاضی به صرف په ښځه اوددې داولیاء په بیان باندې اکتفاء نه کوی، بلکه په خپله به دمفقودتحقیق اوطلب کوی.

په وجه مذکوره لیکل شوی وجوهات مع دلائل، اوپه وجه دلحاظ د وخت

اوپه ضرورت شدیده کښې یعنی خادم الاسلام قاضی محکمه عالیه حضور شاهی برنګل په وجه دعدم وجودفتوی اتفاقیه په مذهب حنفی کښې ما په دې مخصوص مسئله کښې دضرورت په بناء باندې په مذهب دامام مالک باندې فتوی ورکړه، باسنادقوله تعالی:وماجعل علیکم فی الدین من حرج،وبدلیل قوله علیه السلام: الدین یسر.

اوددې وجوهاتوپه وجه باندې جمع عظیم علماء عظام ریاست سوات دضرورت احساس اوکړواوددفع فساداودجرم زنا لحاظ ئې اوکړو اواهل اسلام حتی الوسع اصلاح ئې خپل فرض منصبی وګڼړله نودافتوی ئې لازمی او واجبی جوړه کړه اووئې وئیلې چه مونږ خادمین اسلام(کوم چه لاندینی علماء دی) ته په دې مسئله باندې عمل دې.

**دستخط د علماؤ دسوات ریاست**

(۱) العامل قاضی عبدالجلیل خادم باباجی سیدوشریف(۲) مولوی عبد المتین الپورئ (۳) قاضی محمود برکانجو(۴) قاضی عبدالکریم شیرپلم (۵) مولوی عبدالحکیم صاحب چارباغ(۶) مولوی خونه ګل کیملپور چارباغ (۷) قاضی امیرحاجیان علی ګرامه(۸) مولوی شیرزاده مینګوره(۹) مولوی محمدعلم ګل سیدوشریف (۱۰) مولوی عبدالرحیم منګوره (۱۱) مولوی فضل الرحمٰن (لالاجی) منګلور(۱۲) مولوی رحیم الله دردیال (۱۳) شفیع الرحمٰن قاسم خیل(۱۴) مولوی عبدالغنی تندوډاګ(۱۵) مولوی امیرزاده مینګوره (۱۶) احقرالعباد محمد مفتاح الدین جوړه(۱۷)مولوی ګل نبی تندوډاګ (۱۸) مولوی حبیب الله چارباغ (۱۹) قاضی سیدباچا کوزه بانډئ(۲۰) مولوی عبدالمستعان کاټیلی(۲۱) کاکا میاں صاحب نلکوټ (۲۲) قاضی محمدحق صاحب الحق دوبیر(۲۳) مولوی محمدیعقوب دوبیر(۲۴)قاضی پائنده خان دوبیر(۲۵) قاضی خلیل الرحمٰن قاسم خیل(۲۶) مولوی فضل سبحان منګلور (۲۷) قاضی تیغک بقلم خود-



# استفتاء

څه فرمائی علماء دین متین د مفقودپه مسئله کښې دضرورت شدیده په وخت چه حنفی علماء فتوی اوعمل دامام مالک په مذهب باندې دشرائطو سره کولې شی اوکه نه؟ اوکومه فتوی چه حنفی علماؤپه دې خاص مسئله مثلاً دمفقودښځې د تفریق اود نکاح ثانی اجازت دڅلوروکالو میعاد تیریدو نه پس جاری کړې ده اودامام مالک دمذهب تقلیدئې کړیدې څنګه چه په لاندینی کتب حنفیه کښې لیکلی شوی دی صحیح دئ اوکه نه؟

(۱) جامع الرموز(۲) فتاوی جوهری (۳) فتاوی بزازیة (۴) شامیة (۵) مجموعة الفتاوىٰ مولاناعبدالحئ صاحب(۶)مولانااشرف علی صاحب(۷) علماء دارالعلوم دیوبند(۸) علماء مظاهرالعلوم سهارنپور-بینوا توجروا اوفقکم الله تعالی للبیان وایانالعمل بالبیان فقط

**الجواب الاول من دارالافتاء مدرسه امینیه دهلی**

علماء حنفیه دحضرت امام مالک رحمه الله دمذهب موافق دمفقوددښځې په باره کښې دمالکیه مذهب دشرائطوپه رعایت سره دڅلوروکالوانتظارنه پس د تفریق دجواز فتوىٰ اوحنفی قاضی حکم تفریق ورکولې شی،بلاشبه د ضرورت شدیده په وخت کښې داسې فتوی اوحکم جائزدې،والله اعلم

**محمدکفایت الله کان الله له دهلی**

**الجواب الثانی من دارالافتاء دارالعلوم دیوبند**

دمفقود دښځې په باره کښې علماء احنافودضرورت شدیده په وخت په لیکلو مطابق فقهاؤاحنافودامام مالک په مسلک باندې فتوی ورکړې ده اودحاکم او مفتی دپاره اجازت شته چه دضرورت شدیده په وخت ددوئ په مسلک باندې عمل اوکړی.لیکن دعمل په وخت دمالکیانو دټولو شرائطو لحاظ ساتل هم ضروری دې اوکه چرې په څه وخت کښې دشرائطودمذهب خلاف فیصله اوکړې شوه نودافیصله به شرعاغیر صحیح اوناقابل اعتباروی.

علماء دیوبند دبعض ښځو دتکلیف اومظلومیت په خیال سره په مسئله مذکوره اوهمدارنګه په بعض مسائلو کښې دجزیات فکراوسوچ او دمحنت شاقه نه پس دامام مالک په مسلک باندې فتوی ورکړې ده او احتیاط ئې دومره کړې دې چه مالکی علماؤسره هم په دې مسائلو کښې خط اوکتابت کړې اطمینان قلب ئې حاصل کړې ددې نه پس ئې دیورسالې په شکل کښې دا ټول مسائل شائع کړی دی ددې رسالې نوم "الحیلة الناجزة،، دې چه په اردو کښې ده په هغې کښې دلیونی ښځه، مفقود، عنین، دمتعنت وغیره مسائل بالتفصیل سره دشرائطو لیکلی شوی دی، فی زمانه هرحاکم ته ضروری ده چه داکتاب په مطالعه کښې اوساتی اوواضحه دې وی چه دامام مالک دمسلک په اعتبارسره صرف څلورکالو تیریدوباندې دنکاح ثانی اجازت نه شی ورکولې بلکه دښځې دعوی اودهغې دتحقیق نه پس کله چه حاکم دتلاش نه عاجزشی نودڅلورکالو میعاددې مقررکړی پس که چرې په څلورکاله تیریدوهم هغه رانغلونو دابه مړمتصورکیږی، اوددې نه پس به څلور میاشتې لس ورځې دعدت موده تیروی، بیادې ښځې ته دنکاح ثانی کولو اجازه شته دې بلکه دضرورت اووخت په لحاظ باندې مالکیانو دلته په دې څلورکالو کښې هم تخفیف کړې دې اوصرف دیوکال دانتظاراجازت ئې ورکړې دې لیکن هغه داوخت دې چه کله ښځه څلورکاله صبراوتحمل اوعفت سره نه شی تیرولې، اودابتلاء قوی اندیښنه دحاکم په مخکښې بیان کړی، لیکن په دې صورت اوپه صورت اول کښې فرق دادې چه دیوکال د انتظار دحکم په صورت کښې دکال تمامیدونه پس حاکم ته د اطلاع ورکول پکاردی چه مفقودنه دې راغلې، اودهغه څه پته اونه لګیده، په دې درخواست باندې به حاکم تحقیق دواقعې اوکړی اوپه دې دواړو کښې به د جدایئ حکم اوکړی. او هغه تفریق طلاق رجعی دې اوعدت ئې درې حیض دی اوپه صورت اول کښې د څلورکالو دتمامیدونه پس دحاکم نه دحکم



بالموت حاصلولو عندالمالکیه هیڅ ضروری نه دې لیکن احتیاط په دې کښې دې چه دحاکم نه دې حکم بالموت حاصل کړې شی۔

اودادې هم واضحه وی چه په مذکوره کرخو کښې چه کله هم دحاکم لفظ راغلې دې ددې نه حاکم مسلمان مراددې ځکه چه دحاکم غیر مسلم فیصله شرعاغیرمعتبره ده اودهغه په حکم سره فسخ وغیره هیڅ کله نشی کیدلې، لان الکافر لیس باهل للقضاء علی المسلم کماهو مصرح فی جمیع الکتب الفقه والله اعلم

لیکونکې....سیداحمدعلی سعیدنګینوی المفتی دارالعلوم دیوبند

## الجواب الثالث من دارالافتاء دارالعلوم دیوبند

داجواب صحیح دې په مسئله مفقود کښې ددې لیکلو په بناء فقهاء حنفیه د مالکیه مذهب په لحاظ دشرائطو دشدیدضرورت په وخت اختیارکړې دې لیکن په هرضرورت کښې هرکس په داسې کولو مختارنه دې چه کومه مسئله غواړی په خپل نزدهغه ضرورت اوګڼړی دبل امام مذهب اختیارکړی بلکه ضرورت هغه معتبردې کوم چه فقهاؤ تسلیم کړې. والله اعلم

بنده محمدشفیع عفاالله عنه المفتی دارالعلوم دیوبند

## الجواب الرابع

درمقام ضرورت چنانچه خوف زناباشدفتوی بمذهب امام مالک جائزاست، کماقال فی الدرالمختارقبیل باب الاذان لاباس بالتقلید عندالضرورة انتهی ملخصا، درشرح صراط المستقیم :۲۱ گفته علماء برانندکه انتقال ازمذهب بشهوت نفس واتباع هواوتتبع رخص درست نبود .مگردرواقعه صعب وحرج عظیم مبتلاء گردد وبجزرجوع بمذهب دیگرمخلصې نیابد ،بحکم ضرورت در این صورت جائزبود انتهی ملخصا،قال فی جسب المفتیین:وقول مالک فی هذه

المسئلة معمول به وهواحدقولى الشافعى رحمه الله ،ولوافتى الحنفى بذلك يجوزفتواه لان عمر رضى الله عنه حكم هكذافى من استهواه الجن بالمدينة وكفى به امام انتهى.

وفى جامع الرموز:وقال مالك والاوزاعى الى اربعين سنين فلينكح عرسه بعدكما فى النظم فلوافتى به فى موضع الضرورة ينبعى ان لاباس به كماظن انتهى وايضا فى الدرالملتقى وكذافى تعاليق الانوارعلى الدرالمختار.انتهى

وقال صاحب ردالمحتارفى باب المفقودنقلاعن جامع الرموز:لوافتى به فى موضع الضرورة لاباس به على ماظن انتهى،ونظيرهذه المسئلة عدة ممتدة الطهر التى بلغت برؤية الدم ثلاثة ايام ثم امتدطهرها فانها تبقى فى العدة الى ان تحيض ثلاثا حيض وعندمالك تنقضى عدتها بتسعة اشهروقدقال فى البزازية الفتوى فى زماننا على قول مالك،وقال الزهرى كان بعض اصحابنايفتون به للضرورة واعترضه فى النهر وغيره بانه لاداعى الى الافتاء بمذهب الغير لامكان الرفع الى مالكى يحكم بمذهبه وعلى ذلك مشى ابن وهبان فى منظومته هناك لكن قدمناان الكلام عندتحقق الضرورة حيث لم يوجدمالكى يحكم به انتهى وماذكرفى شرح الهداية انه خبراخرجه الدارقطنى فى سننه عن سواربن مصعب حدثنا محمدبن شرحبيل عن المغيرة بن شعبة قال ابن ابى حاتم فى العلل سئلت ابى عن حديث رواه سوارعن محمدعن المغيرة فقال ابى هذا حديث منكرومحمدمتروك الحديث يروى عن المغيرة مناكيرواباطيل.

وذكرعبدالحق فى احكامه من طريق الداروعللة بمحمدبن شرحبيل وقال انه متروك وقال ابن القطان فى كتابه سواراشهرفى المتروكين انتهى ملخصا.وهكذا فى عمدة الرعاية حاشية شرح الوقاية،وقال فى شرح الموطا للزرقانى مالك عن يحيى بن سعيدعن سعيدبن المسيب ان عمربن الخطاب رضى الله عنه



قال ايماامراة فقدت زوجهافلم تدر اين هوفانها تنتظراربع سنين ثم تعتداربعة اشهروعشرثم تحل للازواج وروى نحوه عن عثمان وعلى،وقيل اجمع الصحابة ولويعلم لهم مخالف فى عصرهم وعليه جماعة من التابعين انتهى ملخصا.وفى العينى شرح البخارى وقال ابن بطال اختلف العلماء فى حكم المفقوداذالم يعلم مكانه وعمى خبره فان امراته لاتنكح ابداولايفرق بينه وبينها حتى يوقن بوفاته اوينقضى تعميره وسبيل زوجته.....وروى هذا القول عن على وهوقول الثورى وابى حنيفة ومحمدوالشافعى واليه ذهب البخارى،وقالت طائفة تتربص امراته اربع سنين ثم تعتدعدة الوفات وروى ايضا عن على بن ابى طالب وابن عباس وابن عمروعطاابن ابى رباح واليه ذهب مالك و اهل المدينة واحمدواسحاق انتهى ملخصا(۹:۵۸۸).

وتائيدميدهدقول شامى ودرمختاربقول مذكورراكه درموضع ضرورت فتوى برمذهب غير جائزاست چنانچه درباب سرقه بدي تصريح نموده است (۲:۲۰۷) ولايقطع بسرقته مثل دينه اذاكان من جنسه واطلق الشافعى اخذخلاف الجنس للمجانسة فى المالية قال فى المجتبى وهواوسع فيعمل به عندالضرورة انتهى ملخصا

درمختاروفى ردالمحتارقوله اطلق الشافعى رحمه الله الخ وهذااوسع فيجوزالاخذبه وان لم يكن مذهبنافان الانسان يعذرفى العمل به عندالضرورة به وايضاصرح الشافعى فى باب الرجعة ۲:۵۵۲ ان امام مالك كالتلميذلابى حنيفة ولذامال اصحابنا الى بعض اقواله ضرورة كمافى ديباجة المصفى القهستانى،انتهى ملخصاوقال الطحطاوى:وجازللحنفى ان يفتى بمذهب مالك انتهى وايضا،وقال الشامى فى كتاب القضاء ذيل قول المصنف لايقضى على الغائب عن الفتح

القدیرمن باب المفقود ولایجوزالقضاء علی الغائب الااذارای القاضی مصلحته فی الحکم له وعلیه فحکم بانه مجتهدفیه الخ قلت وظاهره ولوکان القاضی حنفیة ولوفی زماننا ولامنافی مامرلان تجویزهذاللمصلحة والضرورة وایضاقال الشامی فی جلدالخامس ۱۱۰ وموضع الضرورة مستثناة من قواعدالشرع انتهی،ایضاقال الشامی فی الجلدالخامس ۳۶فی عدم جوازالاستیجارعلی الطاعة بعد نقل اقوال العلماء فهذالمجموع ما افتی به المتاخرون من مشائخناوهم البلخیون علی خلاف فی بعضه المخالفین ماذهب الیه الامام وصاحباه وقداتفقت کلمتهم جمیعًا فی الشروح والفتاوی علی التعلیل بالضرورة انتهی.

وشاه عبدلعزیزدهلوی درفتاوی عزیزی گفته :اگرحنفی المذهب درضیقي مبتلاء شودکه گزاره بدون مذهب شافعی نماندعمل برمذهب شافعی نمایدمثل احکام میاه دراین دیاریااحکام مفقودانتهی(۱:۱۸۴)-

ازمولوی نیازالدین صاحب اټکی دوآبه هشنګر

لیکونکی:مرزاعبدالغفارکوکاروی سوات ستمبر ۱۲/۸/۱۹۴۱ء

المستفتی: مولانا اقبال علی حقانی منګلورسوات.......... ۲۱/۳/۲۰۰۲ء

**الجواب**: وبالله التوفیق:نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد!فقدرایت رسالة "الحکم المحمودفی مسئلة المفقود"،تفصیلافوجدتهاموافقة لمافی الحیلة الناجزة لشاه اشرف علی التهانوی،حیث افتی علماء الاعلام فی هذه المسئلة بمذهب مالک، وقال شیخنا الزروبوی فی البشری لارباب الفتوی:لماکان الافتاء علیه عندالضرورة من اصول الحنفیه کان الحکم المبنی علیه ایضامذهب الحنفیه لابتناءه علی قواعدهم کماصرح به العلامة الشامی فی شرح عقودرسم المفتی فیما اذا خالف فیه الاصحاب امامهم الاعظم.(انظرالبشری لارباب الفتوی۳۷)وقال شیخنا زروبوی دامت برکاتهم بعدمطالعة هذه الرسالة:انه لابدفی هذه المسئلة من



قضاء القاضی المسلم اوحکم جماعة العلماء وعامة المسلمین ولایصح الاکتفاء بالافتاء فقط فنقول هذه الرسالة صحیحة وموافقة لمذهب الحنفیة واصول الفقه.

وهوالموفق

الجواب الصحیح

محمدفرید عفی عنه

لیکونکي محمدوهاب منګلوری عفی عنه

دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه زروبی(صوابی) ۲/۵/۲۰۰۲ء

# فصل فی العنین

## د هیجړا د پاره واده جائز او ښځې ته د تنسیخ نکاح حق حاصل دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه دیو جینئ رشته دیو شریف ځوان اوکړې شوه.وروسته دارازافشاء شوچه دا ځوان داول نه ډاکټر د وادهٔ ناقابل ګڼړلې وو چه دا **unfit** دې اوکه چرې واده اوکړی نواولادبه ئې هرګز نه کیږی.لیکن دجینئ والائې په دهوکه کښې واچول اوخبره ئې پټه کړه رشته ئې اوکړه ددې واده څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدزکریا آصف مسلم بازارډی آئ خان........ ۱۹۸۲ء۱۷۱۰۳

**الجواب:** هیجړاته واده کول ناجائزنه دي لیکن هغه ښځې ته دتنسیخ نکاح حق حاصل دي﴿۱﴾ ډیرځله د ډاکټرانو تشخیص غلط ثابت کیدې شی بس دې معاملې ته دهوکه اوفریب نه شی وئیلې﴿۲﴾-وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة الحداد الیمنی: قوله: فان کان عنینا اجله الحاکم حولا کاملا فان وصل الیها والا فرق الحاکم بینهما ان طلبت المرأة ذلک هذا اذا لم تکن رتقا اما اذا کانت رتقا فلا خیار لها الخ.

(الجوهرة النیرة ۲:۹۰ قبیل کتاب الرضاع)

﴿۲﴾یدل علیه ما قال العلامة ابن نجیم: لکن قالوا فی العنین لوادعی الوطء وانکرت وقلن بکر خیرت وان قلن: ثیب فالقول له لکونه منکرا استحقاق الفرقة علیه والاصل السلامة من العنة.

(الاشباه والنظائر ٦۵ قاعدة الاصل العدم)



## د نامرد یعنی د عنین د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه کس خپله لور د یوکس سره واده اوکړو.یوکال پس پته اولګیده چه هلک نامرددې.هلک ته د جینئ والدینواووئیل چه جینئ رهاکړی.اوداهلک جینئ ته دنان نفقې انتظام هم نه شی کولې اوطلاق هم نه ورکوې.اوس دې جینئ ته به خاوندطلاق ورکوی یاحاکم؟ بینوا توجروا

المستفتی: حفیظ الله تجوړی لکی مروت.......... ۱۹۷۹ء۱۷۱٦۱

**الجواب:** که چرې داکس واقعی نامردوی اوښځې ته دنکاح نه مخکښې دهغه د نامردئ علم نه وی اوښځې دنامردئې معلوم کیدلونه پس درضاتصریح نه وی کړی مثلادائې نه وی وئیلی چه هرڅنګه وی اوس خوبه زه دهغه سره زندګی تیروم.اودنکاح نه پس یوځل ئې هم جماع نه وی کړی نوحاکم به ور ته دیوکال علاج دپاره مهلت ورکوی که چرې دمهلت باوجودجماع او نه کړی شی او ښځه دده سره په اوسیدونه وی راضی نوکه چرې داخاوندطلاق نه ورکوی نو مسلمان حاکم دنکاح فسخ(طلاق)کولې شی اوپه شریعت کښې د اطلاق او فسخ منظورده﴿۱﴾ فلیراجع الی الهندیة۲:۱۵٦﴿۲﴾.............

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دعنین ښځې ته دخپل خاوند نه دجداکیدو اختیار څه شرائطوسره حاصلیدې شی، (۱) دنکاح نه مخکښې ښځې ته دخاوند د عنین کیدو علم نه وی.(۲) دنکاح نه پس ئې یوځل هم دې ښځې سره جماع نه وی کړې.(۳) کله نه چه دې ښځې ته دخاوند د عنین کیدو خبرشوې دې دهغه وخت نه ښځې ددهٔ سره په اوسیدو باندې رضا نه وی ښکاره کړې..(۴) کله چه د پوره کال موده تیریدو نه پس قاضی ښځې ته اختیارورکړی نوښځه هم په دغه مجلس کښې جدائی اختیارکړی (۵) دا ټول امور د قاضی د قضاء محتاج دی دقاضی دحکم نه بغیر ښځې ته پخپله د جداکیدو اختیار نشته.الخ ............(الحیلة الناجزة ۷۴ حکم زوجه عنین)

﴿۲﴾وفی الهندیة: اذا رفعت المرأة زوجها الی القاضی ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

ورد المحتار ۲: ۹۷۷﴿۱﴾ والدر المختار ۲: ۹۸۱﴿۲﴾ والهداية باب العنين ﴿۳﴾. وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه) وادعت انه عنين وطلبت الفرقة فان القاضى يسأله هل وصل اليها اولم يصل فان اقر انه لم يصل اجله سنة سواء كانت المرأة بكرا ام ثيبا وان انكر وادعى الوصول اليها فان كانت المرأة ثيبا فالقول قوله مع يمينه انه وصل اليها......وبعد صفحة...... ان اختارت الفرقة امر القاضى ان يطلقها بائنةً فان ابى فرق بينهما هكذا ذكرْ محمد رحمه الله فى الاصل والفرقة تطليقة بائنة كذا فى الكافى.

(فتاویٰ عالمگيرية ۱: ۵۲۴ الباب الثانى عشر فى العنين)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامى: (قوله على جماع فرج زوجته) اى مع وجود الآلة سواء كانت تقوم اولا اخرج الدبر فلا يخرج عن العنة بالادخال فيه خلافا لابن عقيل من الحنابلة معراج لان الادخال فيه وان كان اشد لكنه قد يكون ممنوعا عن الادخال فى الفرج لسحر...... لكن قولهم لو رضيت به فلا خيار لها ينافيه وله نظير ان احدهما لو خرب المستأجر الدار الثانى لو اتلف البائع المبيع قبل القبض اى فانه ليس له فسخ الاجارة ولا الرجوع بالثمن.

(ردالمحتار ۲: ۶۴۳ باب العنين وغيره)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: ولو وجدته عنينا هو من لا يصل الى النساء لمرض او كبر او سحر...... او خصيا...... اجل سنة لا شتما لها على الفصول الاربعة ولا عبرة بتأجيل غير قاضى البلدة الخ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۶۴۵ مطلب لفک المسحور والمربوط)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغينانى: واذا كان الزوج عنينا اجله الحاكم سنة فان وصل اليها فبها والا فرق بينهما اذا طلبت المرأة ذلک هكذا روى عن عمر وعلى وابن مسعود ولان الحق ثابت لها فى الوطى ويحتمل ان يكون الامتناع لعلة معترضة ويحتمل لآفة اصلية فلا بد من مدة معرفة لذلک وقدرناها بالسنة لاشتمالها ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## عنه (د نامردئ) په صورت کښې د یوکال مهلت نه بغير تنسيخ نكاح منظورنه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کښې چه یوښځې دخپل خاوند خلاف دتنسيخ نكاح دعوى داسې اوليكله چه زماخاوندنامردې او حق زوجيت اداكولوقابل نه دې، عدالت مدعى عليه طلب كړو مګرهغه قصداً حاضرنه شو، عدالت يوطرفه كاروائى اوكړه دتنسيخ نكاح فيصله ئې اوكړه، آيا موجوده عدالتونوته دتفريق بين الزوجين حق حاصل دې څنګه چه شرعى عدالت کښې قاضى ته حاصل دى؟ بينوا توجروا

المستفتى: حافظ غلام رسول ناظم جميعت علماء السلام
تهنډكوئى صوابى ۱۹۷۳ء۱۲۱/۲۲

**الجواب:** مسلمان جج وغيره باقاعده تنسيخ نكاح كولې شى اوضرورت په وخت يوطرفه كاروائى هم كولې شى (والتفصيل فى الحيلة الناجزة)﴿۱﴾ ليكن

---

(بقيه حاشيه) على الفصول الاربعة فاذا مضت المدة ولم يصل اليها تبين ان العجز بآفة اصلية ففات الامساک بالمعروف ووجب عليه التسريح بالاحسان فاذا امتنع ناب القاضى منا به ففرق بينهما ولا بد من طلبها لان التفريق حقها وتلک الفرقة تطليقة بائنة الخ.

(هداية ۲: ۳۹۹ باب العنين وغيره)

﴿۱﴾ وفى الحيلة الناجزة: د ارسال الى الغائب دپاره شهادت شرط كيدل په كتاب القاضى الى القاضى باندې قياس كولوسره ليكلى شوى دى حالانكه دلته هيڅ يوه فيصله د قضاء ديو طرف نه بل طرف ته نۀ منتقل كيږى بلكه صرف د دومره خبرې تحقيق او ثبوت مطلوب دې چه دقاضى په عدالت كښې د مقدمې پيش كولو اطلاع هغۀ ته داسې صورت سره اوشى چه په هغې باندې يقين يا ظن غالب اوشى په دې وجه كوم صورت كښې چه ارسال الى الغائب متعذر او ناممكن وى هلته د ارسال د خبر نه هم فيصله د تفريق صادركول په مالكى مذهب كښې مصرح دى ....كه چرې ارسال الى الغائب اوبيا د غائب دطرفه د تعاذر ثبوت په شرعى شهادت باندې موقوف وې اوددې نه بغير قضاء د قاضى نه نافذ كيده نود تعذر په دې صورت كښې هم د قضاء د نفاذ هيڅ معقوله وجه نه شوه كيدې، ددې نه معلوميږى چه د قضاء دنفاذ په دې باندې مدار نشته...الخ

(الحيلة الناجزة ۷۵ تحت مبحث حكم زوجه متعنت)

چونکه په صورت مسئوله کښې د اتنسیخ د یو کال مهلت ورکولو نه وړاندې دې لهذا دا تنسیخ شرعا منظور نه دې ﴿۱﴾ وهو الموفق

## نامرد که ښځې په طلاق یا خلع باندې راضي نه وي نو ښځه باقاعده تنسیخ نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چه یو کس درې کاله وړاندې د یو جینئ سره نکاح کړې وه، د دې نه پس دې کس ډیر علاج او کړو لیکن معلومه شوه چه دا نامرد دې او په مذکوره درې کالو کښې دا په حقوق زوجیت ادا کولو نه دې قادر شوې ایا د دې کس ښځه د دې کس نه جدا کیدې شي؟ د سی ایم ایچ مرې د ډاکټر صاحب سند د نامردئ ورسره لګیدلې دې. بینوا توجروا

المستفتی: نور افضل خان مرې...... ۴/۱۰/۱۹۸۵ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې که چرې دا خاوند طلاق ورکولو یا خلع کولو ته تیار نه دې نو دا جینئ د مسلمان جج په ذریعه باقاعده تنسیخ نکاح کولې شي ﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو وجدته عنینا هو من لا یصل الی النساء لمرض او کبر او سحر...... اجل سنة لاشتمالها علی الفصول الاربعة...... فان وطئ مرة فبها والا بانت بالتفریق من القاضی ان ابی طلاقها بطلبها الخ.
(الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۶۴۵، ۶۴۷ باب العنین وغیره)

﴿۲﴾ قال الشیخ الغنیمی المیدانی: وان کان الزوج عنینا وهو من لا یصل الی النساء یصل الی الثیب دون الابکار...... فهو عنین فی حق من لا یصل الیها فاذا رفعته الی الحاکم اجله الحاکم المولی حولا تاما لاشتماله علی الفصول الاربعة فان وصل الیها مرة فی ذلک الحول فبها والا فرق القاضی بینهما ان طلبت المرأة ذلک وابی الزوج الطلاق.
(اللباب فی شرح الکتاب ۳: ۱۵۸ کتاب النکاح)



## د مقطوع الذکر (مجبوب) خاوند حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چه د یو کس آله تناسل کټ شوې دې بالکل تر آخری حصې پورې نشته دې ایا د دې کس ښځه د ده نه جدائی اختیارولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید نواب نریاب هنګو........ ۱۳/۱۲/۱۹۷۲ء

**الجواب:** مقطوع الذکر چه په جماع باندې قادر نه وي بغیر د څه مهلت ورکولو نه قاضی د دوئ په مینځ کښې تفریق کولې شي. په دې شرط چه ښځه مطالبه کوي، وفی الدر المختار اذا وجدت المراة زوجها مجبوبا او مقطوع الذکر الخ فرق الحاکم بطلبها بینهما فی الحال ﴿۱﴾. وهو الموفق

## په رسم.سوره. کښې معمر کس ته د ورکړې شوې جینئ په صورت کښې د عنین مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چه قاتل پلار د مصالحت په وجه خپله نابالغه لور پنځه پنځوس کاله بوډا ته ورکړه، نکاح هم او تړلې شوه اوس دا کس د بوډاوالی په وجه باندې مجامعت باندې هم قادر نه دې، نو ایا دې جینئ ته به بعد البلوغ خیار د فسخ حاصل وي؟ او دا پلار به معروف په سوء الاختیار وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الغفور نوشهره........ ۳۱/۷/۱۹۸۲ء

**الجواب:** دا اقدام سوء الاختیار نه دې ځکه چه د دې منشا مصلحت دې لالچ نه دې ﴿۲﴾ البته که چرې دا معمر د دې د نهو کالو جینئ په صحبت باندې قدرت نه

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۶۴۴ باب العنین وغیره)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: والحاصل ان المانع هو کون الاب مشهورا بسوء الاختیار قبل العقد فاذا لم یکن مشهورا بذلک ثم زوج بنته من فاسق صح وان تحقق بذلک انه سیئ الاختیار واشتهر به عند الناس فلو زوج بنتا اخری من فاسق لم یصح الثانی لانه کان مشهورا بسوء الاختیار قبله بخلاف العقد الاول لعدم وجود المانع ... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لری نو په دې بوډا باندې دعنین احکام جاری کیږی﴿۱﴾-وهو الموفق

## د هیجړا سره د نکاح په صورت کښې د تنسیخ نکاح مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه ددوؤ یادرې کالونه دیو جینئ واده دهیجړا (خنثٰی) سره شوی، دې کس خپلو رشته دارانو ته دواده نه وړاندې وئیلی ووچه زه دواده لائق نه یم بلکه پیدائشی (خنثٰی، هیجړا) یم لیکن ددې باوجود ده ته واده او کړې شو اوس دشریعت مطابق ده ته څه حکم دې او جینئ هم دده دهیجړا کیدو ثبوت ورکوی یعنی دواړه ثبوت ورکوی اوس ددوې دجدایئ دپاره شرعا څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولاناعبدالحلیم صاحب خطیب دروازه هزاره. ۱۹۶۹ء\۴\۲۶

**الجواب**: دې نامرد ته ضروری ده چه په طلاق یا خلع باندې راضی شی ګینې په ذریعه دمسلمان حاکم باقاعده طلاق حاصل کړې شی﴿۲﴾-وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) قبله ولو كان المانع مجرد تحقق سوء الاختيار بدون الاشتهار لزم احالة المسئلة اعنى قولهم ولزم النكاح ولو بغبن فاحش او بغير كفء ان كان الولى ابا او جداً.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۳۰ باب الولی)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: العنين هو...... من لا يقدر على جماع فرج زوجته يعنى لمانع منه ككبر سن او سحر اذالرتقاء لاخيار لها للمانع منها الخ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۶۴۴ باب العنين وغيره)

﴿۲﴾ قال العلامة الموصلى الحنفى: والعنين الذى لا يصل الى النساء او يصل الى الثيب دون الابكار او يصل الى غير زوجته ولا يصل اليها وتكون العنة لمرض او ضعف او كبر سن او من اخذ بسحر فاذا كان الزوج عنينا وخاصمته المرأة فى ذلک اجله القاضى سنة فان وصل اليها والا فرق بينهما ان طلبت المرأة ذلک......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د عقیم کس نه د تنسیخ نکاح مطالبه صحیح نه ده

**سوال**: څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه یو کس په جماع باندې قادر دې لیکن دډاکټری رپورټ مطابق دده ماده منویه د اولاد پیدا کولو صلاحیت نه لری، او ښځه دبچی پیدا کولو صلاحیت لری ایا ښځه د فسخ نکاح مطالبه کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل نوازدی آئ خان.........۱۹۷۵ء\۳\۲۵

**الجواب**: اولاد ورکول او نه ورکول دالله تعالی په قدرت کښې دی﴿۱﴾ او خاوند چه کله په جماع باندې قادر وی نو عدم صلاحیت داولاد څه داسی عیب نه دې چه دهغې په وجه ښځه تنسیخ نکاح او کړی او نه دحاکم داتنسیخ کول منظور دې-وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) لان لها حقاً فى الوطء فلها المطالبة به ويجوز ان يكون ذلک لمرض ويحتمل ان يكون لآفة اصلية فجعلت السنة معرفة لذلک لاشتما لها على الفصول الاربعة...... فاذا مضت السنة ولم يصل اليها علم انه لآفة فتخير فان اختارت نفسها قال ابويوسف ومحمد بانت وهو ظاهر الرواية وروى الحسن عن ابى حنيفة لا تبين الا بتفريق القاضى وهو المشهور من مذهبه...... وله ان النكاح عقد لازم وملک الزوج فيه معصوم فلا يزول الا بازالته دفعا للضرر عنه لكن لما وجب عليه الامساک بالمعروف او التسريح بالاحسان وقد عجز عن الاول بالعنة ولا يمكن القاضى النيابة فيه فوجب عليه التسريح بالاحسان فاذا امتنع عنه ناب القاضى منا به لانه نصب لدفع الظلم فلاتبين بدون تفريق القاضى فاذا فرق يصير كانه طلقها بنفسه فتكون تطليقة بائنة ليحصل مقصودها وهو دفع الظلم عنها بملكها نفسها ويشترط طلبها لان الفرقة جقها. (الاختيار لتعليل المختار ۲: ۱۵۰ فصل فى العيوب التى يثبت بها الخيار)

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ: يهب لمن يشاء اناثاً ويهب لمن يشاء الذكور، او يزوجهم ذكرانا واناثا ويجعل من يشاء عقيما، انه عليم قدير. (سورة الشوریٰ آیت: ۴۹، ۵۰ پاره: ۱۵)

